بسم الله الرحمن الرحيم

# بدر الفتاوى في الفقه الحنفي

دافغانستان د اسلامي امارت دستري محکمې
قاضي القضاة او دمرکزی دارُ الافتاء رئیس

مولانا مفتي نور محمد ثاقب
په مشرتابه کی

مکتبة نور القرآن
کانسي روډ۔ کوئټه

# بدر الفتاوٰی

## فی الفقه الحنفي

دوهم ټوک

دافغانستان داسلامي امارت دستري محکمې قاضي القضاة
او دمرکزي دارالافتاء رئيس مولانامفتي

## نور محمد ثاقب

په مشرتابه کې
دافغانستان دمرکزي دارالافتاء لخوا صادرشوي مسائل

مرتب

مفتي مولوی احمد «نوري ،ضيائي»

همکار

ابوخالدمولوی عبدالاحد «مجروح»

ناشر

مکتبۂ نور القرآن النور کتابخانه مارکيټ کاسي روډ کوټه
۰۳۲۱۱۲۵۸۹۶۷۲ ، افغان بيسم: ۰۷۰۲۸۰۶۵۱۵

۴



## کتاب پیژندنه :-

دکتاب نوم : **بدرالفتاوی فی الفقه الحنفي** دوهم ټوک
تألیف: دافغانستان داسلامي امارت د مرکزي دارلافتاء علماء
ترنظارت لاندي: دافغانستان دستري محکمي قاضی القضاة
اودارالافتاء رئیس مولانامفتي نورمحمد ثاقب
ترتیب: مفتي مولوی احمد «نوري ، ضیائي»
تصحیح اوعنوانات : مولوی عبدالاحد «مجروح»
خپرونکي: نورالقرآن خپرندویه ټولنه
النور کتابخانه مارکیټ کاسی روډ کوټه
چاپ ځای : لاهورپاکستان
دخپریدوکال: ۲۰۱۵ میلادی دمارچ میاشت
دچاپ شمیر : ۱۱۰۰ عدد

# د دوهم ټوک فهرس

اللهم اختم لنـا بالخير والسـعادة والبشـارة والايـمان

# مُقَدّمَه

الحمدلله رب العالمين والعاقبة للمتقين والصلوة والسلام على امام المرسلين و على آله و اصحابه واهل بيته اجمعين من يومنا هذا الى قيام يوم الدين آمين ثم آمين برحمتك يا ارحم الرّاحمين

**و بعد**:د افغانستان د اسلامي امارت په دوران کی د قندهار په ولايت کي يوه اداره د مرکزي دارالافتاء په نامه جوړه سوي وه چې په دې اداره کي ډيرو جيدو علماء کرامو برخه درلوده چې دا علماء کرام به کله کله بدليدل او د ضرورت په اساس به په نورو وظائفو مشغول کيدل او ځيني کسان به په دائمي شکل موجود وه او دا اداره يوه مستقله اداره وه چې د هيڅ وزارت او هيڅ رياست مربوطه نه وه او د افغانستان د مختلفو ولاياتو او ولسواليو څخه به خلقو او محاکمو او نورو چارواکو د خپلو ديني سوالونو د حل لپاره مراجعه ورته کوله چې د دې اداري کارکوونکو به د هغوئ سوالونو ته جواب وايه چې ډيري زياتی فتواگاني ئې صادری کړي خو بيا هم دا اداره د يو لړ مشکلاتو سره مخامخ وه لکه دا چې بعضي کسانو به کاري تجربه نه درلوده او کله کله به د فتوی لپاره پوره کتابونه او مواد نه وه موجود او کله کله به داسي اوږده او پيچلي موضوعات ورته را وړل کيدل چې د هغو مفصل بيان به د کتابت په قيد کي نسوای راتلای او داسي نور مشکلات هم موجود وه خود هغو مشکلاتو باوجود علماء کرامو خپله سعيه کوله چې صحيح لاري چاري او فتوی گانی خلقو او حکومتی مسئولينو او محکمو ته وړاندي کړي خو کله چې ناڅاپه په افغانستان کی نور تحولات راغلل نو هغو علماؤ دومره وخت پيدانکړ چې هغه فتوی گانی ترتيب کړي او يا فهرس د فقهي ابوابو پرترتيب ورته برابر کړی يا دوهم واري ئې تر نظر تيري کړي او اصلاحات پکښي وکړي حتی هغه فتوی گاني اکثره په دې تحولاتو کي ضائع سوي خو د يو څه

فتوی گانو کاپیانی چې زما سره موجودې وي نو ما کوښښ وکړ چې هغه راجمعه کړم او فهرس ورته برابر کړم او د کمپیوټر په ذریعه ولیکل سي چې ډیر خلګ ځني استفاده وکړي چې الحمدالله په دې کار کي تر خپل وس پوری موفق سوم الله ﷻ دې وکړي چې ستاسي د پوره پاملرني او استفادې وړ وګرزي خو په دې ځای کي یوې ضروری خبري ته ستاسی توجه را اړول غواړم چې بعضی فتوی گانی په دې کي داسي هم سته چې ظاهراً یا د استفتاء سره پوره تطبیق و نه لري یا د استفتاء ځخه زائد بیانونه پکښي راغلی وي یا یو موضوع ډیره جدي نیول سوي وي او ډیر شدت پکښی سوی وي یا د یوې مهمې موضوع لپاره لنډ جواب ویل سوی وي ددې ټولو اصل دلیل دا دي چې علماء کرامو د فتوی تر څنګ د افغانستان ماحول او رواجونه او د حکومتي مسئولینو چال چلند په نظر کي نیوی او د هغه پر اساس یی کوښښ کاوه چې شرعي اصلاحات را مابین ته سی او بعضی استفتاء گانی ډیري لنډي را نقل سوي دي او مفصل بیانونه او ورسره ضمیمه اوراق یی نه دي را نقل سوي نو په ظاهره فتوی د استفتاء سره مطابقه نه ښکاري لکن د موضوع پوره تحقیق علماؤ کړی وواو هغه تحقیق ئې په نظر کی نیولی وو او د استفتاء دظاهری بیان ډیر مراعات یی نه وو ساتلی او بل داچې د بعضی فتوی گانو استفتاء گانی زما سره موجودي نه وي چې د هغه لپاره د فرضی استفتاء په نامه باندي موږ سوالونه برابر کړي دي امید لرم چې په دې ټولو مواردو کي زموږ معذورت ومنئ خو د دې ټولو خبرو سره سره بیا هم دا وایو چې انسان د غلطئ ، سهوې او نسیان ځخه خالی نه وي که په بعضي احکامو کی اشتباه سوي وي امید دی چې د تنقید او اعتراض پر ځای د اصلاح لاره خپله کړئ ـ والله یحب المحسنین.و من الله التوفیق.

(افقرعباده الیه احمد نوری ضیائی عفی عنه)

بسم الله الرحمن الرحيم

## ترتقسیم مځکې دمځکې بدلول صحت نه لري

**سوال**: ملا اخترمحمد او محمد رحیم خپله خپله پدری مځکه سره تبادله کړی چه داخترمحمد مځکه په یوه کاریز کی وه د محمد رحیم مځکه په بل کاریز کی وه دوی دواړو دکلی سره مشترکه مځکه درلوده دهغه مځکی په باره کی هم داسی فیصله وکړه چه که هر کله دغه مشترکه مځکه تقسیم سی نو لکه څنګه چه اباده مځکه تبادله ده هغه مځکه به هم تبادله وی اوس هغه ملااخترمحمد چه مځکه کی درلوده هغه طرف تقسیم وکړی نوی کاریزئی شروع کړی ملااخترمحمد ئی ومحمد رحیم ته نه ورکوی ملا اخترمحمد وایی چه دغه فیصله دغیر ابادی مځکی صحت نه لری که شرعی معلومات راکړی ښه به وی ؟ (مولوی رفیع الله صاحب)

**جواب**: دغه نااباده مځکه چه تر اوسه تقسیم سوی نده او دمباحاتو څخه ده او دیو خاص مالک ترملکیت او تصرف لاندی نده راغلی نو تبادله یی صحت نلری ولی هغه شی چه دهغه سره احتمال دعدم وجود وی او دیو خاص مالک تر حفاظت لاندی نه وی نو بیع ئی صحت نلری.

واما مایشترط فی المعقود علیه ای المبیع فهو اربعة شروط (۱) ان یکون المبیع موجود افلا ینعقد بیع المعدوم قبل وجوده وماله خطر العدم .... ومن امثلة الثانی بیع الحمل وبیع اللبن فی الضرع فکل من الحمل واللّبن متردد بین الوجود وعدم الوجود فهما علی خطر العدم.

(الفقه الاسلامی صـ۳۵۷ج۴) (۳) ان یکون مملو کافی نفسه ای محرزاً وهو مادخل تحت حیازة مالک خاصٍ فلاینعقد بیع مالیس بمملوک لاحدمن الناس مثل بیع الکلاء ولوفی ارضٍ مملوکة الخ

(الفقه الاسلامی صـ۳۵۸ج۴) وکذایشترط فی المبیع ان یکون مملوکا فلایصح بیع الکلاء قبل احرازه وان نبت فی ملک البائع .... فلا یصح بیع مالیس مملوکاله وان ملکه بعده الافی السلم والمغصوب الخ (سلیم باز صـ۹۶) هکذافی (الفتاوی الهندیة صـ۳ج۳) و (ردالمحتار صـ۶ج۴) والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## کوم اموال چې دبيت المال شک پرې کيږي
## حکومت به شرعي اسناد لري کنه؟ له مالک څخه اسناد نه غوښتل کيږي

**سوال**: محترما دطالبانو کرامو دتحريک دفيروزي سره سم ټول موټران او نور اموال نقليه وغير نقليه دفراريانو چه مستقيم ئې دطالبانو دتحريک سره جنګ او مخالفت کړی ؤ خو په نفع دبيت المال په حکم دعلماؤ مصادره سوه خو اوس يو موټر کورزين ديو فراری چه فعلاً په مخالفت کی ولاړدی او په ايران کی فراری دی خو دغه موټريو سړی دمخه تر فيروزي دتحريک ددغه فراری څخه رانيولی ايا دغه موټر حکم څه دي دغه هم په نفع دبيت المال مصادره کيږی که يا ؟

**جواب**: دغه کورزين موټر چه ددغه مشتری په لاس کی دی هر څوک چه ئی دعوه کوی که حکومت وی که رعيت نو دغه دعوه کوونکی به اول شرعی دلائل او اسناد وړاندی کوی محکمی ته بيا که قاضی دغه دلائل او اسناد قبول کړه او حکم يی وکړی نو بيا به مصادره کيږی او که دحکومت سره خپل دلائل او اسناد نه وی بيانو دمصادره کولو حق نلری او يوازی په دی نامه چه داموټر توپکی پر دغه سړی خرڅ کړی بغير له نورو شرعی دلائلو او اسنادو نو دا موټر دبيت المال نسی ګرځيدلای او نه به دغه مشتری ته تکليف ورکول کيږی او نه به اسناد او دلائل دمشتری څخه غوښتل کيږی په داسی حال کی چه دحکومت سره خپل شرعی دلائل او معتبره اسناد نه وی.

ولايسبى لهم ذرية ولايقسم لهم مال لقول على رضى الله عنه يوم الجمل ولايقتل اسير ولايكشف ستر ولايوخذ مال وهو القدوة فى هذا الباب (الهداية صـ٥٨٥ج٢ ردالمحتار صـ٣٤١ج٣)

لايعمل بالخط والختم وحدهما الااذاكان سالمامن شبهة التزوير و التصنيع فيعمل به يعنى انه يكون مداراً للحكم (المجلة المـ١٧٣٦) وليس للامام ان يخرج شيئا من يداحد الابحق ثابت معروف.

( ردالمحتار صـ ۲۸۱ ج ۳ ) قال السبکی ولو جوزنا الحکم برفع المو جود المحقق ای وهو الید بغیر بینة بل بمجرد اصل مستصحب لزم تسلیط الظلمة علی مافی ایدی الناس ( ردالمحتار صـ ۲۸۱ ج ۳ )

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

**که دوه کسان دواړه جارملاصق وي کوم یو دشفع مستحق دي؟**

**سوال** : خلاصه داده چه یو مځکه چه خر خیږی دغه مځکه یو شخص جار ملاصق لری چه په اوبو کی هم شریک دی او بل شخص ئی جار ملاصق دی لیکن د اوبو شرکت نه لری اوس حق د شفع کوم شخص ته ثابتیږی ؟

**جواب** : په دغه صورت کی د استفتاء اول حق دهغه چادی چه په حق کی د اوبو شرکت لری که جار ملاصق ذی کنه دی دوهم واری حق د جار ملاصق دی.

حق الشفعة اولا للمشارک فی نفس المبیع ثانیا للخلیط فی حق المبیع ثالثا للجار الملاصق ومادام الاول طالبا لیس للاخرین حق الشفعة ومادام الثانی طالبا فلیس للثالث حق الشفعة ( المجلة المـ ۱۰۰۹ )

هکـذافی ( الـدرالمختار بهـامش ردالمحتار صـ ۱۵۴ ج ۵ )

( والفتاوی الهندیة صـ ۱۶۵ ج ۵ ) حق المبیع کالاشتراک فی حق الشرب الخاص والطریق الخاص ( المجلة المـ ۱۰۰۸ ) هکذافی ( الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ ۱۵۴ ج ۵ )

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که دوه کسان دکوچني دولديت ادعاوکړي ؟

**سوال:** واولاده الصغار وشمل الولدبين الابوين فان علی كل واحد منهما صدقة تامة (نورالايضاح حاشيه (۴) بحربتصرف وتغير) والولدبين الابوين علی كل واحد منهما صدقة تامة كذا في الظهيرية (الفتاوی العالمگيرية جلد اول صفحة ۱۹۲) زه ملا عبد القيوم دغه اشتباه لرم چه څرنگه پرابوين سرسايه لازميږی او سره له دی چه موردذوالارحامو څخه ده ؟

**جواب:** ددغه ابوين څه چه دفتاوی هنديه په عبارت کښی ذکرسوی دی موراو پلار نه دی مراد چه مستفتی ته داشتباه باعث سوی دی بلکه مرادهغه دوه کسان دی چه دواړه د يو کوچنی دولديت ادعاء کوی لکه دلاندی عبارتونو څخه چه معلوميږی.

ولوتعددالاباء فعلی كل فطرة (الدرالمختار) قوله ولوتعددالاباء كمالو ادعی رجلان لقيطا اوولد امة مشتركة بينهما قوله فعلی كل فطرة ای كاملة عندابی يوسف لان البنوة ثابتة من كل منهما كملا وثبوت النسب لايتجزء وكذالومات احدهما كان ولدا للباقی منهما (ردالمحتارص۸۱ج۲)

ولوكان له اباء فعلی كل فطرة كاملة عند ابی يوسف (مجمع الانهرص۲۲۷ج۱)

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که له محکمینو څخه یو پښیمانه سي دنورو فیصله داعتبار وړده کنه؟

**سوال**: دونفر متخاصمین که برضاء ورغبت خود چند نفر علماء بحیث محکمین تعین کنند دروقت اصدار حکم یکنفر از محکمین اعراض کند بعد از مرور چند روز دوباره شخص اعراض کننده همان فیصله که دیگر محکمین صادر کرده باشد امضاء کند آیا اعراض آن شرعا مدار اعتبار است یا فیصله صادر شده مدار اعتبار میباشد درین باره فتوی شرعی صادر نمائید؟

**جواب**: محکمین که چیری متعدد وه نو دټولو اتفاق پر یوه حکم ضروری دی که چیری یو دمحکمینو څه مخالف سی نو دهغه نورو حکم اعتبار نه لری او نافذ نه دی که څه هم په کثرة الاراء سره وی او که یو سړی مخالف سی دمحکمینو او بیا پس له څه وقته بیرته رجوع وکړی او دنورو محکمینو سره هم نظره سی او یو متفق علیه حکم صادر کړی هم دغه حکم صحیح او نافذ دی لکن په یوه شرط هغه دادی چه دغه تحکیم که مقید وو په یو معین زمانه سره نو رجوع ددغه یو محکم به ترمخه دپوره کیدو دهغه زمانی وی که وروسته وو نو بیا دغه حکم نافذ ندی.

اذا تعدد المحکمون علی ماذکر آنفا یلزم اتفاق رءی کلهم ولیس لواحد منهم ان یحکم وحده ﴿المجلة المـ۱۸۴۴﴾ ولو حکم لاینفذ حکمه ومفاده ان الحکم باکثریة الاراء لایصح لان الخصمین رضیا برءی الکل ﴿شرح المجلة سلیم بازصـ۱۱۹۶﴾ اذا تقید التحکیم بوقت یزول بمروره فالحکم المنصوب لیحکم من الیوم الفلانی الی شهر لیس له ان یحکم الافی مدة ذلک الشهر فلایجوز ان یحکم بعد انقضاءه واذا فعل لاینفذ حکمه ﴿شرح المجلة سلیم بازصـ۱۱۹۷﴾

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## کونډه دخپل اختیارده که په میراث پسي ځي؟

**سوال** محترما ومانه درویه دشریعت معلومات راکړه چه که ښځه کونډه سی خپل دسرده او کیا یو ظالم چه صاحب قدرت دی په جواب کی وایی چه کونډه به خپل په میراث پسی ځی نوزه ستاد مقام څه هیله کوم چه ته وماته دغه مسئله درویه دشریعت راکړی چه زه ئی ودغه ظالم ته ورښکاره کړم او هغه عمل په وکړی دابه ستالویه وسیله وی ؟

**جواب**: کله چه یو ښځه بالغه وی او کونډه سی نو داښځه دخپل اختیار ده که بل واده کوی که یی نکوی او هر ځای چه یی کوی ده دی خپله خوښه ده هیڅ څوک داحق نلری چه داښځه مجبوره کی او دغه خبره چه کونډه په خپل میراث پسی ځی بالکل غلطه او بی اصله او بی بنیاده خبره ده که یو څوک کونډه ښځه دیو چاسره په نکاح مجبوره کوی نو داسړی ډیر سخت ظالم او گنهگاردی او دغه نکاح که چیری ښځه نسی په راضی نکاح باطله ده جواز نلری بلکه ښځی ته دا حق سته چه بل ځای نکاح وکی او دکونډی ښځی چه مد خول بهاوی درضاء دپاره داشرط دی چه په خوله به اقرار کوی چه زه راضی یم یوازی سکوت هم اعتبار نلری.

ولایجوز للولي اجبار البکر البالغة علی النکاح ...... ولو استاذن الثیب فلا بد من رضاها بالقول (هدایة صـ۱۰ج۲) ولایزوج البکر البالغة ابوها علی کره منه خلافا للشافعی رحمه الله تعالی وفی الثیب لایجوز بالاجماع (فتاوی قاضیخان بهامش الهندیة صـ۳۵۸ج۱) لایجوز نکاح احد علی بالغة صحیحة العقل من اب او سلطان بغیر اذنها بکرا کانت او ثیبا فان فعل ذلک فالنکاح موقوف علی اجازتها فان اجازته جاز وان ردته بطل کذافی السراج الوهاج (الفتاوی الهندیة صـ۲۸۷ج۱ هکذافی کفایت المفتی صـ۴۰ج۵ و فتاوی دارالعلوم دیوبند صـ۸۶ج۸).

(**نوټ**) دپورتنیو عبارانو څه دا واضح معلومه سوه چه بالغه ښځه که پیغله وی هم ددې بی اجازی بی نکاح صحیح نه ده په مذهب دامام صاحب مبارک رحمه الله علیه

والله تعالی علم اعلم

بسم الله الرحمن الرحیم

## دوخت په تیریدو دمیراث حق باطلیږي کنه؟

**سوال**: ومحترم ریاست ته د دارالافتاء ستاسو دحضور څخه امید لرم چه دغه مسئله راکړی چه حق د میراث په مرور دزمان باطلیږی او کنه زماده مور نسب ثابت او معلوم دی او کومه هبه او ابراء او یا حق اخستل ئی نه دی کړی فقط ؟

**جواب**: حکم د دعوی د میرا ث لکه حکم د نورو دعوی گانو داسی دی یعنی لکه نورو دعوی گانو ته چه اجازه د سمع نسته پس ده (۳۲ ) کاله همدارنگه د میراث دعوی به قاضی پس د ( ۳۲ ) کاله نه اوری که چیری مدعی علیه منکروو او په دغه مدة کی شرعی عذر هم مدعی ته نوو موجود چه هغه شرعی عذر لکه دا چه مدعی غائب وی یا صغیروی یا مجنون وی اوولی نلری یا مدعی علیه امیرظالم وی.

لاتسمع دعوی الدین والودیعة وملک العقارو المیراث ومالایعو دمن الدعاوی الی العامة ولاالی اصل الوقف ..... بعد ان ترکت خمس عشرة سنة ﴿ المجلة المـ ۱۶۶۰ ﴾ ونقل فی التنقیح عن جامع الفتاوی ان المتاخرین من اهل الفتوی قالوالاتسمع بعد ست وثلاثین سنة الاانیکون المدعی غائباً او صبیا او مجنونا ولیس لهما ولی او المدعی علیه امیرا جائر ایخاف منه
﴿شرح المجلة للاتاسی صـ۱۶۶ج ۵ ﴾ ویخالفه ( ای استثناء الارث ) مافی الخیریة حیث ذکران المستثنی ثلاثة مال الیتیم والوقف والغائب ومقتضاه ان الارث غیر مستثنی فلا تسمع دعواه بعد هذه المدة ﴿ ردالمحتارصـ۳۸۱ج ۴ ﴾ الثالث عدم سماع القاضی لها انما هو عند انکارالخصم فلو اعترف تسمع کما علم مما قدمناه من فتوی المولی ابی السعود افندی اذلا تزویر مع الاقرار﴿ ردالمحتارصـ۳۸۱ج ۴ ﴾

والله تعالی ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## دسرقلفي دكان ابادولای سی کنه؟

**سوال**: د افغانستان د اسلامی امارت دارالافتاء مقام ته السلام علیکم د لوی خدای ﷻ څخه د رته بریالیتوب غواړم قدرمنه دغه محمد رسول چه دعبدالمحمد زوی دی چه یو دروازه دکان په سرقلفی له یوه نفر څخه ښو کاله پخوا رانیولی دی اوس غواړی چه دکان ترمیم کړی آیا ددغه دکان دجوړولو اجازه شریعت ورته ورکوی که نه ستاسی فتوی څه ده راته ویی لیکی مهربانی به مووی ؟

( قندهار ښاروال مولوی دین محمد حقبین )

**جواب**: محترم مستفتی صاحب د سرقلفی په باره کی به دومره ووایو چه اصلاً سرقلفی ته علماء کرامو اجازه ورکړیده او جائز یی بولی او د دی دپاره یی متعدد صورتونه وضعه کړیدی نو که د محمد رسول دکان واقعاً سرقلفی وی او د بل چا دعوه نوی ورسره او نور څه مشکل نوی پکښی نو ښاروالی دی د جوړولو اجازه ورکی او که د بل چا دعوه ورسره وی نو طرفین دی محکمی ته مراجعه وکی موږ یوازی دونه قدر ویلای سو چه سرقلفی په شریعت مقدس کی جواز لری.

وممن افتی بلزوم الخلو الذی یکون بمقابلة دراهم ید فعها للمتولی اوالمالک العلامة المحقق عبدالرحمن افندی العمادی ..... فیفتی بجواز ذلک للضرورة قیاسا علی بیع الوفاء الخ ( ردالمحتارص۱۹ج ۴ ) هکذافی ( الطحطاوی علی الدرالمختارص۱۰ج ۳ ) و ( الدرالمختار بهامش ردالمحتارص۲۷۷ج ۴ ) ( شرح المجلة لسلیم بازص۲۴۸ )

والله تعالی ﷻ اعلم وعلمه اتم واحکم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که دحج په سعی کی اشتباه وسی یاپاته سي څه حکم دي؟
## که دچاکفر یقیني ورته ثابت نه وي اوکافر ورته ووایي؟
## که بیت الله شریفه وویني حج ورباندي فرض کیږي کنه؟

(**اول سوال**): تیر کال حج ته تللی وم حاجی قارن وم افعال دعمری می وکړل دحج په سعی کی که اشتباه وسي او یا سعی بیخي ونه کړي څه حکم لری ؟

(**دوهم سوال**): دیو سړی دخولی دا خبره اظهار سوه چه څوک دطالبانو سره جنګیږي هغه کافردی یعنی ربانی کافردی او نوموړی په داخپله خبره ندامت وکړی آیا مسئله څنګه ده کافر کیږي او که څنګه ؟

(**دریم سوال**): څوک چه بیت الله شریفه دنژدی څخه وده ته عیان سی او هغه وويني ایا په ده باندی دحج فریضه ده او کنه میاشتی دحج غواړی او که نه غواړی او هم کچیری نوموړی شخص قدرت نکی پیدا دحج دفرضیت په هکله څنګه اجراءات وکړی ایا حج اداء کړی او کنه په دي شرط چه توان او قدرت ئی پیدا نکړ هیله ده محترم لوړ مقام دپورته مسائلو په اړوند معلومات قانع کننده راته ارایه کړی ؟

**داول سوال جواب**: په ترک سره دسعی دم لازمیږی او حج یی تام دی.

ومن ترک السعی بین الصفا والمروة فعلیه دم وحجه تام کذافی القدوری
﴿الفتاوی الهندیة ص۲۴۷ج۱ هکذافی الفقه الاسلامی ص۲۶۳ج۳﴾

**ددوهم سوال جواب**: که دغه ویونکی دطالبانو په مخالفینو کی صراحةً اعمال دکفر لیدلی وی پخپله او بیایی دانسبة کړی وی نو دا خو بنه خبره ده ندامت ندی څنی پکار خو دانسبت به عام ټولو مخالفینو ته نه کوی بلکه دهغه چاپه حق کی به یی کوی چه ده مشاهده کړیدی او که یی داسی شی چه موجب دکفروی نوی مشاهدة کړی نو بیاخنی اجتناب پکاردی او ندامت یی حتمی او ضروری دی او داسی نسبة کول مسلمان ته که څه هم فسق وی که موجب دکفر نوی نو موجب دفسق خو ضروردی ځکه چه دکلمه طیبة ډیر لوی شان او عظیم حرمة دی هغه څوک

چه مسلمان ته په کافر خطاب وکی شتماً نو فاسق دی او دانسبة که قلباً او عقیدة وکی نو علماء پر کفر فتوی ورکړیده.

ولو قال لمسلم اجنبی یا کافر اولاجنبیة یا کافرة ولم یقل الخاطب شیئا... کان الفقیه ابوبکر الاعمش البلخی یقول بکفر هذالقائل وقال غیره من مشایخ بلخ رحمة الله تعالی ولایکفرو المختار للفتوی فی جنس هذه المسائل ان القائل بمثل هذه المقالات انکان ارادالشتم ولایعتقده کافرا لایکفر وانکان یعتقده کافرا فخاطبه بهذا بناء علی اعتقاده انه کافر یکفر ﴿الفتاوی الهندیة صـ۲۷۸ج۲﴾ شهد واعلی مسلم بالردة وهو منکر لایتعرض له لالتکذیب الشهود العدول بل (لان انکاره توبه ورجوع) ﴿الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۳۲۷ج۳﴾ لایفتی بکفر مسلم امکن حمل کلامه علی محمل حسن اوکان فی کفره خلاف ﴿الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۳۱۶ج۳﴾.

**ددریم سوال جواب**: دحج دپاره چه کوم شرطونه فقهاء وضع کړیدی هغه شرطونه که په هر چاکی موجود سی حج باندی فرضیبری او په چاکی چه نسی موجود نو حج نه باندی فرضیږی خو یوازی دافاقی اومکی امتیاز په راحلة کی دی یعنی هغه مکی چه قادروی دپښو پرتګ راحلة نه ده ورته ضرور او هغه افاقی چه کعبه شریفه ووینی یا میقات ته ورسیږی هغه حکم دمکی لری که یی زاد درلودی سره دنورو شرائطو حج باندی فرض دی کنه ئوندی فرض او که اشهرد حج نوی یاوی او بیت الله شریف ئی ولیده نو که ورته ممکنه وه انتظاردی وکی دحج ترایامو پوری اوکه ممکنه نوه نو مؤاخذه هم نسته.

فتشترط القدرة علی المحارة الافاقی لالمکی یستطیع المشی لشبهه بالسعی للجمعة ﴿الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۱۵۵ج۲﴾

تنبیه فی اللباب الفقیر الافاقی اذا وصل الی میقات فهو کالمکی قال شارحه ای حیث لایشترط فی حقه الاالزاد (لا) الراحلة ان لم یکن عاجزا عن المشی وینبغی انیکون الغنی الافاقی کذلک اذا عدم الرکوب بعد وصوله الی احد المواقیت فالتقیید بالفقیر لظهور عجزه عن المرکب ولیفید انه یتعین علیه ان لاینوی نفلاً علی زعم انه لایجب علیه لفقره لانه ماکان واجبا وهو افاقی فلما صارکالمکی وجب علیه فلو نواه نفلاً لزمه الحج ثانیا ﴿ردالمحتار

صـ۱۵۵﴾وفی تکلیفه بالاقامة بمکة الی قابل لیحج عن نفسه ویترک عیاله ببلده حرج عظیم وکذافي تکلیفه بالعود وهو فقیر حرج عظیم ایضا﴿ ردالمحتارصـ۲۶۲ج۲﴾(بصیر) غیر محبوس وخائف من سلطان یمنع منه. ﴿الدرالمختاربهامش ردالمحتارصـ۱۵۴ج۲﴾

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

**که دپلار په ژوند کي ورونه تقسیم وکړي (۲۵)کاله وروسته بیرته ګډېږي کنه؟**

**سوال**: محترما موږ د (۳) مندو اولادی ته خپل پلار په خپل ژوند کی د (۲۵) کاله دمخه د خپل ملک تقسیم راکړیدی چه د هغه وخت څخه دغه د تقسیم ملکونه دهری ورثی په خپل لاس کی موجود دی او موږ په ډیر تکلیف دغه موروثه ملک پس له تقسیم څخه آباد کړیدی ولکن فعلاً د طرفه څخه زموږ د یو میریزی ورور چه عبدالحمید نو میږی ویل کیږی چه زه دغه تقسیم سره ګډوم او د سره څخه خپل تقسیم کوم او علاوه پر دغه زموږ د بلی مور څخه یو ورور شهید سویدی او ورثه د هغه نده پاته او د هغه حق هم دغه بل ورور جمعه ګل خپل په تصرف کی راوستی دی او موږ ورونو ته ئی حق ندی پکښی راکړی نو زه ستاد مقام څخه هیله کوم چه د رویه د شریعت معلومات راکړی چه دغه تقسیم پس له (۲۵) کالو اوس بیرته ګډیږی او کنه او د هغه شهید سوی په میراث چه دغه بل ورور جمعه ګل قبضه کړیده او د هغه په مفادئی نور ملکونه رانیولی دی موږ حق پکښی لرو او کیا د دغه دوو موا دو په باره کی و موږ ته معلومات راکړه چه موږ ستاسی د معلوماتو په وجه په حق ورسیږو.

**د اول سوال جواب**: یو سړی چه په خپل ژوند کی خپلو زامنو او اولادونو ته تقسیم ورکی او هغه هم په تقسیم سوی مال کی مالکانه تصرف وکی نو دا په حقیقت کی هبه بلل کیږی او هبه په قبض سره تا میږی یعنی که اولادونو دغه مال قبض کړی وی او تصرف یی پکښی کړی وی نو دغه د دوی شخصی ملکیت ګرځی هیڅ څوک د

پلار د مرګ وروسته حق نلري چه د دوی د شخصي ملکیت په مخ کی ودریږی او هغه د پلار کړی تقسیم سره ګډ کړی.

(و) تتم الهبة بالقبض الکامل فیشترط القبض قبل الموت《ردالمحتار صـ۵۶۹ج۴》 ومنها ان یکون الموهوب مقبوضا حتی لایثبت الملک للموهوب له قبل القبض《الفتاوی الهندیة صـ۳۷۴ج۴ هکذافی الفقه الاسلامی صـ۱۹ج۵》

والله تعالی ﷻ اعلم

**د دوهم سوال جواب**: د هغه شهید سوی ورور په باره کی باید ووایو چه که د دغه شهید مور او خور سره د عینی وروره یعنی چه په مور او پلار ورسره شریک وی یا یوازی عینی ورور پاته وه نو میراث د دوی کیږی او ناسکه ورونو ته هیڅ نه رسیږی او که دغه کسان نوه پاته نو میراث به د ټولو میریزی ورونو مشترک ګرځی حاصل دا چه د سکنی ورور په وجود کی میریزی ورور ته هیڅ نه رسیږی نو دغه جمعه ګل چه د شهید مال یی قبضه کړیدی که سکنی وی نو هغه جواب دی چه تیر سو.

فاقرب العصبات الابن ثم ابن الابن . . . . . . ثم الاخ لاب وام ثم الاخ لاب الخ 《 الفتاوی الهندیةصـ۴۵۱ج۶ 》 هکذافی 《 الدرالمختار بهامش ردالمحتارصـ۵۴۷ج۵》فیقدم ذوالقرابتین علی ذی القرابة الواحدة کالاخ الشقیق یقدم علی الاخ لاب《الفقه الاسلامی صـ۳۳۶ج۸》

والله تعالی ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## حکومت کولای سی چې شخصي مځکه استملاک کړي؟

**سوال**: که یوې شخصي مځکې ته د حکومت ضرورت سو چه دلته سړک جوړوو او په دې کې عامه فواید دی (۱) نو ایا دغه مځکه د دی شخص یعنی مالک څخه حکومت استملاک کولای سی او کنه (۲) که جواب مثبت وی چه هو نو بیا د دغه مالک پر حکومت باندی د عوض او بدلی حق سته او کنه (۳) چه حکومت و مالک ته د مځکې عوض پیسی قیمت یا بل ځای مځکه په بدل کښې ور کړی ؟

﴿ الحاج صوفی سلطان محمد ﴾

**جواب**: حکومت کولای سی چه د لاری د ضرورت په خاطر یو ثوک د خپل ملک او مځکې خرخولو ته مجبور کړی ځکه چه مصلحة عامة پر بناء دی لکن په دی شرط چه دهغه وقت مناسب قیمت به و اصلی مالک ته ورکوی او دغه قیمت به تر مخه ورکوی و روسته به حکومت په مځکه کی تصرف کوی او لارکوی به ئی.

لدی الحاجة یؤخذ ملک کائن من کان بالقیمة بامر السلطان ویلحق بالطریق لکن لایؤخذ من یده مالم یؤدله الثمن انظر الی مادتی ( ۲۵۱ ) ( ۲۶۲ ) انتهی ﴿ المجلة الم۔۱۲۱۶﴾

هکذافی ﴿ شرح المجلة لسلیم باز ص۔۴۳﴾ و ﴿ الاتاسی ص۔۱۵۸ج ۴ ﴾ و ﴿ الفتاوی الخانية بهامش الهندية ص۔۲۷۹ج ۱﴾ و ﴿ الفقه الاسلامی ص۔۵۰۹ج ۵ وص۔۷۶ج ۴ ﴾

وکذلک یحق للدولة التدخل فی الملکیات الخاصة المشروعة لتحقیق العدل والمصلحة العامة ﴿ الفقه الاسلامی ص۔۵۱۸ج ۵ ﴾

القبض لیس بشرط فی البیع الاان العقد متی تم کان علی المشتری ان یسلم الثمن اولاثم یسلم البائع المبیع الیه ﴿ المجلة الم۔۲۶۲ ﴾

لان حق المشتری تعین فی المبیع فیقدم دفع الثمن لیتعین حق البائع بالقبض ﴿ شرح المجلة سلیم باز ص۔۱۳۶ ﴾

والله تعالیٰ ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## په هوټل کي دتاجائي په نوم پيسي اخيستل څه حکم لري؟
## دښاروالي ټاکلي نرخونه که څوک ونه مني څه جزائي ده ؟
## که دښاروالي دکان وغيره په درې کاله کي اباد نه کړي مسترد کيږي کنه؟

بمقام محترم رئیس صاحب دارالافتاء السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

**سـوال** : ریاست شاروالی قلات ولایت زابل طی استعلامیه شرعیة تاریخی ۱۳۷۶/۹/۱۷ خویش در موارد ذیل طالب هدایت گردیده اند

(۱) مراجعین که غرض صرف نان به هوټل میایند اکثراً از نان خشک وچای استفاده میکنند شب رامیگزرانند به صبح آن از طرف هوټلی بنام تاجائی پول ازنزدش اخذ میکند لطفاً معلومات دهید که اخذ تاجائی در شریعت جواز دارد یانه ؟

(۲) نرخهائی جنس که از طرف شاروالی تعین میشود ودکانداران از نرخ معینه اضافه ستانی میکند درصورت اضافه ستانی ازنگاه شریعت چه جزاء دارد ؟

(۳) ماده (۲۷) قانون شاروالی که ازوقت شاهی میباشد حکم میکند هر شخصیکه ازدولت زمین برای آبادی سرپناه ودکان خریداری نماید ودرظرف سه سال آباد نکند زمین مسترد میگردد ازنگاه شریعت معلومات دهید که چه طوراست لهذا بمقام محترم بعرض میرسانیم که درزمینه هدایت مکفی اعطاء فرمائید تابرجښش هدایت شرعی صادرگردد ؟ (مولوی عبدالباقی رئیس محکمه مرافعه زابل)

**جواب سوال اول** : پولی که بنام تاجائی هوټلی از مراجعین اخذ میکند جائزاست اگر شروط آتیه ملحوظ شده باشد اول اینکه دروقت آمدن مراجعین به هوټل باید تاجائی یا اجرة شب متعین شود دوهم اگر هوټل دارای اطاق هائي جداګانه باشد باید یک اطاق تخصی برای یک مسافر یا جمعی رفقاء داده شود که دران اشتراک غیر نمیباشد سوم اگر هوټل دارای اطاق های تخصی نبود بلکه مهمان خانه وسیعی داشت که دران مسافرین شب میگذرانند باید که جای خواب هر مسافررا

هوتلی متعین کند زیراکه تعین محل معقود علیه دراجارة شرط است (چهارم) وقت برای مسافر باید تعین شود مثلا یک شب یایک روزیاشباروزیاغیرآن .

ومنهـا بيـان محل المنفعة حتى لوقال آجرتك احدى هاتين الدارين او احد هذين العبدين او استاجرت احد هذين الصانعين لم يصح العقد ومنها بيان المدة فى الدورو المنازل والحوانيت ﴿الفتاوى الهندية صـ۴۱۱ج۴﴾ هكذافى ﴿بدائع الصنائع صـ۱۸۱و۱۸۰ج۴﴾ امابيان محل المنفعة فيحصل بمعرفة العين المستاجرة بعينها ﴿الفقه الاسلامى صـ۷۳۷ج۴﴾
اما شروط الاجرة فهى اولاانتكون الاجرة مالامتقوما معلوما وهذا باتفاق العلماء .
.... والاصل فى اشتراط العلم بالاجرة قول النبى ﷺ من استاجراجير افليعلمه اجره ﴿الفقه الاسلامى صـ۷۴۹ج۴﴾ وجهالة الاجرة تفسد الاجارة ﴿المبسوط صـ۴۱ج۱۶﴾ .

**جـواب سـوال دويـم** : دربارهٔ تسعیر باید این چند نکات مهم راملحوظ داشته باشد (اول) اینکه تسعیر درشریعت مقدس ممنوع است حضرت نبی کریمﷺ ازتسعیر انکارکرده وآنرا منع فرموده وفقهاء کرام حاکم راازتسعیر منع کرده است (دویم) اینکه فقهاء کرام حاکم رااجازهٔ تسعیر وقتی داده است که ضرورة شدیده واقع شده باشد وضرورة شدیدة اینست که دکاندار یا تجار اشیاء خوردنی رابغبن فاحش بیع میرساند (سوم) غبن فاحش اینست که قیمت یک چیزرا دوچند اخذ میکند مثلاً قیمت اصلی پنجاه (۵۰) دراهم باشد واو صد (۱۰۰) روپیه اخذ میکند (چهارم) اگر کسی یک چیزی راخلاف نرخ مقرر شده بفروخت بر سانده بیع او صحیح ونافذاست وقاضی نمیتواند که آن رافسخ کند (پنجم) اگر کسی ازنرخ مقرر شده خلاف ورزی کند حاکم رااجازه نیست که فوراً باو تعزیر بدهد بلکه یکبار باید باووعظ کند وزجر لفظی بکند ودویم بار هم باید همین معامله شود وبار سوم اگر خلاف ورزی کرد حاکم رااجازه است که باوتعزیر بدهد وحبس کند (ششم) بعضی فقهاء بلکه اکثر فقهاء فقه حنفی میگویند که اگر بائعی ازخوف ضرب امام بیع موافق نرخ مقرر شده بکند لکن مع هذا باین نرخ راضی نباشد این مبیعه برای مشتری حلال نباشد (هفتم) تعزیر دراین مورد مفوض برای امام است .

وبنـاء عليه الاصل عدم التسعير ولايسعر حـاكم على النـاس وهـذا متفق عليه بين الفقهاء ﴿ الفقه الاسلامي صـ۵۸۸ج ۳ ﴾ ولاينبغي للسلطان ان يسعر على النـاس الاان يتعـدى ارباب الطعـام تعديافاحـشافي القيمة فلاباس بـذلک بمشورة اهل الخبرة به ﴿ الاختيار لتعليل المختارصـ۱۶۱ج ۴ ﴾ هـكـذافي ﴿ تبيين الحقائق صـ۲۸ج ۶ ﴾ و ﴿ الهندية صـ۴۶۹ج ۴ ﴾ و ﴿ بدائع الصنائع صـ۱۲۹ج ۵ ﴾ و ﴿ حاشية الطحطاوي على الدرالمختار صـ۲۰۱ج ۴ ﴾ و ﴿ ردالمحتار على الدرالمختارصـ۲۸۳ج ۵ ﴾ و ﴿ اللباب صـ۱۶۷ج ۴ ﴾ و ﴿ البحر الرائق صـ۲۰۲ج ۸ ﴾ ولايسعر حـاكم لقوله عليه الصلوة والسلام لاتسعروافـان الله هـو المسعر القابض الباسط الرازق ..... وفی ردالمحتار لکن رواه احمد والبزارو ابو يعلى فی مسانيدهم وابوداود والترمذی وصححه و ابن ماجه فی سننهم عن انس رضی الله تعالىٰ عنه قال قـال النـاس يارسول الله غـلا السعر فسعر لنـا فقال ان الله هو المسعر القابض الباسط الرازق واني لارجوان القی الله وليس احـد منكم يطالبني بمظلمة فی دم ولامال و اسناده على شرط مسلم وصححه ابن حبان والترمذی ﴿ ردالمحتارصـ۲۸۳ج ۵ ﴾ ولان الثمن حـق البائع وكـان اليه تقديره فلاينبغی للامام ان يتعرضّ لحقه الااذاكـان ارباب الطعـام يحتكرون على المسلمين ويتعـدون فی القيمة تعديـا فـاحـشـا وعجز السلطان عن منعه الابالتسعير بمشـاورة اهل الرءی والنظر.. والغبن الفاحش هوان يبيعه بضعف قيمته ﴿ البحر الرائق صـ۲۰۲ج ۸ ﴾ قوله ويتعـدون عن القيمة تعد يافاحشا بان يبيعوا قفيـزا بمائـة وهـو يـشترى بخمسين ﴿ العناية على الهداية بهامش فتح القدير صـ۴۹۲ج ۷ ﴾ هـكـذافی ﴿ الطحطاوی صـ۲۰۱ج ۴ ﴾ و ﴿ ردالمحتارصـ۲۸۳ج ۵ ﴾ تنبيه اذاباع بغير ما سعر الحـاكم اجازه القاضی ای لايفسخه ﴿ طحطاوی على الدرالمختارصـ۲۰۱ج ۴ ﴾ هـكـذافی ﴿ تبيين الحقائق صـ۲۸ج ۶ ﴾ و ﴿ البحر الرائق صـ۲۰۲ج ۸ ﴾ و ﴿ الهداية صـ۴۷۰ج ۴ ﴾ وينبغی للقاضی وللسلطان ان لايعجل بعقوبة من باع فوق ماسعر بل يعظه ويزجره وان دفع اليه ثانيا فعل به كذلک وهدده وان رفع اليه ثالثاحبسه وعزره حتى يمتنع عنه ويمتنع الضررعن النـاس ﴿ البحر الرائق صـ۲۰۲ج ۸ ﴾ هـكـذافی ﴿ تبيين الحقائق صـ۲۸ج ۶ ﴾ وفی المحيط انكان البائع يخاف اذاارادفی الثمن على ماقدره او نقص فی البيع يضربه الامام اومن يقوم مقامه لايحل للمشترى ذلک لانه فی معنى المكره ﴿ البحر الرائق صـ۲۰۲ج ۸ ﴾ و ﴿ تبيين

الحقائق صـ۲۸ج ۶ ﴾ و ﴿الـدرالمختار بهـامش ردالمحتارصـ۲۸۳ج ۵ ﴾ وفـی فـتح القـدیر وبماذکرنـا من تقـدیر اکثـره بتسعة وثلاثین یعرف ان مـاذکـر مما تقدم من انه لیس فی التعزیر شئ مقدربل مفوض الی رءی الامام ای من انواعه فانـه یکون بالـضرب وبغیره مماتقـدم ذکـره ﴿البحرالرائق صـ۴۷ج ۵ ﴾ وعزرکل مرتکـب منکـر او مـؤذی مـسلم بغیر حـق بقـول او فعل ﴿ الـدرالمختار بهـامش ردالمحتار۱۹۹ج ۳ ﴾

پس ازعبارات فوق الذکر معلوم شدکه تعزیر وقتی جائز است که چارهٔ دیگر سوی تعزیر باقی نماند واین تسعیر باید که بمشورهٔ مردمی باشد که آنان باحوال خلق ورعیت وقیمتهائی اشیاء دانا یان باشند ودرین بارهٔ معلومات زیاد دارند صرف رءی حاکم اعتبارندارد والله الموفق للصواب.

**جـواب سـوال سـیوم** : چون این قانون شاروالي ها یک شرط متعارف آنانست وشرط متعارف درشریعت مطهره صحیح ومتعبر است ولازم الوفاء است اگرچه از مقتضیات عقد نباشد وملایم باونباشد خواه عام باشد خواه خاص اگرچه که حادث باشدکه درکتب فقهاء کرام یافته نمیشودبعد ازان که مخالف نص شرعی یعنی کتاب وسنت واجماع نباشد پس بناء براین شرط مذکوراقدام شاروالی به مستردی آن مبیعه طبق ماده مذکوردراستفتاء از مشتری صحیح وبجااست.

البیع بشرط متعارف وهو الشرط المرعی فی عرف البلدة صحیح والشرط معتبر مثلاً لو باع الفروة علی ان یخیط بها الظهاراة اوالقفل علی ان یسمره فی الباب او الثوب علی ان یرقعه یصح البیع ویلزم علی البائع الوفاء بهذه الشروط ﴿ المجلة المـ۱۸۸ ﴾ فالحاصل ان المذهب عدم اعتبار العرف الخاص ولکن افتی کثیر من المشایخ باعتباره آه ﴿مجموعة الرسائل لابن العابدین رساله نشر العرف صـ۱۱۶ج ۲ ﴾ العادة محکمة یعنی ان العادة عامة کانت او خاصة تجعل حکماً لاثبات حکم شرعی ﴿المجلة المـ۳۶ ﴾اما العرف الخاص فلایثبت به الاحکم خاص مثلا سیاتی فی المادة (۱۸۸) من المجلة ان البیع بشرط متعارف فی عرف البلدة صحیح والشرط معتبر الخ والله تعالی اعلم قوله البیع بشرط متعارف-ای وانکان لایقتضیه العقدولا یلایمه وافادت هذه الجملة انه یعتبر العرف الخاص الحادث ﴿شرح المجلة الاتاسی صـ۶۴ج۲ ﴾ والله تعالی جل جلاله اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

**دمیره قربیان کونده په دي مجبورولای سي چې دمیره په قربیانوکي به میره کوي؟**

**سوال**: یو ښځه چه کونده سی ایا دمیره قریبان ئی دی ته مجبوره ولای سی چه دمیره په قریبانو کی یو څوک په نکاح کی کنه ؟

**جواب**: دغه ښځه چه کونده سوی ده دآینده دپاره ددی خپل رضائیت اعتبارلری که دمیره په اقرباؤ کی ئی څوک خوښ وو که ئی بل څوک خوښ وو یائی په بل قوم او قبیله کی څوک خوښ وو هغسی دی ورسره وسی او هلته دی په نکاح ورکول سی نه دمیره قریبان داحق لری چه ونکاح ته یی مجبوره کړی نه دښځی خپل قریبان داحق لری چه ددی بی رضاء یی یوځای ورکی هر ځای چه ورکول کیږی داښځه به په خوله اقرار کوی چه په دغه ځای زه خوشحاله یم یوازی سکوت یی هم اعتبار نلری که ښځه واده سوی هم وه او که ددی خوښه اورضاء نوی او یو قریب ئی په نکاح ورکی هغه نکاح باطله ده او هیڅ صحت او جواز نلری همدارنگه دامیرالمؤمنین( کان الله تعالی له) فرمان صادر سوی دی چه هیڅوک کونده ونکاح ته نسی مجبورولای هر څوک چه مخالفت کوی باید فوراً دامارت مسئولینو ته خبر ورکول سی او هغه یی مخ ونیسی.

( یاایهـا الـذین امنـو الایحـل لکـم ان تـر ثـو االنـسـاء کـرهـا الایة سورة النـسـاء آیةلـ۱۹ ) ای تا خذوهن کمایؤ خذ المیراث وتـز وجـوهن کـارهـات اومکرهـات ( تفسیر المظهری صـ۴۹ج ۲-۲ )هـکـذافی ( روح المعـانی صـ۲۴۱ج ۴ ) ان النـبی ﷺ قال لاتنـکح الایم حتی تستامر ولاتنـکح البکر حتی تستاذن الحدیث ( بخاری شریف صـ۷۷۱ج ۲ ) بـاب اذازوج ابنـته وهـی کـارهـة فنکـا حـه مـردود حـد ثـنـا اسماعیل ..... عن خنسـاء بنـت خـذام الانـصـاریة ان ابـا هـا زوجهـا وهـی ثـیب فکرهـت ذلـک فاتـت رسـول الله ﷺ فـر دنکـاحهـا ( بخاری شـریف صـ۷۷۱ج ۲ ) و ( مشکوة المصابیح صـ۲۷۰ )

امان کانت المرءة ثیبا فرضا ها لایکون الابـالقول الـصریح ....... ولایکتفی منـهـا بالصمت الخ( الفقه الاسلامی صـ۲۱۳ج ۷ وردالمحتارصـ۳۲۷ج ۲ ) .

( نوټ ) : که چیری مسئولین په دغسی واقعاتو خبر سی نو باید فوراً ئی مخ ونیسی ځکه چه دامیرالمؤمنین په فرمان کی راغلی دی چه قاضی باید دغه کسانو ته شدید تهدید او جدی تعزیر ورکړی.

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که فضولي بيع وکړي اصلي مالک څه وخت دفسخې حق لري؟

**سوال**: فضولی چه کله بیع وکړی او بیا اصلی مالک خبرسی او اصلی مالک سکوت وکړی نه قبولی وکړی نه فسخ یو څه وقت وروسته چه دهغه مبیعی قیمت ډیر زیات سوی وی نو بیا اصلی ملک فسخه دبیعی وکړی نو ایا حق دفسخی لری او کنه او دغه سکوت یی حکم د اجازی لری او کنه ؟

﴿عبدالرحیم﴾

**جواب**: بیعه دفضولی موقوف ده پر اجازه دمالک که هغه اجازه وکړه بیع صحیح ده کی یی اجازه نه وکړه بیع نده صحیح او سکوت دمالک اجازه نه بلل کیږی او اجازه عامه ده که قولی وی او که فعلی وی مثلاً که اصلی مالک دفضولی تحسین او آفرین وو ایه یا یی ثمن طلب کی او قبول یی کی یائی ثمن وفضولی یا بل چاته هبه کی یائی قباله ورکړه یائی اقرار خط یعنی بیع خط امضاء کی داټول اجازة بلل کیږی او که داټول نوه او مالک خالص سکوت مختار کړی وو نو داسکوت ته اجازه نه ویل کیږی.

البیع الموقوف یفید الحکم عند الاجازة ﴿ المجلة المـ۳۷۷ ﴾ والاجازة تکون قولا وفعلاً فالقول کقول المالک اجزت اواحسنت اواصبت وکطلبه الثمن من المشتری وهبته منه ..... والفعل کاخذالثمن او اخذ صک به (جامع الفصولین) واما سکوت المالک عند بیع الفضولی فلایعد اجازة وقبولا ﴿ شرح

المجلة لسليم باز صـ۲۱۱) لاينسب الى ساكت قول يعنى انه لايقال لساكن قال كذا (المجلة المـ۶۷) فلو رأى اجنبيا يبيع ماله فسكت لايعد سكوته اجازة او توكيلا (شرح المجلة لسليم باز صـ۴۷) هكذافى (الفتاوى البزازية بهامش الهندية صـ۴۸۹ ج ۴) هكذافى (شرح المجلة للاتاسى صـ۱۸۲ ج ۱)

والله تعالیٰ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## دپلار له خوا دمدرسې لپاره
## وقف سوي مځکه زوی په میراث کې داخلولای سي کنه؟

**سوال**: محترما زما مرحوم پلار یو اندازه مځکه په خپل ژوند کی د پاره د مدرسی وقف کړی وه چه زما د پلار په ژوند د غه مدرسه موږ جوړه کړه او زما پلار خپل وصیت کړی دی چه دغه مځکه دمدرسی په میراث کی زماد ورثی نه راځی او ددغه مدرسی پالنه به زما خپل زوی ملانبائیسته گل کوی چه فعلاً پر دغه مځکه مدرسه جوړه تیاره ده ولکن فعلاً زمایو میریزی وروړ چه عبدالحمید نومیږی غواړی چه دغه مدرسه هم په میراث کی داخله کی او په مابین کی د ورثی ئی تقسیم کی نوزه ستاد مقام څه هیله کوم چه د رویه د شریعت معلومات راکړی چه دغه وقف سوی مدرسه په میراث کی داخلیږی او کیا چه موږ ستاد هدایت سره سم هغه کاراو کړو او زموږ مشکل حل سی؟

(ملانبائیسته گل)

**جواب**: کله چه یو څوک یو مځکه د مدرسی یا مسجد دپاره وقف کی نو دغه مځکه بیا په میراث کی نه حسابیږی او بل چا لره مالکانه تصرف کول پکښی حرام دی او بیع د دغسی موقوفه مځکی صحیح نده.

واما حكمه فعندهما زوال العين عن ملكه الى الله تعالى وعندابى حنيفة رحمه الله تعالى حكمه صيرورة العين محبوسة على ملكه بحيث لاتقبل النقل عن ملك الى ملك والتصدق بالغلة المعدومة متى صح الوقف بان قال جعلت

ارضی هذه صدقة موقوفة مؤبدة اواوصیت بها بعد موتی فانه یصح حتی لایملک بیعه ولایورث عنه (الفتاوی الهندیة ص۳۵۲ج۲) (هکذافی التتار خانیة ص۶۸۸ج۵) و(الاختیار لتعلیل المختار ص۴۰ج۳) موقوفه زمین کی مشتری سی اس کو خریدنی کا عدم جواز (امدادالفتاوی ص۵۸۶ج۲) وقف مین ذاتی تصرف حرام هي (احسن الفتاوی ص۴۱۴ج۶)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

**له شرعي صلحې یاله یوجزء څخه مخالفت څه حکم لري ؟که چاته قسم متوجه سي دمدعی حضور غواړي اوکه دهغه وکیل هم دقسم طلب کولای سي؟**

(**اول سوال**): زموږ یعنی احمد او کمال الدین په مابین کی علماؤ شرعی صلح وکړه او دواړو پری رضا او قناعت وکړی نو ایا یو دطرفینو کولای سی چه ددغه فیصلی یا دیو جزء څه دهغه فیصلی مخالفت وکړی ؟

(**دوهم سوال**): دفیصلی په یو جزء کی راغلی چه مبلغ (۲۷۱۹۲۹۸) کالداری پر ذمه دکمال پاته دی او هره میاشت به ددغه مبلغ څه کمال ۱۵ لکه کالداری واحمد ته ورکوی اوس دری کاله تیر سوی دی او کمال ډیر لږ مبلغ احمد ته ورکړی دی او دابهانه کوی چه ماد دکاندارانو څخه خپل پور نه دی حصول کړی بهانی اوعذرونه کوی نو ایا دغه عذرونه دقبول وړدی کنه او حق لری کنه ؟

(**دریم سوال**): کله چه یو شرعی دعوی په مابین کی ددو ۲ کسانو دائره سی او مدعی علیه ته قسم متوجه سی نو ایا اصلی مدعی به حاضریږی او د قسم طلب به کوی او که دهغه وکیل هم کولای سی چه مطالبه دقسم وکړی ؟

(حاجی محمد انس)

**داول او دوهم سوال جواب**: کله چې په مابین کې ددو (۲) کسانو شرعي صلح وسي نو هیڅ کله یو دجانبینو نسي کولای چه دهغه صلحې څه رجوع وکړي بلکه ددوی تر مابین نزاع ختمیږي او ددوهم ځل لپاره قاضي نسي کولای چه په همدغه موضوع کې ددوی دعوی واوري او نه یود جانبینو کولای سي چه دیوی جزیي څه دشرعي صلحې انکار وکړي او نه بهانې او عذرونه ورته جوازلري نو پردي بناء حتمي ده چه کمال الدین به احمد ته هره میاشت (۱۵) لکه کالداري ورکوي نوري بهانې او حیلې ئې قطعاً دقبول وړندي.

ان للصلح احکاماً بعضها اصلي لاینفصل عنه جنس الصلح المشروع وبعضها دخیل...اما الاصل فهو انقطاع الخصومة والمنازعة بین المتداعیین شرعاحتی لاتسمع دعواهما بعد ذلک وهذاحکم لازم جنس الصلح (بدائع الصنائع ص۵۳ج۶) هکذافي (الفقه الاسلامي ص۳۲۱ج۵) اذاتم الصلح فلیس لواحد فقط من الفریقین الرجوع عنه (المجلة الم۱۵۵۶).

**ددریم سوال جواب**: کله چه یو صحیح دعوی قاضي واوري او منکر ته قسم متوجه سي نو په طلب کې دقسم مدعی اووکیل دهغه مساوي دي یعني لکه څنګه چه اصلي مدعي کولای سي چه طلب دقسم دمنکر څه وکړي همدارنګه وکیل دهغه کولای سي چه مطالبهٔ دقسم وکي ضرورت ودي ته نسته چه اصلي مدعي احضارسي.

فالوکیل والوصي والمتولي وابو الصغیر یملک الاستحلاف--فله طلب یمین خصمه--ولایحلف-احدمنهم (الدرالمختاربهامش ردالمحتارص۴۲۶ج۴ط بیروت) تجری النیابة فی التحلیف ولکن لاتجری فی الیمین فلو کلاء الدعاوی ان یحلفوا الخصم (المجلة الم۱۷۴۵)

واللہ تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که (۱۷)کاله وروسته دشفع دعوی وکړي ؟

**سوال** : ما یو اندازه ملک په بیع قطعی دا (۱۷) کا لـه د مخه رانیولی وو چه فعلاً ذوالید زما په تصرف کی قرار لری او پسله (۱۷) کالو یو نفر ملا عبدالحلیم زما په رانیولی مځکی د شفع دعوی کوی او دغـه نفر یو خط دخپل تربور پلاس کی ورکړی ؤو او نوشته کړیوه چه ځمکه دعلی محمد څخه خلاصه کړی چه هغه خلګ وخپلی مزدوری ته وبل ځای ته ولاړه او دی خپله په ولایت هرات کی دی نوزه ستاڅخه هیله کوم چه درویه دشریعت وماته ددغه شفع په باره کی معلومات راکړی چه دجانب مقابل حق ددعوی کیږی او که نه ؟

**(علی محمدولدعبدالمحمد )**

**جواب** : دغه دشفعی دعوه کوونکی که واقعاً د (۱۷) کاله څه وروسته دعوه کوی نو وبه ګورو که دی ډیروقت له مخه ددغه رانیولو څه خبر سوی وو اودستی ئی فوراً طلب دشفعی نوو کړي یائی دستی طلب کړی وو خو دشاهدانو په حضور کی ئی نووکړی او نه ئی وروسته دشاهدانو په حضور کی طلب کړی وو نه پخپله نه دوکیل یا مکتوب په لار او یو څه مدة تیره سوی وه یائی دشاهدانو په حضور کی هم طلب کړی وی خو بغیر له شرعی عذره یو میاشت تیره سی او په محکمه کی طلب دشفعی ونکړی نو په دغه ټولو صورتو کی حق دشفعی ساقطیږی ، او که دغه ځنډ دشرعی اعذار وپه وجه وو یا دا (۱۷) کاله دی خبر نه وو او په دا اوس کی خبر سوی وو او طلب دشفعی ئی کړی وو فوراً او بیائی دشاهدانو په مخ کی طلب وکی او دستی ئی محکمی ته څوک راواستوی نو په دی صورتوکی حق دشفعی لری او ساقطیږی نه .

یلـزم فـی الـشـفعة ثـلاث طلبـات وهـی طلـب المـو اثبة وطلـب التقریـر والاشـهاد وطلـب الخـصومة والتمـلـک ( المجلة المـــ۱۰۲۸ ) یلـزم الـشـفیع ان یقـول کلاما یدل علی طلب الشفعة فی المجلس الذی سمع فیه عقـدالبیع فی الحـال

الـخ ﴿ المجلة المــ۱۰۲۹ ﴾ لـو اخـر الـشفيع طلـب التقريـز والاشـهـادمدة يـمكن اجراء ، فيها ولو بارسال مكتوب يسقط حق شفعته ﴿ المجلة المــ۱۰۳۳ ﴾ لو اخر الشفيع طلب الخصومة بعد طلب التقريـر والاشهاد شهرابدون عـذرشرعی كوجوده فی دیـاراخری یسقط حـق شفعته ﴿ المجلة المــ۱۰۳۴ ﴾ هـذا قـول محمـد وبـه یفتی كمافی ردالمحتارعن شيخ الاسلام وقاضيخان فی فتاواه وشرحه علی الجامع ومشی عليه فی الوقاية والنقاية والذخيرة والمغنی وفی الشرنبلالية عن البرهان انه اصح مایفتی به ومقابله مافی التنویرو الكنـز والهداية وغيرها وهو ظاهرالر واية من انه لاتسقط . الشفعة بتاخير طلب الخصومة مطلقا . . . . . لمافی شرح المجمع عن الجامع الخانی الفتوی اليوم علی قول محمد لتغير احوال الناس فی قصد الاضرار وحيث كان افتاء هم بخلاف ظاهرا لرواية لتغير الزمان فلاير جح ظاهرالرواية عليه وانكان مصححاً ايضًا افاده فی ردالمحتار ﴿ شرح المجلة للاتاسی صـ۶۱۸ج ۳ هكذافی ردالمحتارصـ۱۵۹ج ۵ ﴾ لان التاخير الذی یقع بعذرشرعی لایسقط حق الشفعة ﴿ دررالحكام صـ۸۰۹ج ۲ ﴾

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که دسرقلفي په دکان دملکيت دعوی وسي څه حکم لري ؟

**سوال**: محترم رئیس صاحب دارالافتاء عرض ما غریبه بشما اینست مدعی ما خود بخود اقرار کرده است که محمد اکرم زوج گوهر نامه مذکور درمقابل کرایه وامتیاز ( سرقلفی ) از حاجی عمران دکان رابدست آورده ودر حضور محکمه محترم اخصاصی نیز همین اقرار خود تصدیق کرده است حالا دعوی ملکیت وی صحت دارد یانه ؟ یعنی اودعوی میکند که ما ملکیت دکان را از عمران خریداری کرده ام حالا شما حق ندارید که ازما کرایه بخواهی وبشما سرقلفی رانمید هم ازشما محترم درین باره فتوی میخواهم ؟

**جـــواب**: این مدعی اگر دعوی خریدن ملکیت از عمران ثابت کند هم حق ندارد که سرقلفی دکان از گوهر نامه اخذ کند زیرا که حکم سرقلفی مثل حکم خریدن وملکیت شخصی است یعنی این سرقلفی هم خریده میشود هم هبه میشود هم بمیراث باقی میماند پس هیچکس حق ندارد که سرقلفی دکان بدون امضاء صاحب سرقلفی ازو اخذ کند باین شرط که صاحب سرقلفی بدادن کرایه یعنی اجرة مثل برای مالک اصلی دکان همیشه مداومت ورزیده باشد.

وفائدة الخلو انه کالملک فتجری علیه احکامه من بیع واجارة وهبة ورهن ووفاء دین الخ ( غمز عیون البصائر للحموی صـ۳۲۲ج۱ ) ونقل فتوی الفاسیین بجواز بیع الخلو ( الفقه الاسلامی صـ۷۵۲ج۴ ) وممن افتی بلزوم الخلو الذی یکون بمقابلة دراهم یدفعها للمتولی او المالک العلامة المحقق عبدالرحمن افندی العمادی ..... فیفتی بجواز ذلک للضرورة قیاسا علی بیع الوفاء ( ردالمحتار صـ۱۹ج۴ ) وقال فلا یملک صاحب الحانوت اخراجه ولا اجارتها لغیره مالم یدفع له المبلغ المرقوم ( ردالمحتار صـ۱۹ج۴ و صـ۱۸ج۵ )

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## لوڼې په ميراث کې حق لري کنه ؟که ئې

## لري او جائداده ئې څوکاله په زور خوړل سوي وي دهغوکلونو دحاصلو حق لري کنه!

**سوال** : زه حيات الله د محمد رفيق زوی ستاسی دعالی مقام څه هيله لرم چه ددغی موضوع په هکله باندی چه لاندی ليکل کيږی دشرعی او داسلامی لاری په پيروی دحقوقو دورکړی په هکله معلومات راکړی دموضوع جريان دادی يو سړی چه زماخسردی (۲۲) کاله پخوا وفات سويدی يعنی په (۱۳۵۰هـ) دهغه څخه يوه ښځه او (۴) لوڼی پاته سويدی چه زوی هيڅ نلری او هم ده دی مړی دکور پر شيانو علاوه (۲) دانګورو باغونه (۲) باغچی (۴) داوسيدو سرايونه او يوه ټوټه خالصه مځکه ميراث پاته سول په مجردی چه دی وفات سو دهغه دوه وريرونه عبدالرسول او امان الله چه په ويش او جايداد سره جدا وه ددغه ميت ټول جايداد او شته يی تصرف کړل وروسته دوی دواړو دغه داکا جايداد او سرايونه په خپل مينځ کی بيله ددغو وارثانو دخبر تيا څخه په خپلو منځو کی په پټه وويشل چه اوس يو د دغو (۲) تنو څخه امان الله مړدی او زامن يی سته (۲۲) کاله يی داټول جايداد په زور خوړلی دی حال داچی يو واری په کال (۱۳۵۷هـ) کی دغو ښځو دخپل حق طلب وکړی دوی دخپل قدرت اوزور په واسطه تهديد شروع کړی بيا وروسته دخپلوانو د مرکو په واسطه ئی دخپل حق غوښتنه وکړه مګر دوی وايی دوی ميراث دی حق نلری نو ستاسی دلوړ مقام څخه هيله کوم چه پدی باره کی د شرعی مطابق مفصل معلومات راکړه سی چه د هری يوی حق څونه کيږی او د (۲۲) کلو دحصول حقوق لری که څنګه ؟

(حيات الله ولد محمد رفيق)

**جواب** : ټول مال دميت به (۲۴) ځايه سی (۴-۴) حصی به لوڼوته ورکول سی چه مجموعه (۱۲) سی او (۳) حصی به زوجی ته ورکی چه مجموعه (۱۹) حصی سی پاته پنځه حصی که د متوفی د وفات په وقت کی د هغه پلار ژوندی وو دهغه دی او که هغه نوو نو بيا د متوفی ورونودی که په هغه وقت کی ژوندی وه که هغه نوه نو بيا د متوفی دوريرونو دی چه دغه (۵) حصی به علی السويه سره تقسيموی او دحصول په باره کی بايد ووايو چه اولاً خودی صلح

ورسره وسی لکه آیة کریمة کی راغلی دی (والصلح خیر) او که صلح نوی نو بیا به وگورو که دغه حصه مځکه یا باغ چه زوجی اولونو ته رسیږی که د میت د وفات په وقت کی اجاری ته آماده وو نو اجرة مثل ده دغه (۲۲) کالو به ورکوی او که یی پخپله وکرلو ته اماده کړی وه نو یی حکم دمزارعة دی (یعنی چه څوک چاته مځکه په کښت ورکی په نیمی یا دریمه یا څلورمه) بیا به اصطلاح ته کتل کیږی چه عرف پر نیمی دی که دریمه هغه مقدار به ځنی اخلی او که هسی بیکاره پاته وه نو که یی ضرر مځکی ته رسولی وو دهغه ضمان به ورکوی حاصل دا چه حصول د دی (۲۲) کالو نسی ځنی اخستلای او دغه شیان چه وریرونو قبضه کړی دی او ښځو ته خپل حقوق نه ورکوی داګناه کبیره ده قطعی حرام دی ښځی خپل حقوق لری په میراث کی په قرآن کریم ثابت دی که څوک په خبرسی او بیا داسی انکار وکی چه ښځی میراث دی حق نلری په کافر کیږی.

امابنات الصلب..... النصف للواحدة والثلثان للاثنتين فصاعدة (سراجی صـ۸) اماللزوجات... الثمن مع الولد اوولد الابن (سراجی صـ۷) واذا اختلط الثمن بكل الثانی اوببعضه فهو من اربعة وعشرين (سراجی صـ۱۹) والعصبة - مطلقا - كل من ياخذ من التركة مابقته اصحاب الفرائض (شریفیه صـ۱۱) اولٰهم بالميراث جزء الميت ای البنون....... ثم اصله ای الاب ثم الجدای اب الاب وان علا..... ثم جزء ابيه ای الاخوة ثم بنوهم وان سفلوا الخ (شریفیه صـ۴۶) واذازرع الغاصب الارضٌ فانكانت الارضٌ ملكا فان اعدها صاحبها للزراعة فيكون الامر مزارعة بين المالک والغاصب ويحتكم الى العرف فی حصة كل منها النصف اوالربع مثلاً وانكانت معدة للايجار فالناتج للزارع وعليه اجر مثل الارضٌ وان لم يكن شئ مماذكر فعلى الغاصب نقصان ما نقص الزرع الخ (الفقه الاسلامی صـ۷۳۲ج۵) هكذافی (ردالمحتارصـ۱۳۸ج۵)

دوسری کی چیز پر بزور قابض ہونا اور اسمیں تصرف مین لانا سراسر ظلم اور غصب ہیں حدث شریف میں ہیں من اخذ من الارضٌ شيئا بغير حقه خسف به يوم القيامة الى سبع

ارضین رواه البخاری اور نیز حدیث شریف میں ہیں الالاتظلمو الایحل مال امری الابطیب نفس منه رواه البیهقی ..... پس کسی حقدار کو اس کا حق نہ دینا اور اس پر بزور قبضہ کرنا یا کسی حیلہ سی اس پر قبضہ کرلینا سب حرام ہین اور قیامت کہ دن اس کی سزا پاوی گا
﴿عزیز الفتاوی ص-۷۸۳﴾

والله تعالیٰ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

**که خپلې ښځې ته ووايي(که په دې سرای کې يوه شپه راسره پاته سوې پرماخور ئې څه حکم لري؟)**

**سوال**: محمد اسماعیل با برادر خود دربین عصر وشام گفت وگوی کرده است از سرای برامد باہمرای زوجه خود باز وجه خود گفته است اگر پس به این سرای شب به ماند زوجه من بجای خواهر من است ؟

**جواب**: محمد اسماعیل که زوجۀ خود را این الفاظ گفته اگر درین الفاظ نیت طلاق کرده باشد یعنی نیت کرده باشد که پس ازین اگر درین سرای شب بماند زوجه من بر من طلاق باشد پس یک طلاق بائن واقع میشود که محتاج بتجدید نکاح میباشد واگر نیت طلاق نکرده باشد طلاق واقع نمیشود واگر درنیت اشتباہی میباشد ہم طلاق واقع نمیشود.

زید نے اپنی بیوی کو غصہ کی حالت مین بہ نیت طلاق کہا کہ تو مثل میری لڑکی اور مثل میری بہن کے ہیں اس صورت میں کونسی طلاق اس کی زوجہ پر واقع ہوئی ..... الجواب اگران الفاظ میں زید کی نیت طلاق کی تھی جیساکہ سوال سی ظاہر ہیں تو ایک طلاق بائنہ اس کی زوجہ پر واقع ہوئی .

وان نوی بانت علی مثل امی او کامی الخ برا اوظهارا او طلاقا صحت نیته ووقع مانواه لانه کنایة (الدرالمختار باب الظهار) (فتاوی دارالعلوم دیوبند ص۲۰۲ج۱۰ هکذافی ص۳۸۴ج۹) (سوال):.... ان الفاظ کی نکلنی کی بعد اس کو جب نیت کا خیال ہوا تو شک پڑگیا کہ نیت تھی یا نہیں ... الجواب قال فی الدرعلم انه حلف ولم يدر بطلاق او غيره لغا كما لو شك اطلق ام لا (ص۷۴۵ج۲)

چونکہ صورت مسئولہ میں لفظ صریح نہیں بلکہ کنایہ محتاج نیت ہیں اور نیت میں شک ہیں اس لئے طلاق واقع نہ ہوگی (امداد الاحکام ص۴۷۱ج۲).

ولو قال انت علی مثل امی او کامی فان اراد الکرامة صدق وان اراد الظهار فظهار وان اراد الطلاق فواحدة بائنة وانلم یکن له نیة فلیس بشئ (متن الاختیار لتعلیل المختار ص۱۶۲ج۳) فالکنایات لاتطلق بها قضاء الابنیة اودلالة الحال وهی حالة مذاکرة الطلاق اوالغضب (الدرالمختار) قوله قضاء قیدبه لانه لایقع دیانة بدون النیة ولو وجدت دلالة الحال فوقوعه بواحد من النیة اودلالة الحال انما هو فی القضاء فقط کما هو صریح فی البحر وغیره (ردالمحتار ص۵۰۲ج۲)

والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که په کوم سرای کي دمړو هډوکي پيداسي پردې ځمکه ابادي جائز ده کنه؟

درياست ته د دارالافتاء السلام عليكم ورحمة الله وبركاته

**سوال**: محترما زموږ دمسجد وشمالي طرف ته قبرونه دي تر ديرش كاله پخوا جوړ شوي دي چه زموږ له كوره څخه (۲۰۰) متره ليري دي او دبعضي همسايگانو په كوروكي مو هم بعضي قبرونه پيدا شوي دي چه پر هغو باندي بناوي سوي دي اوس زموږ دكور په دننه زمكه كي چه په (۲) قبالومو رانيولي ده او پر هغه باندي مجبورا بناوي كوو قبرونه پيدا شوي دي چه اجساد په كلي صورت نسته فقط په وزن (۲) خورده يا يو پاو هډوكي كيږي آيا موږ دغه بناء وكړو او كنه اوس زما او دخپلو فاميلي دوستانو په مابين كي پر دغه بناء اختلاف دي لطفاً شرعي جواب او هدايت ته ضرورت لرو او هم په دغه احاطه كي د تورو ميږيانو غارونه هم سته؟

(عبدالقدير مدير اداري راديو)

**جواب**: مستفتي بايد د دغو ځمكو په باره كي پوره معلومات وكي كچيري دغه ځمكي چه قبرونه پكښي پيدا سوي دي پخوا د مقبري دپاره وقف سوي وي او وروسته خلقو جعلي قبالي باندي جوړي كړي وي او مستفتي رانيولي وي نو د دي حكم اوس هم د وقف دي ذاتي استفاده ځني ممنوع ده دا ځمكي به بيرته د مقبري د پاره فارغه كيږي او د داسي ځمكو دپاره قبالي كه اصلي وي كه جعلي وي اعتبار نلري او كه پخوا دغه قبرونه په شخصي ملكيت كي جوړسوي وي او اوس داقبرونه زاړه سوي وي نو بيا جائزه ده چه بناء باندي وسي يا وكرل سي البته د هغه هډوكو سره به هيڅ نوعه بي احترامي نكوي.

واماحكمه (اى الوقف) فعند هما زوال العين عن ملكه الى الله تعالى وعند ابى حنيفة رحمة الله عليه حكمه صيرورة العين محبوسة على ملكه بحيث لاتقبل النقل عن ملك الى ملك والتصدق بالغلة المعدومة متى صح الوقف بان قال

جعلت ارضی هذه صدقة موقوفة مؤبدة اواوصيت بها بعد موتی فانه يصح حتی لايملک بيعه ولا يورث عنه (الفتاوى الهندية صـ۳۵۲ج۲)(هکذافی الهداية صـ۳۲۸ج۲)وفيها واذاصح الوقف لم يجز بيعه ولاتمليکه (الهداية صـ۳۳۲ج۲) لايعمل بالخط والختم وحدهما الااذاکان سالما من شبهة التزوير والتصنيع فيعمل به (المجلة المـ۱۷۳۶) لکن اذاکانت الاعلامات والسندات مطابقة للاحکام الشرعية والا فلا يعمل بها (شرح المجلة للاتاسی صـ۱۱۷ج۶) ولو بلی الميت وصارترابا جازدفن غيره فی قبره وزرعه والبناء عليه کذافی التبيين (الفتاوى الهندية صـ۱۶۷ج۱) (هکذافی ردالمحتارصـ۶۵۹ج۱).

وفيه قال فی الامداد ويخالفه مافی التاتارخانية اذاصارالميت ترابافی القبر يکره دفن غيره فی قبره لان الحرمة باقية وان جمعوا عظامه فی ناحية ثم دفن غيره فيه تبرکا بالجيران الصالحين ويوجد موضع فارغ يکره ذلک آه قلت لکن فی هذامشقة عظيمة فالاولی اناطة الجوازبالبلاد اذلا يمکن ان يعد لکل ميت قبرلايدفن فيه غيره وان صارالاول ترابالاسيمافی الامصارالکبيرة الجامعة والالزم ان تعم القبورالسهل والوعر علی ان المنع من الحفر الی ان لا يبقی عظم عسيرجدا الخ اذادفن الميت فی ارض غيره بغير اذن مالکها فالمالک بالخياران شاء امربااخراج الميت وان شاء سوّی الارض وزرع فيها کذافی التجنيس (الفتاوى الهندية صـ۱۶۷ج۱)

والله تعالىٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## تر فصلونو دزیاتو اوبو(توی) حق دچاده؟او څه حکم ئې ده؟

**سوال**: جناب محترم د مرکزي دارالافتاء عمومي رئيس صاحب السلام عليكم.
محترما: زمونږ د مځکو موقعیت دارغنداب په کلي کې داسی دی چه نور خلگ چه تر مونږ لوړ جائیداد او حقابې لري د هغوی د اوبو (ایراو) یعنې توی زمونږ په حصه کې کیږی چه دا توی کله وی او کله نه وی همدارنګه زمونږ خپل بند/بیا د ارغنداب د رود څخه دی چه هغه اوبه نیمی زما او نیمی بیا د نورو خلګو دی اوس زما پوښتنه دا ده چه دغه د (ایراو) یا توی حقابه شرعی بلل کیږی کیا؟ او په دغه (۵۰) کاله کې چه د دغه ایراو د اوبو غوښتنه هم نده کړی اوس ئې خلق د نیمی غوښتنه کوی آیا شرعاً د دوی دغه غوښتنه صحیح ده که څنګه امید کوم چه په دی باب شرعی فتوی را کړئ؟

(حاجی عبدالرحمن)

**جواب**: څرنګه چه په دی باره کې صراحةً جزئیه د فقهاؤ په کتابو کې و نه لیده سوه او ضمناً د دوی د عبارتونو څه داسی معلومیده چه دا شرعی حقابه نده او د هغه چا حق دی د چا چې د مځکې په استقامت کې وی او تر نورو د مخه استفاده ځنې وکړی کله چه د ده څه فارغ سی بیا به یې وروسته ته ورکوی فلهذا دغه حکم مونږ مختاره کړی د فتوی د پاره مثلاً فقهاء دغسی بندونو ته چه د یو خاص جماعة یا غیر محصور جماعة د پاره جوړ سوی وی نهر مملوک وایی او د نهر مملوک اوبه ماء المقاسم بولی نو څرنګه چه د توی اوبه په ټولو مقاسمو کې نه داخلیدی لهذا حکم یې هم د هغو ندی او همدارنګه د توی (چه په عربی کې مسیل) ورته وایی اصلاح یې پر هغه چاده کوم څوک چه نفع باندی اخلی او همدارنګه فقهاء وایی هغه اوبه چه په نهر خاص کې وی او تر مقاسمو زائدی سی هغه د مباحاتو څه گرځی.

ونهـر مملـو ک دخـل مـاء ه تحـت المقاسـم الا ان الـشركة فيـه خاصـة (الفتاوى الهندية صـ۳۹۶ج ۵) الثالث ماء الانهار الصغيرة المملوكة الخاصة بقوم محـصورين وهـو المـسمى عنـد الفقهـاء مـاء المقاسم (الفقه الاسلامى صـ۶۰۳ج ۵) و حـق المسيل هـو مجرى على سطح الارض او أنا بيب تنشأ لتصريف المياه الزائدة عن الحاجة او غير الصالحة حتى تصل الى مصرف عام او مستودع كمصارف الاراضى الزراعية او مياه الامطار او الماء المستعمل فى المنازل (الفقه الاسلامى صـ۴۹۸ج ۵) و تجب نفـقات اصلاح المسيل على المنتفع به اذا كان فى ملكه او فى ملك غيره فانكان فى ارض عامة فنفقة الاصلاح على بيت المال (الفقه الاسلامى صـ۶۰۷ج ۵) ينتفع الناس بماء الامطار أو السيول او النهر الصغير الذى يزدحم الناس فيه بان يبدء بالاعلى فيسقى أرضه حتى يصل الى الكعب (النهاية) ثم يرسله الى من يليه (الفقه الاسلامى صـ۵۹۹ج ۵) الاول الانهر التى يوزع ماءها و ينقسم بين الشركاء و لكنه لا يمحى كله فى اراضيهم بل تبقى له بقية تجرى الى مفازة مباحة للعامة (المجلة المـ۱۲۳۹ سليم باز صـ ۶۷۷).

والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## په اسلام کې دمعیوبینو حقوق څه دي؟

**سوال**: د معیوبینو حقوق د اسلام په مبین دین کی او د احادیثو شریفو په رڼا کی څه دی؟

(ډاکتر عبدالقیوم جمالی د گارډ ینز افغان معیوبینو هراړخیز پروگرام مشر)

**جواب**: څرنگه چه معیوبین او مریضان د جامعی هغه خلق دی چه د خلقو و خدمت ته ډیر زیات احتیاج لری او خپل ورځنی ژوند د خلقو بی همکاری سر ته نسی رسولای فلهذا دا د هر مسلمان و ظیفه ده چه تر خپله طاقته د دوی سره همکاری و کړی او دوی ته خدمت و کړی او د دوی سره داسی چلند و کړی چه د خپل معیوب والی په وجه دوی ته مأیوسی پیښه نسی بلکه حوصله ئی نوره هم لوړه سی هر مسلمان باید دا احساس و کړی چه الله ﷻ دا پوره قدرت لری چه ما هم د ده په رقم معیوب کړی او په هغه وقت کی به زه د خلقو و خدمت ته څونه محتاج یم او کم سړی چه زما حاجت تر سره کړی څونه به زه خوشحاله سم او چی د بی پروایی اولاوبالی چلند را سره وکړی څونه به زه نا راضه سم نو د دغه احساس سره مطابق باید د معیوب او مریض خدمت و کړه سی ځکه چه سړی به د خپل ورور لپاره هغه څه خوښوی کم چه له ځان لپاره یی خوښوی په ډیرو احادیثو شریفو کښی د مریض په پوښتنه او د محتاج سړی په خدمت او د هغه د حاجة په تر سره کولو امر سوی دی او د هغه دپاره ډیر زیات فضائل بیان سویدی چه د نمونی په ډول به ئی څو حدیثه رانقل کړو (اول) هغه څوک چه د خپل ورور په حاجت تر سره کولو مصروف وی نو الله تعالی ﷻ به د ده حاجتونه ور تر سره کړی او هغه څوک چه د یو بل مسلمان مشکل و رحل کړی یا ئی د یو مصیبة څه خلاص کړی نو الله تعالی ﷻ به د قیامت په ورځ د ده د مصیبتو څه د یو مصیبة څه دئ خلاص کړی (بخاری شریف ـ مسلم شریف ـ ابوداود شریف) (ترغیب و ترهیب ص۳۸۹ج۳) (دوهم) تر څو پوری چه یو څوک د خپل ورور سره په کومک کی وی نو الله تعالی ﷻ به د ده سره په کومک کی وی (مسلم شریف ـ ابوداود شریف ـ ترمذی شریف ـ نسائی شریف ـ ابن ماجه شریف)

(ترغیب ص۳۹۰ ج۳) (دریم) هغه څوک چه د خپل ورور د یو کار لپاره د پښو تګ و کړی نو دا به د ده لپاره د لسو کلو د اعتکاف نه بهتر وی او څوک چه یوه ورځ د الله تعالی ﷻ د رضا لپاره اعتکاف و کړی نو د ده او د دوزخ د اور تر مابین به (۳) خندقه پیدا سی هر خندق به دومره بُعد و لری لکه مشرق او مغرب (طبراني. حاکم) (ترغیب ص۳۹۱ ج۳) (څلورم) څوک چه د خپل ورور د یو کار لپاره د پښو تګ و کړی نو الله تعالی ﷻ به (۷۵۰۰۰) پنځه اویا زره ملکی پیدا کړی چه پرده به درود وایی او دعاء به ورته کوی او دا ملکی به د ده پر سر د سایی په شکل وی تر ماښام پوری که ده دغه تګ د ورځی کړی وو. او ترسهاره پوری که ده دغه تګ د شپی کړی وو او په دغه تګ کی چه هر قدم پورته کوی خدایتعالی ﷻ به یوه ګناه ځنی کموی او یوه درجة به وربالاکوی (ابو الشیخ. ابن حبان) (ترغیب ص۳۹۲ ج۳) (پنځم) بهترین د اعمالو خوشحاله کول د مسلمان دی په کالی ورکولو سره یا د هغه په نس مړولو سره یاده یو بل حاجة په پوره کولو سره (طبراني. ابو الشیخ) (ترغیب ص۳۹۴ ج۳) (شپږم) هغه سړی چه پر خلقو رحمت (شفقت او دلسوزی) نلری الله تعالی ﷻ پر هغه رحمت نکوی (بخاري شریف. مسلم شریف) (مشکوة شریف ص۴۲۱) (اووم) هغه څوک چه په دواړو سترګو ړوند سی د هغه لپاره جنت واجب دی (شرح السنة) (مشکوة ص۴۲۳) (اتم) حضرت نبی ﷺ ویلی دی څوک چه زما په امتیانو کی د یو سړی حاجة او ضرورت ورپوره کړی د دی لپاره چه دا سړی خوشحاله سی نو دی سړی په حقیقت کی زه خوشحاله کړم او څوک چه ما خوشحاله کړی هغه په حقیقت کی الله تعالی ﷻ خوشحاله کی او څوک چه الله تعالی ﷻ خوشحاله کړی الله تعالی ﷻ به یی جنت ته داخل کړی (مشکوة شریف ص۴۲۵).

دا ټول هغه احادیث شریف دی چه په صحیح طریقه ثابت سوی دی او ډیر زیات معتمد دی او همدارنګه نور هم ثابت سوی او معتمد احادیث په دی هکله ډیر زیات دی الله تعالی ﷻ دی مسلمانانو ته توفیق ورکړی چه د خپلو معیوبینو مریضانو او نور داسی محتاجو ورڼو خدمت په ډیره مینه او اخلاص سره وکړی او د دوی ضروریات او حاجتونه ورپوره کړی چه په دی سره به الله تعالی ﷻ او حضرت نبی کریم ﷺ دواړه ډیر زیات خوشحاله سی او ډیر عظیم سعادت به حاصل سی.

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دکفاري په روژوکي حيض مانع گرزي کنه؟ که سامعين تلاوت ته غوږ نه نيسي مسئوليت لري کنه؟ که ئې لري نومسئول قاري ده که سامع؟ که لوی اوکوچنی سره شريکان وي زکات به څنګه ورکوي؟

( **اول سوال** ) : که يو ښځه دکفارة روژې قضاء راوړی حيض مانع او قاطع دوصل گرزی کنه ؟

( **دوهم سوال** ) : که يو سړی په لوړصوت قرآن کريم وای يا ئی پر لوړ مقام وائی او سامعين ئی تسمع نه کوی مسئوليت لری او کنه که مسئوليت لری د سامع دی او که دقاری ؟

( **دريم سوال** ) : کـه دلوډ سپيکر څخه قرآن شريف يا سجده تـلاوت واوريـدل شی سجده لازميږی او که څنګه ؟

( **څلورم سوال** ) : که يو کوچنی او لوی سره شريک وی دمال زکوة ئی څنګه کيږی ؟

( مولوی رفيع الله مخلص )

**داول سوال جواب** : دکفاری په روژو کی حيض مـانع او قـاطع دوصـل نګرځي بلکـه پـه کـمه ورځ چی حيض قطع سی صبادی دستی روژه ونيسی اوپاته ورځی دی پوره کړی ؟

فلـو افطـر ولولعـذر استانف الالعـذر الحـيض ( ردالمحتار صـ۱۱۹ ج ۲ ) هكـذافی ( احسن الفتاوی صـ۴۵۱ ج ۴ ) وكفر ككفـارة الظهـار ( تبيين الحقـائق صـ۳۲۷ ج۱ ) بخلاف ما اذا حاضت المرءة فی صوم كفـارة الافطـار او القتـل حيث لاينقطع به الترتيب لانها لاتجد بدّا منه فی شهرين ( تبيين الحقائق صـ۱۰ ج ۳ ).

**ددوهم سوال جواب** : که يو سړی قرآن کريم په زوره وايی او نور خلق په خپلو کارونو اخته وی نو دغه قاری ګنهګاردی او دغه خلقو که خپل کار ترمخه دقراءة شروع کړی وو نو دا جائزه چه سمع بی نه وکی او که قراءة ترمخه شروع سوی وو نو بيا دا جائزه نه ده چه خپل کار شروع

کی البته دهیڅ قاری دپاره نه ده پکار چه خلق په تکلیف کی او داسی ځای قراءة جهرا ووای چه خلق وسمعی ته نه وی اماده.
لایقرء جهراً عند المشتغلین بالاعمال...... صبی یقرء فی البیت واهله مشغولون بالعمل یعذرون فی ترک الاستماع ان افتتحوا العمل قبل القراءة والافلا انهتی رجل یکتب الفقه وبجنبه رجل یقرء القران ولایمکنه استماع القران کان الاثم علی القاری ولاشئ علی الکاتب وعلی هذالو قرء علی السطح فی اللیل جهراً یا ثم (الفتاوی الهندیة صـ۳۱۶ج۵ الی صـ۳۱۸ج۵).

**ددریم سوال جواب**: دلاوډ سپیکر څه سجده تلاوت واوریده سی احتیاطا حکم په وجوب سره دسجدی باید ورکړه سی لکه په (احسن الفتاوی صـ۲۵ج۴) کی چه وایي اس لئے لاؤڈا سپیکر سے سننے والوں پر بھی سجدۂ تلاوت واجب ہوگا (وهکذافی کفایت المفتی صـ۲۰۳ج۹ وآلات جدیدة صـ۱۶۶).

**دڅلورم سوال جواب**: دکوچنی په مال کی زکوة نه دی واجب بلکه لوی به یوازی دخپلی حصی زکوة ورکوی.

وشرط افتراظها عقل وبلوغ واسلام (الدرالمختار) فلایجب علی مجنون وصبی لانها عبادة محضة ولیسا مخاطبین بها الخ (ردالمحتار) رفی الهدایة ولیس علی الصبی والمجنون زکوة الخ (فتاوی دارالعلوم دیوبند صـ۴۲ج۶)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## كه په ټكټروهلی كس بله مريضي هم ولري

## اپريشن سي اوبيامړسي ديت سته اوكنه؟كه سته پر ټكټروان ده كه پر ډاكتر؟

**سوال** : د ۴ تنو د شاهدی په اساس او زموږ دمحكمی دکره معلوماتو په اساس عبيدالله دملا محمّد جان زوی ژوبل كيدو اووروسته دفوت كيدو جريان داسی واقع شوی دی داغالالی دحاجی علی احمد دزوی تراكتور دسيد احمد دخپلی سراچی مختـه ولاړو موټروان چه خپل تراكتور روان كړی څو قدمه چه ولاړی ږغ سو چه عبيد الله ټكټر وواهه دژوبل كيدو حالت ئی داسی ؤو چه هلک دتراكتور دتيلی او ديوال تر مينځ بند او ژوبل سو وروسته دغه زخمی هلک د كندهار ميرويس روغتون ته دزخم او تداوی لپاره وليږل سو چه دشاهدانو په قول داوخت ئی حالت ډير خراب نه وو وروسته چه ډاكټرانو عكسونه تری واخيستل نو دعبيدالله په مثانه كی ډبره پيداشوه وروسته داكټرانو داپريشن په ترڅ كی دغه دمثانی ډبره ځنی راوكښله چه وروسته عبيدالله نور هم په تكليف شو دوهم وار ډاكټرانو عبيدالله نامی بيا عمليات خانی تـه يوړ خو متاسفانه داخل عبيدالله جان دعملياتو په جريان كی په حق ورسيد نو اوس دپنجوائی ابتدايه محكمـه ددی لپاره چه خدای نخواسته حق تلفی پكښی رانسی موضوع تاسو ته دشرعی فتوی لپاره تاسوته وړاندی شوه او فتوی راكړی چه ديت لری كه څنگه ؟ ﴿مولوی شاه محمد رئيس محكمه ابتدائيه پنجوائی﴾

**جواب** : كه قاضی ته داثابته سی چه دغه سړی خاص دټكټر په وجه مړسوی دی كه دټكټر شاوی او كه مخ وی نو ديت پر ټكټر والا دی او كه داورته ثابته سی چه دغه سړی دټكټر څه روغ پاته سوی يا داسی مجروح دی چه هغه جرح سبب دقتل او مفضی وموت تـه نه كيږی بلكه خاص دسنگ مثانی تكليف باعث داپريشن سوی او اپريشن سبب دموت سوی دی نو بيا خو دية نه پر ټكټر والاسته نه پر هغه چا چه امضاء يی وركړی ده بيا بـه وگورو كـه دغه ډاكتر چه اپريشن يی وركړی دی واقعاً ډاكتر وی او نور وارونه ئی هم دا اپريشن كړی وی او په حالت كی د اپريشن ئی دعادی عملياتو څه كاراخيستی وی او قصداً او عناداًيی تجاوز او ظلم نه وی كړی نو پرډاكتر هم ضمان او دية نسته.

والظاهران سائق السيارة ضامن لما اتلفته في الطريق سواء اتلفته من القدام او من الخلف ووجه الفرق بينها وبين الدابة على قول الحنفية ان الدابة متحركة بارادتها فلاتنسب نفحتها الى راكبها بخلاف السيارة فانها لاتتحرك بارادتها فتنسب جميع حركاتها الى سائقها فيضمن جميع ذلک (تکملة فتح الملهم صــ۵۲۳ج ۲) فانکان الاستعمال معتادا مالوفا ووقع الضرر فلايعد تعسفا ولايترتب على ذلک ضمان کالطبيب الجراح الذی يجری عملية جراحية معتادة ويموت المريض فلايضمن (الفقه الاسلامی صــ۳۶ج ۴). اذا اتخذ الشخص الاحتياطات ومع ذلک وقع الضرر فلايضمنه (الفقه الاسلامی صــ۳۷ج ۴) حوادث السير بدون قصدمن قتل واتلاف مال...... فکل ذلک يوجب تعويض الضرر (الفقه الاسلامی صــ۳۸ج ۴) يضاف الفعل الى الفاعل لا الآمر مالم يکن مجبرا (المجلة المــ۵۸)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دحج او اوقافو وزارت له حاجيانو

## څخه دحج پيسي په کوم ډول واخلي؟ اجرت که وکالت؟

**سوال**: محترمو علماؤ کرامو هيله کوو چه د حجاجو کرامو دفورمی مضمون په داسی شکل راته برابر کړئ چه دحج او قافو اداره مستاجرين شي او نه وکيل محض ترڅو چه په اينده کښی څه شی ددوی له طرفه باقی پاته شی هغه دامارة مقام ته په شرعی طريقه وصل شی او دغه مضمون زموږ او دحجاجو په مابين کښی يو عقد شرعی شی فقط والسلام؟ (دحج اواوقافو رياست)

**جواب**: محترم رياست ته دحج او اوقافو السلام عليکم زموږ دمعلوماتو له مخی هغه پيسی چه دحاجيانو څخه اخستلي کيږی هغه درياست لخوا په ۳ برخو ويشل کيږی چه يوه برخه ئی په نقدی توګه بيرته حجاجو ته سپارل کيږی بله برخه ئی په کرايه دطياری کرايه دمکان کرايه دموټر په بعضی ځايو کی ډودی او همداراز نورو شيانو کی مصرف کيږی او دريمه برخه ئی صافی رياست ته پاته کيږی چه يوازی ددريمی برخی په هکله بايد په فورمه

کی ولیکل سی ( هغه مبلغ چه دعازم حج څخه دده دپاره دخدمت کولو په مقابل کی داجرة په شکل اخستل کیږی ) او همدارنگه ددویمی او اولی برخی جلا جلا تعین وسی دټولو څخه ښه او صفالاره هم دغه ده چه ذکر سوه او که پورتنی لاره امکان ونلری نو مجموعه تعداد لپاره داسی هم لیکل کیدای سی ( هغه مبلغ چه دعازم حج څخه دده دپاره دخدمت کولو په مقابل کی داجرة په شکل او همدارنگه دنورو مصارفو او ضروریاتو دپوره کولو دپاره اخستل کیږی ) چه په دی جمله کی هم څه ناځه او په ضمنی توگه تعین داجرة کیږی لکن او لینه طریقه ډیره بهتره او ډیره موافقه ده دشریعت مقدس سره ولی یو عاقد باید بل عاقد ته پوره معلومات ورکړی داجرة په هکله او تعین دمدی او دعمل ته ضرورة نسته ولی هغه په عرف او تجربة سره معلوم سویدی هغه داسی جهالة نه دی چه مفضی منازعی ته سی.

بسم الله الرحمن الرحیم

## دعامو خلگو مراعت ترکومه حده باید وسي؟

**سوال** : مونږ دخپل خارجی تلفون په خاصه توگه دپاکستان داسلامی جمهوریت دمختلفو صوبو او مرکز دپاره مختلف نرخنامه لرو غواړو چه د پورتنی هیواد دټولو صوبو او مرکز ته ثابت نرخ تعین کړو دمثال په ډول دکندهار څخه ترکوئټه پوری یوه دقیقه مخابره فعلاً ۷۰۰۰ افغانی اخلو او داسلام اباد او پشاور دپاره یوه دقیقه ۳۸۰۰۰ اته دیرش زره افغانی اخلو دپورتنی نرخ دتفاوت لپاره څرنگه چه پاکستان یو بهرنی هیواد دی باید پر مونږ باندی دصوبو او مرکز تفاوت موجو نه وی بناءً زمونږ وړاندیز دادی چه دکندهار څخه تر پشاور کوئټه اسلام اباد او نورو صوبو دپاره یوه دقیقه مخابره ۳۰۰۰۰ افغانی محاسبه تی هلته کوو چه پورتنی وړاندیز دمحمد ﷺ غراشریعت په لحاظ څرنگه جواز لری که یا ؟

( دمخابراتو ریاست )

**جواب** : دغه وړاندیز دشریعت په لحاظ جواز نلري ولی دشریعت له نګاه څخه دانده مهمه چه دیو هیواد دټولو صوبو او مرکز نرخ یو دی یا مختلف نر خونه دي ولی دنرخ په یو والی باندی هیځ یو مقصودی مصلحة نه بناء کیږی په شریعت کی دامهمه ده چه په کوم شی کی درعیت او عوامو ګټه سته او ددوی دپاره سهولت رفق او کومک سته او په کوم شی کی نسته او پرحکومت دالازمه ده او ډیر داهمو ضرور یا تو څخه ده چه دخلقو او رعیتو ګټه او سهولت په نظر کی ونیسی او بس فعلاً چه یوه دقیقه په ۷۰۰۰ ده نو ۳ دقیقی په ۲۱۰۰۰ کیږی او ستاسو دوړاندیز په بناء ۹۰۰۰۰ کیږی چه دامبلغ دیو روزانه مزدورکاره دټولې ورځې دمزدوری څخه هم بالادی نو په دی کی زیات مشقت راوستل دی پر عوامو فلهذا دا کار حرام او غیر جائزدی

وعن عائشة رضی الله عنه قالت سمعت رسول الله ﷺ یقول فی بیتی هذا اللهم من ولی من امرامتی شیئا فشق علیهم فاشقق علیه ومن ولی من امرامتی شیئا فرفق بهم فارفق به رواه مسلم والنسائی ورواه ابو عوانة فی صحیحه وقال فیه من ولی منهم شیئا فشق علیهم فعلیه بهلة الله قالو ایارسول الله ﷺ وما بهلة الله قال لعنة الله . . . . . وعن ابن عباس رضی الله عنه عن النبی ﷺ قال من ولی شیئا من امور المسلمین لم ینظر الله فی حاجته حتی ینظر فی حوائجهم رواه الطبرانی (الترغیب والترهیب للحافظ المنذری صـ۱۷۵ ج۳) وعن ابی موسی رضی الله عنه انه سمع النبی ﷺ یقول لن تؤ منوا حتی تراحمو اقالو ایارسول الله ﷺ کلنا رحیم قال انه لیس برحمة احدکم صاحبه ولکنها رحمة العامة رواه الطبرانی ورواته رواة الصحیح ( الترغیب والترهیب صـ۲۰۱ ج۳ ) التصرف علی الرعیة منوط بالمصلحة ( المجلة المـ۵۸ ) .

یجب ان تکون اوامر السلطان واولی الامر والنهی موافقة لمصالح الرعیة لان السلطان انما اعطی السلطة من الله تعالی لاجل صیانة دم عباده ووقایة عرضهم واموالهم ( سلیم بازصـ۴۲ )

والله تعالی ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

**مسجدضرار کوم ته ویل کیږي او دهوو مسجدو په منځ کي باید څومره مسافه وي!**

**سوال**: ستاسو محترمو څخه هیله او امید لروچه دلاندی استفتاء په هکله معلومات راکړیمسجد ضرار کوم مسجد ته ویل کیږی او بعضی خلگ دمسجد دجوړولو دامی دلیل وائی که چیری زه دغه مسجد ته ورسم نوزه دشر او فتنی سره مخامخ کیږم آیا دغه خبره یو شرعی دلیل گرځید لای سی او که نه او که چیری دغه خبره دلیل سی نو باید څومره مسافه دغه نوی مسجد اودغه بل مسجد ولری ؟

(محمدمعصوم المعتصم دافغانستان اسلامي امارت دحج اواوقافو ریاست)

**داول سوال جواب**: مسجد ضرار هغه مسجد ته ویل کیږی چه لاندی ۴ شیان پکښی کی وی ۱ دمسلمانانو جماعت ته ضرر رسول ۲ دکفرحمایت کول ۳ په مسلمانانو کی تفریق اچول ۴ دخدای او رسول پر خلاف جنگ کوونکو ته کومک ورکول لکه چه په آیة کریمة کښی راغی:

(والذين اتخذوا مسجدا ضرارا وكفرا وتفريقا بين المؤمنين وارصادا لمن حارب الله ورسوله من قبل _ الاية)

(سورة التوبة صـ۱۰۷ج۱۱)

*مسجد ضرار کی تعریف خود قرآن مجید مین چار قیدوں کی ساتھ ـ مذکور ہیں اول مسلمانوں کی جماعت کو ضرر پہنچانا الخ*(امداد المفتین صـ۸۰۸ وعزیز الفتاوی صـ۲۰۹).

حکم دمسجد ضرار دادی چه لمونځ کول پکښی جائز ندی او نړول یی لازم دی حکم دمسجد نلری او هغه مسجد چه پورتنی څلور شرطونه پکښی موجودنوی لکن په فاسد نیت جوړ سوی وی هغه حکم دسم او شرعی مسجد لری نړول یی جائز ندی لمونځ پکښی صحیح دی البته جوړونکی لره ئی په آخرت کی ثواب نسته بلکه گنهگاردی.

بغض وعناد کی وجہ سے بنائی ہوئی مسجد مسجد ضرار نہیں .... اس مسجد کی بنانی والوں کو مسجد بنانی کا ثواب نہ ملیں گا بلکہ گناہ گار ہونگی لیکن یہ جگہ مسجد شرعی ہوگئی اس کی تمام احکام مثل دیگر مساجد کی ہوگئی الخ (امداد المفتین ص-۸۰۸).

**ددوهم سوال جواب**: که چیری په مابین کی دقوم واقعي اختلاف پیښ وی او سره ددیری سعی او کوشش بیا هم اختلاف رفع نسی او صلح ونسی نو بیا جائز ده چه بل مسجد جوړ کی لکن دزاړه او نوی مسجد تر مابین مسافه متعین نده او یو خاصه تاکلی اندازه نلری حتی ددیر ضرورت په وقت کی که یو مسجد دوی حصی کړی او په هره حصه کی جلا جلا امام او مؤذن مقررسی نو هم دضرورت په اساس جواز لری:

البتہ اگر مسجد کی نمازیوں میں کسی وجہ سے اختلاف ہو تو بہتر تو اس وقت یہی ہیں کہ آپس میں صلح کی کوشش کی جائی اور ایک مسجد میں سب نماز پڑہیں لیکن اگر یہ صورت نہ ہو سکی تو پھر دوسری مسجد قرب میں بھی بنالینا درست ہیں

(امداد المفتین ص-۷۲۲)

اهـل المحلـة قـسموا المـسجد وضـربو افيه حـائطـا ولكـل منـهم امـام عليحدة ومؤذنهم واحـد لاباس به والاولى انيكون لكل طائفة مؤذن -كمـا يجوز لاهـل المحلـة ان يجعلـو المـسجد الواحـد مـسجدين فلهـم ان يجعلـوا المـسجدين واحـدا لاقامة الجمـاعة (البحر الرائق ص-۲۵۰ج ۵)

والله تعالیٰ ﷺ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که څوک په خپل جنایت محکې اقرار وکړي او بیا په محکمه کې منکر سي د اقرار دشاهدانو شاهدي قبليږي کنه؟

**سوال** : یو جانی چه په رسمی شعبه کی لکه دتحقیق څا رنوالی یانورو دوائرو کی پخپله رضا او رغبت بدون داکراه او لت او کوب څه اقرار پر خپل جنایت وکړی او دمحکمی په محضر کی منکر سی او نور شاهدان نه وی دهغه رسمی دوائرو دمستنطقینو یا نوروسامعانو چه په هغه شعبه کی وجود ولری دده داقرار څخه په محکمه کی شاهدی ادا کړی قبوله ده کیا ؟

(محکمه ابتدائیه)

**جواب** : اقرار بغیر له مجلس څه دقاضی دوه قسمه دی یو اقرار دی په حقوق الله تعالی سره لکه حد زنا سرقة وشرب الخمر او داسی نور بل اقرار دی په حقوق العباد سره لکه قصاص اموال نقدیة یا عینیة طلاق شفعة او داسی نور اقرار په حقوق العباد سره داسی شرط نلری چه دادی په مجلس القضاء کی وی ځکه چی حقوق العباد سره دشبهاتو هم ثابتیږی او اقرار په حقوق الله تعالی سره مختلف شرائط لری چه دهغو مفصل احکام دفقه شریفی کتابونو کی ذکر سوی دی مثلاً یو شرط په اقرار ده حد زنا کی دادی چه په حضور کی دقاضی به وی.

واما حقوق العباد فانواع منها حق طلب واستیفاء القصاص او الدیة ..... ولایشترط لصحة الاقراربهذه الحقوق الفردیة مایشترط للاقرار بحقوق الله تعالیٰ من التعدد وکونه فی مجلس القضاء والنطق بعبارة صریحة(الفقه الاسلامی ص۶۱۹ج ۶ هکذافی بدائع الصنائع ص۲۲۳ج ۷) وهذه الحقوق تثبت مع الشبهات بخلاف حقوق الله تعالیٰ(الفقه الاسلامی ص۶۱۹ج ۶

) ومنها ان یکون اقراره ای اقرار الزانی بین یدی الامام فانکان عند غیره لم یجز اقراره( بدائع الصنائع صـ۵۰ج۷ ).

او دغه جانی چه اقرار ئی کړی دی او بیا په محکمه کی انکار کوی نو که دغه اقرار په حق الله تعالی سره وی دغه انکار یی رجوع ده د اقرار څه او دا رجوع صحت لری او که اقرار په حق العبد سره وی نو دغه انکار یی صحت نلری ځکه چه رجوع د اقرار بحق العبد سره نه صحیح کیږی.

واتفق الفقهاء علی انه یجوز للمقر الرجوع عن اقراره فی حقوق الله تعالی کالردة والزناوشرب خمر وسرقة وقطع طریق من اجل اسقاط الحد لااسقاط المال لانها تدرء بالشبهات اما حقوق الآدمیین کالاقرار بالقتل او الجرح او قطع طرف او اسقاط جنین فلا یجوز للمقر الرجوع عن اقراره بها ( الفقه الاسلامی صـ۳۸۷ج۶ ) وانکان ( ای المقر بالزنا فی غیر مجلس القاضی ) منکر افالانکار منه رجوع والرجوع عن الاقرار فی الحد والخالصة حقالله عزوجل صحیح( بدائع الصنائع صـ۵۰ج۷ )

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که وکیل دمدعی به نسبت خپل ځان ته وکړي دعوی صحت لري کنه؟

**سوال**: زه مولوی شبیر احمد د الحاج کمال الدین اخندزاده صاحب زوی د هلمند ولایت د مرجی د اولسوالی اوسیدونکی په مربوطه ابتدائیه محکمه کی یوه دعوه لرم چه اوس یی د نوموړی محکمی مفتی صاحب د سماع قابل په دی نه بولی وایی ستا په قول کښی تناقض دی ولی تایو وار اضافت د ملک مدعی بها وځان ته کړی وو او اوس په وکالت د پلار وایی محترم رئیس صاحب زه څکه د خپلو معلوماتو مطابق داتناقض نه بولم چه په مجلة الاحکام ماده ۱۲۵۰ کښی وایی

ولکن یصح له ان یدعیه لاخر بعدما ادعاه لنفسه لان الوکیل بالدعوی قد یضیف الملک الی نفسه ولکن عند الخصومة لایضیف احد ملکه لغیره الخ

او په شرح مجلة الاحکام لبنانی کښي وایی فیه لف ونشر غیر مرتب ای انه اذا ادعاه لنفسه الخ

ستاسی ده محترم حضور څخه هیله کوم چه لازم هدایت را ته وکړی؟

(مولوی شبیر احمد)

**جواب**: که یو مدعی نسبة د مدعی به خپل ځان ته وکړی او بیا غیر ته وکړی په وکالت یا په وصایت داتناقض نه بلل کیږی ځکه چه توافق یی ممکن دی ځکه چه وکیل اکثره وقت اضافة دملک خپل ځان ته کوی

ادعاه لنفسه ثم لغیره بوکالة تسمع اذ لامنافاة بین الدعوتین اذ وکیل الخصومة قد یضیف الملک لنفسه علی معنی ان له حق المطالبة (معین الحکام ص ۱۶۴) هکذافی (جامع الفصولین ص ۹۰ ج ۱) و (شرح المجلة للاتاسی ص ۱۳۲ ج ۵) و (سلیم بازاللبنانی ص ۹۶۷)

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دمواته مځکې داحیاء حکم

(**اول سوال**): کله چه يو سړی مواته مځکه احياء کی باوړی باندی وکاړی او ولسوال والی صاحب قاضی دمحکمی هم اجازه او امرونه ورکړی ایا ددغه سړي ملکیت ثابیتږی او کنه ؟
(**دوهم سوال**): ایا حکومت پر دغه سړی باندی دعشر حق لری کنه ؟

**د اول سوال جواب**: مواته مځکه چی څوک احياء کی په اجازه ده امام یانائب ده امام نو که امام یا نائب داسی اجازه وکړه چه د دغه مځکی منفعة او رقبة دواړه ستا دی نو دغه احياء کونکی مالک ګرځی ده دغه مځکی ټول احکام یی ده ملکیت شخصی دی او که امام یا نائب داسی اجازه وکړه چه منفعة یی ستادی رقبة یی ده بیت المال ده نو بیا دغه احياء کوونکی نه مالک ګرځی او نه احکام ده شخصی ملکیت باندی تطبیق کیږی نو څرنګه چه والی ده ولایت او قاضی ده محکمی هم په نائبینو کی د امام شامل دی نو لهذا ددوی په اول قسم اجازه سره ملکیت ثابیږی.

اذا احيا شخص ارضا من الاراضی الموات بالاذن السلطانی صارمالکا لها وان اذن السلطان او وکیله لشخص باحیاء ارض علی ان لایکون متملکا بل لمجرد الانتفاع فذلک الشخص یتصرف بتلک الارض کما اذن له لکن لایکون مالکا لتلک الارض (المجلة المـ۱۲۷۲) ثم ان ماذکر من الحکم هو قول الامام رحمه الله تعالی وقا لایملکها بلا اذن . . . . . . قال فی ردالمحتار وقول الامام هو المختار ولذا قدمه فی الخانية والملتقی کعادتهما وبه اخذ الطحاوی وعلیه المتون (شرح المجلة الاتاسی صـ۲۰۴ج ۴) (ردالمحتار صـ۳۰۷ج ۵) وفی ردالمحتار عن التتارخانية مانصه والقاضی فی ولایته بمنزلة الامام (الاتاسی صـ۲۰۵ج ۴).

**د دوهم سوال جواب**: حکومت بالکل پر تاسی حق لری که ستاسو مځکه عشری مځکوته نږدی وه عشر باندی لازم دی که خراجی مځکوته نږدی وه خراج لازم دی او که یوه طرف ته عشری او بل طرف ته خراجی وه هم عشرلازم دی.

قوله ولو احیاه مسلم اعتبر قربه ای قرب ما احیاه انکان الی ارض الخراج اقرب کانت خراجیة وانکان الی العشر اقرب فعشریة نهروانکانت بینهما فعشریة مراعاة لجانب المسلم ط عند ابی یوسف واعتبر محمد الماء فان احیاها بماء الخراج فخراجیة والافعشریة بحرو بالاول یفتی درمنتقی (ردالمحتار صـ۲۸۴ ج۳)
هکذافی (الفتاوی الهندیة صـ۲۸۸ ج۵) وقدمنا عن الدرالمنتقی ان المفتی به قول ابی یوسف انه یعتبر القرب وهو مامشی علیه المصنف اولا کالکنز وغیره وقدمه فی متن الملتقی فافاد ترجیحه علی قول محمد وقال ح وهو الختارکمافی الحموی علی الکنز عن شرح قراحصاری وعلیه المتون (ردالمحتار صـ۲۸۴ ج۳)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## كه بيع وسی څه پيسي ورکړی اوبيا بائع پښيمان سي څه حکم دی؟

**سوال** : ماتخمين ۳ خرواره کشمش چه په کشمش خانه کی موجود وه دحاجی عبدالغفار څه من په ۳۳۰۰۰ افغانی رانيول لس لکه می نقدی ورکړی باقيمانده دشلو۲۰ ورځو په پور ما کشمش نه دی څنی قبض کړی وروسته تر پنځو ورځو بائع دکشمشو دراکولو څخه منع وکړه اونه يی راکول نوزما پوښتنه داده چه ايا شرعاً حق لرم د کشمشو کنه؟

**جواب** : کله چه ايجاب او قبول وسی نوعقد تاميږی دا لازمه ده چه بائع به مبيعه مشتری ته تسليموی او مشتری به بائع ته ثمن تسليموی که څه هم ترمخه قبض دمبيعی نه وی راغلی او يا تعين دخروارو دمبيعی نه وی سوی.

والعقد غير العينی هوالذی يتم بمجرد الصيغة السليمة من العيوب ويترتب عليه اثره بدون حاجة الی القبض وهذا يشمل جميع العقود ماعدا العقود الخمسة السابقة ( ای الهبة والاعارة والايداع والرهن والقرض ) ( الفقه الاسلامی صـ۲۴۶ج۴ ) وعند ابی يوسف ومحمد يلزمه البيع فی كل الصبرة كل قفيز منها بدرهم سواء علم ای مقدار المبيع اولم يعلم
( بدائع الصنائع صـ۱۵۹ج۵ ) وبقولهما يفتی تيسيرا الدرالختار وعليه الفتوی كمافی المحيط وغيره آه ( ردالمحتار صـ۲۳ج۴ ).

والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دکرېږ قبلې او قبله نما حکم

**سوال**: محترماً دشاه ولی کوټ په ولسوالی کی زموږ یو مسجد دی دقبله نمای دمعلوماتو له مخی دقبلې څخه کوږ دی چه په قبله نمای کی د قندهار قبله پر دیارلس ده او زموږ مسجد پر یوولس دی چه دکوږوالی نقشه پورته لیکل سویده نو اولاً موږ دقبله نمای په باب معلومات غواړو چه په فقه حنفی کی معتبر دی او که نه؟

او دوهم که معتبر وی نو دغه پردیارلس چه ئی دقندهار قبله مقرره کړی ده دغه صحیح ده او که غیر صحیح ده ځکه چه بعض علماء وائی چه دقندهار قبله پر یولس نیمی یا پر دوولس ده او حال دا چه دقبله نمای په کتابچه کی ئی پردیارلس لیکلی ده ۳ دریم خبره داده که چیری دقندهار قبله پر دیارلس معتبر سی په مذکور کاږه مسجد کی دمسجد دکوږوالی پر طریقه صحت لمونځ لری او که ئی نلری او دغه مذکور مسجد نړول غواړی او که ئی نه غواړی؟

**جواب**: محترم مستفتی صاحب ته باید وویل سی چه بناء داحکام شرعیه پر سهولت او اسانی ده نه پر تحقیقاتو او تدقیقاتو فلسفیة بلکه هغه تحقیقات اعتبار نلری نو دقبلی په تعیین کی هم دمصلی دپاره دونه تحقیق او تدقیق ندی لازم بلکه هغه تحقیقات او تدقیقات هم ظنیات دی او دغه تفاوت چه مستفتی لیکلی دی په دغه تفاوت سره انحراف دقبلی څخه نه راځی بلکه علماء وایی چه ۴۵ پنځه څلویښت درجی کوږوالی هم انحراف نه بلل کیږی که یو څوک نوی مسجد جوړوی او دنورو مساجدو دمحرابونو سره مقایسه وکړی او اتباع دیو صحیح قبله نما وکړی خوښه خبره ده لکن هرکله چه مسجد جوړ وی او دومره لږ تفاوت دقبلی سره ولری لکه مستفتی چه لیکلی دی نو دا سبب دمسجد دخرابی هیڅکله نسی کیدلای مهم استقبال دی وجهة ته دکعبی (بلکه جهة ته دمسجد حرام فولوا وجوهکم شطرالمسجدالحرام) نه ومعینی نقطی ته دکعبی شریفی او که یوڅوک دفقهی شریفی فتاوی وګوری خصوصاً ردالمحتار نو دقبلی په جهة کی به ډیره توسع پیدا کړی.

وجهتها ان يصل الخط الخارج من جبين المصلى الى الخط المار بالكعبة على استقامة بحيث يحصل قائمتان او نقول هوان تقع الكعبة فيما بين

خطین یلتقیان فی الدماغ فیخرجان الی العینین کساقی مثلث کذاقال النحریر التفتازانی فی شرح الکشاف لکن وقع فی کلامھم مایدل علی ان الانحراف لانحراف لایضرففی القھستانی ولاباس بالانحراف انحرافا لاتزول به المقابلة بالکلیة بان یبقی شئ من سطح الوجه مسامتا الکعبة واقربھا الی الصواب قولان الاول ان ینظرفی مغرب الصیف فی اطول ایامه ومغرب الشتاء فی اقصر ایامه فلیدع الثلثین فی الجانب الایمن والثلث فی- الایسر والقبلة عند ذلک ولولم یفعل ھکذا وصلی فیما بین المغربین یجوزو اذا وقع خارجا منھا لایجوز بالاتفاق ( ردالمحتارص۳۱۶ج۱ وص۳۱۵ ) وتعرف ( ای القبلة ) بالدلیل وھوفی القری والامصار محاریب الصحابة والتابعین ( الدرالمختاربھامش ردالمحتارص۳۱۷ج۱ ) لکن قال القھستانی ومنھم من بناہ ( ای سمت القبلة ) علی بعض العلوم الحکمیة الاان العلامة البخاری قال فی الکشف ان اصحابنالم یعتبروہ ( ردالمحتارص۳۱۷ج۱ ).بیت اللہ سی ۴۵ پینتالیس درجہ تک انحراف مفسد نہین اس سے زیادہ ہوتو مفسد ہیں ( احسن الفتاوی ص۳۱۳ج۲ ) حسابات ریاضیہ وآلات رصدیة کی ذریعہ بھی عین کعبہ تودرکنار مسجد حرام بلکہ مکہ مکرمہ کی استقبال کا بھی یقین نہیں ہو سکتا مندرجہ ذیل وجوہ کی بناپر ( احسن الفتاوی ص۳۲۷ج۲ ) سمت قبلہ اورجہت قبلہ مین شرعاً بہت وسعت ہیں..... اور مساجد جو اس طریق سے بنی ہو ئی وہ صحیح رخ پر ہیں اس میں زیادں کج وکاؤ کی ضرورت نہیں ہیں کیونکہ الات سمت قبلہ کی دریافت کرنی کی لئی مہیاً ومیسر نہیں ہیں اور پھر وہ بھی ظنی ہیں اور عام لوگوں کو اس کی تکلیف دینا دشوار ہیں اور مساجد قدیمہ خود اس بارہ مین حجۃ صحیحۃ ہیں اور تغیر کرنا ان مین تھوڑی سی انحراف مظنون کی وجہ سے مناسب نہیں ہیں ( فتاوی دارالعلوم دیوبندص۱۴۲ج۲ )

واللہ تعالیٰ اعلم .

بسم الله الرحمن الرحيم

## که يوه پوروړي ته سراى ورکړي نور پوروړي په دې سراى کي دبرخې دتقسيم حق لري کنه؟

**سوال**: محترما ځرنګه چه زما پر يو سړی روپی قرض باندی وی ماچه طلب دروپو ورځخه وکړی مديون راته وويل چه روپی نه لرم دغه يو سراى لرم دغه سراى درکوم سراى می ورځخه واخستی پس له څه وقته څخه دغه دسراى مالک چه زما مديون دی افلاس خط وکی اوس نور پوروړی ادعا کوی ددغه سراى ايا حق لری که څنګه؟ (حميدالله اخندزاده)

**جواب**: په دغه صورت کی چه مستفتی ليکلی دی يعنی چه داين مخ کی ترافلاس خط په خپل اختيار ديو چا پور ورکړی نو نور پوروړی په دغه ورکول سوی پور کی هيڅ حصه او برخه نه لری بلکه ورکول سوی پور يوازی ددی يوه پوروړی دی.

ويأخذون فضل كسبه يقسم بينهم بالحصص هذا اذا اخذوا فضل كسبه بغير اختياره او اخذه القاضي وقسمه بينهم بدون اختياره واما المديون ففى حال صحته لو آثر احد الغرماء على غيره بقضاء الدين باختياره فله ذلك نص على ذلك فى فتاوى النسفى فقال رجل عليه الف درهم لثلاثة نفر لواحد منهم خمسمائة ولاخر منهم ثلثمائة ولاخر منهم مائتان وماله خمسمائة فاجتمع الغرماء فحبسوه بديونهم فى مجلس القضاء كيف تقسم امواله بينهم قال اذا كان المديون حاضراً فانه يقضى ديونه بنفسه وله ان يقدم البعض على البعض فى القضاء ويوثر البعض على البعض (الفتاوى الهندية صـ۶۳ج۵) هكذافى (العناية شرح الهداية بهامش فتح القدير صـ۲۰۸ج۸)

والله تعالىٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دمذبوحه حیواناتوسرونه په یوه دیگ کي ایشول څه حکم لري؟

**سوال**: دذبحه سویو حیواناتو سرونه چه په یوه دیګ کی دپاکو لو دپاره په جوش اوبو کی یائی په یخو اوبو کی واچوی او اور ورپسی بل کړی چه اوبه ئی جوش سی او دغه سرونه ئی په داسی حالت کی وراچولی وی چه مطلقاً ئی حیوان حلال کړی اوسمدئی څنی پری کړی کړی نور هیڅ تصرف ئی نه وی پکښی کړی نه ئی پریولی بلکه پر خپل حال وی ددغه سرو څه حکم دی حلال دی که مکروه یا حرام که مکروه یا حرام وی نو علت ئی څه دی او څه طریقه باید ورسره سی چه دحرمت او کراهیت څخه وساتل سی؟

﴿مولوی عبدالرحمن مسئول ریاست امربالمعروف ونهی عن المنکر﴾

**جواب**: دامسئله ۴ شکله لري.

(**اول**): داسرونه په اوبو باندی نه وی مینځل سوی او یخو اوبو ته واچول سی یا داسی ګرمو اوبو ته واچول سی چه ایشیدلی نه وی.

(**دوهم**): په اوبو نه وی مینځل سوی او جوش اوبو ته واچول سی خو دونه وقت په جوش اوبو کی تیر کړی چه هغه وریښتان په اسانی سره جلاسی او بیرته یی راوکاږی.

(**دریم**): په اوبو نه وی مینځل سوی او په جوش اوبو کی دونه وقت واچول سی چه غوښی هغه اوبه جذب کړی یعنی ډیر وقت پکښی کی وی.

(**څلورم**): په اوبو مینځل سوی وی او بیا په دیګ کی واچول سی په اولو دوو شکلونو کی باید دغه سرونه ۳ واره په پاکو اوبو پریولل سی او بیا وخوړل سی په دریم شکل کی دغه سرونه نجس کیږی او بیا قابل داستفادی نسی ګرځیدلای په څلورم شکل کی داسرونه پاک دی اوبیا پریولو ته یی حاجت نسته خو هغه طریقه چه نن ورځ په بازار کی مروجه ده هغه ددوهم شکل سره سمون خوری خو باید وویل سی هغه وینه چه پس له ذبحی په وریښتانو یا پوست پوری موښتی وی هغه نجسه ده او هغه وینه چه په دننه رګو کی باقی پاته وی یا

دغو ښو خپله وینه وی هغه پاکه ده څکه چه هغه که څه هم وینه ده لکن مسفوح نده نو ښ
طریقه داده چه دغه سرونه وار دواره جلا جلا په پاکو اوبو پریولل سی او بیا دیگ ته واچول
سی لکه په څلورم شکل کی.

لو القیت دجاجة حال غلیان الماء قبل ان یشق بطنها لتنتف او کرش قبل ان یغسل از
وصل الماء الی حد الغلیان و مکثت فیه بعد ذلک زمانا یقع فی مثله التشرب والدخول
فی باطن اللحم لاتطهر ابداً الاعند ابی یوسف کمامر فی اللحم وان لم یصل الماء الی
حد الغلیان اولم تترک فیه الامقدار ماتصل الحرارة الی سطح الجلد لانحلال مسام
السطح عن الریش والصوف تطهر بالغسل ثلاثا کما حققه الکمال (مراقی الفلاح
شرح نورالایضاح صـ١٠٦) هکذافی (ردالمحتار صـ٢٤٥ج١) طحطاوی علی
الدرالمختار صـ١٦٣ج١) (الفتاوی الکاملیة صـ٢٦٣) و (غمز عیون
البصائر صـ١٧ج٢) (احسن الفتاوی صـ٩٦ج٢) سئلت عمن القی دجاجة مذبوحة لم
تشق بطنها فی الماء حال غلیانه لاجل نتف ریشها هل تنجس فالجواب نعم
تنجس ولکن تغسل بالماء ثلاث مرات فتطهر کمافی الانقروی عن فتاوی ابن
نجیم (الفتاوی الکاملیة صـ٢٦٣) والعلة والله اعلم تشربها (ای الدجاجة) النجاسة
بواسطة الغلیان وعلیه اشتهر ان اللحم السمیط بمصر نجس لکن العلة المذکورة
لاتثبت مالم یمکث اللحم بعد الغلیان زماناً یقع فی مثله التشرب والدخول فی باطن
اللحم وکل منها غیر متحقق فی السمیط حیث لایصل الی حد الغلیان ولایترک
فیه الامقدار ما تصل الحرارة الی ظاهر الجلد لتنحل مسام الصوف بل لو ترک یمنع
انقلاع الشعر فالاولی فی السمیط ان یطهر بالغسل ثلاثا فانهم لایتحرسون فیه عن
المنجس (ردالمحتار صـ٢٤٥ج١) (البحر الرائق صـ٢٣٩ج١) (کبیری صـ٢٠٧) (
طحطاوی علی الدرالمختار صـ١٦٣ج١) ومایبقی من الدم فی عروق المذکاة بعد
الذبح لایفسد الثوب وان فحش کذافی فتاوی قاضیخان وکذا الدم الذی یبقی فی
اللحم لانه لیس بمسفوح هکذافی محیط السرخسی ومالزق من الدم السائل باللحم

فهو نجس كذافی منية المصلی (الفتاوی الهندية صـ۴٦ج۱) هكذافی (ردالمحتار صـ۲۳۴ج۱) ومراقی الفلاح شرح نورالايضاح صـ۱۰۲) فالاولى قبل وضعها (ايالدجاجة) فی الماء المسخن ان يخرج مافی جوفها ويغسل محل الذبح مماعليه من دم مسفوح تجمد (طحطاوی علی الدرالمختار صـ۱٦۴ج۱) والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## د وقف سوی حجري حکم

**سوال**: دکندهار ولايت په دريمه ناحيه کی زموږ مسجد جامع چه دمرحوم حاجی نورالحق خان په نامه ده يوه حجره مربوط دنوموړی مسجد جامع په داخل ديو سرای کی ده دحجری چت ډير کنبته دی نو موږ قصد لرو چه دنوموړی حجری چت يوه اندازه لوړ کو او وروسته تر هغه د نوموړی حجری پر سر باندی بله خونه جوړه کړو چه دمسجد جامع دامام لپاره دکور کارځنی واخلو چه دابه دمسجد جامع دآينده لپاره يوشی سی ستاسو دمحترم حضور څخه غوښتنه کوو چه شرعی فتوی راته راکړی چه دجوړيدو په وقت کی موږ څوک مانع ونه ګرځی ډيره مهربانی به مو وی ؟

**جواب**: دنومړی دحجری چت جوړول په ښه طريقه سره بالکل جائز بلکه ښه کاردی ځکه چه حجرة وقف دی او فتوی پر هغه شي ورکول کيږی چه وقف ته ښه منفعت رسوی او سربيره دملا امام لپاره ځای جوړول که په نيت دوقف وی اولاندی حجری ته ضرر ونه لری نو هم جائز دی.

ويفتی بکل ماهو انفع للوقف (الفقه الاسلامی صـ۲۳۴ج۸) ليکن بحرالرائق وغيره سے معلوم ہوتاہیں کہ جو حجرات متعلقہ مسجد بغرض سکونت امام وموذن يا طلبائے علم وغيرہ کی بنائی جاتی ہیں ان کو کرايہ پر دينا جائز نہيں (عزيز الفتاوی صـ۲۱۱) کيونکہ يہ حجری فناء مسجد ميں داخل ہيں اور عادة فناء مسجد کی حجری خاص مصالح مسجد کی لئے بنائی جاتی ہیں جيسی امام موذن ياطالب العلم وغيرہ لوگون کی رہائش کی لئے (امداد المفتين صـ۷۷۳).

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که يو وارث دميراث جايداد تر تقسيم مخکې په سرقلفي ورکړي له تقسيم وروسته سرقلفي باقي ده که فسخ کيږي؟

**سوال** : محترما که چیری دوراثت جایداد دوارثانو دجملی څخه دیوه په لاس کی پاته وی وروسته دځو عمره ئی نور وارثان دحق ادعاء وکړی او خپله ادعاء په محکمه کی ثابته کړی او دمحکمی په امر جایداد تقسیم سی ددغه جایداد دجملی څخه دکانونه نوموړی وارث په سر قلفی خرڅ کړی وی ایا دتقسیم څخه وروسته کوم دکانونه چه نورو وارثانو ته سیدلی وی دهغوی سرقلفی باقی پاته کیږی او که فسخه کیږی لطفاً معلومات راکړی ؟

(عبدالهادي مجددي)

**جواب** : حکم دسرقلفی په باب کی دملکیت لکه حکم دبیعی داسی دی لکه رانیول سوی شی چه هم سړی خرڅولای سی هم یی هبه کولای سی هم په میراث پاتیدلای سی همدارنګه حکم دهغی شی دی چه په سرقلفی رانیول سوی وی نولکه دوراثت جاید اد چه یو وارث ئی خرڅ کی بی اذنه او اجازی دنورو شرکاؤو بیع ئی موقوفه ګرځی پراجازه دنورو ورثتؤو که هغو اجازه وکړه بیع صحیح ګرځی او که یی اجازه ونکړه ددوی په حصه کی بیع باطله ده نو همدارنګه چه یو وارث دوراثت جایداد بی له اجازی دهغه نورو ورثة وو بی اجازی په سرقلفی ورکی نوکه هغه نورو ورثةؤو اجازه وکړه سرقلفی یی صحیح ګرځی او که یی اجازه ونکړه باطله ګرځی.

وفائدة الخلو انه كالملك فتجرى عليه احكامه من بيع واجارة وهبة ورهن ووفاء دين وارث و وقف على الخلاف فى الاخير وهذه الامور تؤخذ من فتوى الناصر اللقانى حيث جعلهكالملك ومنه يعلم انه لامانع من تعدد الخلوات اذالملك يتعدد آه (غمز عيون البصائر على الاشباه والنظائر صـ٣٢٢ج١) انكان فى المبيع حق لغير البائع كان العقد موقوفاغير نافذ (الفقه الاسلامى

صـ٣٧٢ج ۴ ) وفـی الجملـة ان تـصرفات الفـضولی جـائزة موقوفـة علـی اجـازة صاحب الشان عنـد الحنـفية ( الفقـه الاسـلامی صـ٣٧۴ج ۴ ) هـكـذافی ( بـدائع الصنـائع صـ١۴٩ج ۵ ) .

**نوټ**: که په هغه نورو ورثهوو کی داسی وارث ووچه هغه قابل داجازی نو ومثلاً صغیر وو یابل عذر موجود وو نو دهغه په حق کی سرقلفی باطله ده هیڅ صحت نلری.

اشترط الحنفية لاجازة عقد الفضولی شروطاً ١ انيكون للعقد مجيز حالة العقد ای من كـان يـستطيع اصـدارالعقد بنفـسه الـخ ( الفقـه الاسـلامی صـ٣٧٧ج ۴ ) هكذافی ( بدائع الصنـائع صـ١۴٩ج ۵ ) كـل من الـشركـاء فـی شـركـة الملـک اجنـبی فی حـصة سائر هم فـليس احـدهم وكـيلا عن الاخـر ولا يجوزله من ثـم ان يتصرف فی حـصة شريكه بـدون اذنه ( الـمجلة الـمـ٦٠١ )

والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## دقاتل اقرار دقصاص موجب دی کنه؟

**سوال**: که یو نفر اقرار وکړی چه زما او دفلان سره حمله شوه په حملو کی فلان زماله طرف پیر سو او مړسو او قرائن ددی موجودی دی چه هغه نفر دشالخوا پیر سوی وی نو په دی هکله شرعی حکم څه شی که ئی راته واضح کړئ لویه مهربانی به مو وی یعنی په قاتل قصاص واجب دی او که څنګه ؟

**جواب**: معاملة دقصاص معاملة ده یر زیات احتیاط ده انتهائی کوشش به په احتیاط کی وی حتی چه قرائن غیر قطعیة هیڅ اعتبار نلری په حدو دو او قصاص کی او کوم صورت چه مستفتی لیکلی دی او ویلی دی چه دا اقرار موجب دقصاص دی او کنه نو زموږ په نظر خو دی ته اقرار شرعاً نه ویل کیږی ځکه چه تعریف دا قرار نه دی باندی صادق او دا ځکه چه په اقرار کی اخبار وی دثبوت څه دحق پر مقر باندی او صورت دمستفتی یوازی حکایة د واقعی دی په داسی لفظ محتمل سره چه اثبات دحق پر مقرنه پکښی راځی او بل دا که چیری یو ځای ۲ کسان وی یو دهغو څه مړ وی او په نزدی علاقه کی دربیم سړی هم نه وی نو دامام محمد صاحب پر قول یو دهغه بل ددیة ضامن نه دی ځکه چه احتمال دخود کشی پکښی سته

ولایحکم عند جمهور الفقهاء بالقرائن فی الحدود لانها تدرء بالشبهات ولافی القصاص الافی القسامة للاحتیاط فی موضوع الدماء وازهاق النفوس (الفقه الاسلامی ص۶۴۵ج۶) الاقرار هو اخبار الانسان عن حق علیه لآخر ویقال لذلک مقر ولهذا مقرله وللحق مقربه (المجلة المـ۱۵۷۳) (وفی رجلین بلاثالث وجد احدهما قتیلا ضمن الاخر) لان الظاهر ان الانسان لایقتل نفسه (دیته) عند ابی حنیفة خلافالمحمد الدرالختار قوله خلافا لمحمد حیث قال لایضمن لانه یحتمل انه قتل نفسه او یحتمل انه قتله الاخر فلایضمن بالشک...... وقد منا ان هذا هو قیاس قول الامام فتنبه وقال الرملی ایضاً وعندی ان قول محمد اقوی مدرکا اذ قد یقتله غیر الثانی وکثیر اماوقع (ردالمحتار ص۴۵۱ج۵) الاقرار لغة الاثبات..... وشرعاً هو اخبار عن ثبوت حق للغیر علی نفسه (الفقه الاسلامی ص۶۱۰ج۶) هکذافی (الدررشرح الغرر ص۳۵۷ج۲) هکذافی (المیدانی شرح القدوری بهامش الجوهرة النیرة ص۳۲۰ج۱)

بسم الله الرحمن الرحيم

## که پلار په ژوند کي زامنوته تقسيم ورکړي اوزامن قبضه ونکړي له وفات وروسته هغه تقسيم ده که به نوی تقسيم کوي؟

**سوال**: موږ ۲ ورونه او ۲ خوندی یو دپلار مو یو څه جایداد لکه باغچې او خالصه مځکې او سرایونه راپاته سوي دی په موږ شپږو ورونو کی پلار په خپل ژوند کی د دایوه ورور ته ویش ورجلاکړی دی او په حق رسیدلی دی او په ویش او حساب ،کتاب راځخه جلادی حق ئی پلارور معلوم او تصرف په غاړه واخیستی سرای ئی هم ورجلا کړیدی او پلار چه کوم شیان دغه وروړ ته ورجلاکړیدی دپلار په ژوند کی ده قبضه هم پر کړیده پاته موږ ۵ وروڼه سو پلار مو په خپل ژوند کی موږ ته دجایداد ویش استحقاق را معلوم کړیدی او موږ پر دغه معلوم ویش په جلا جلا تو گه تصرف نه دی کړی اما موږ اوس په مشترکه توگه استفاده ځنی کوو دهغه زاړه ویش پر بناء مو استفاده نه ده کړی حاصلات او عایدات مو اوس هم سره گډ دی لیکن سرایونه ئی نه دی را معلوم کړی پاته دا دوی خوندی سوی هغو ته پلار نه ویش ورمعلوم کړیدی او نه حق ورکړی دی نه په باغچو کی او نه مځکه کی نه په سرایو کی عرض اوس دادی چه آینده موږ غواړو ویش وکړو آیا پر هغه زاړه تقسیم موږ عمل وکړو او که دسره ځخه بیابل تقسیم او ویش کیږی دشریعت له نګاه څه لطفاً معلومات راکړی؟

**جواب**: هغه یو وروړ چه هغه ته پلار خپل حق ورکړیدی په ژوند کی او هغه قبضه او تصرف مالکانه پکښې کړی وی نو هغه اوس هم دهغې حصې شخصي مالک دی او سل حوک اشتراک نه پکښې لری او هغه وروڼه چې هغو ته تقسیم په ژوند کی دپلار ورکول سوي دی لکن هغو نه قبضه باندی کړی وی او نه یې تصرف مالکانه پکښې کړی وی دهغو دپاره هغه تقسیم نه دی صحیح او نه هغوی دتقسیم شده حصو مالکان دی اوس نو کله چې پلار وفات سو هغه تول( غیر قبضه شده حصص ) او نور اموال به یی دټولو ورثه وو( یعنی هغه وروڕ چه

پر خپله حصه یې قبضه کړې ده او هغه ورونه چه پر خپلو حصو یې قبضه نه ده کړې او هغه خوندې چه حصص نه دي ورته تعین سوې او همدا رنګه ټول ذوي الفروض )تر مابین په شرعي تقسیم سره تقسیمیږي او دا ځکه چه پلار د خپلو زامنو په مابین کې تقسیم کوې او هر یوه ته حصه ورکوې دي ته هبه ویل کیږي نه تقسیم ځکه چه تقسیم په مشترک شي کې وي او دپلار مال دپلار په ژوند کې مشترک نه بلل کیږي.

كتاب القسمة هي جمع نصيب شائع له في مكان معين ....... وركنها هو الفعل الذي يحصل به الافرازوالتميز بين الانصباء ( متن الدرالمختاربهامش ردالمحتار صـ١٧٨ج ٥ ) هكذافي ( المجلة المـ٦١٨ ).

ومنها انيكون الموهوب مقبو ضا حتى لايثبت الملك للمو هوب له قبل القبض( الفتاوى الهندية صـ٣٧٤ج ٤ ) هكذافي ( الدرالمختاربهامش ردالمحتار صـ٥٦٩ج ٤ )هكذافي ( الفقه الاسلامي صـ١٩ج ٥ )

والله تعالى ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

**تر(۳۶)کاله تیریدو مخکې خوریې دماماګانوڅخه دمورحق غوښتلای سي؟**

**سوال** : محترما زما نیکه دا ۲۰ کاله دمخه وفات کړیدی او زما خپلې مور دموروثه حق طلب دخپلو وروڼو څخه نه دی کړی او زما خپله مور دا یو کال کیږي چه وفات کړیدي اوس زه دمور موروثه حق دخپلو ماماګانو څخه غواړم نوزه ستا دمقام څخه هیله لرم چه درویه ده شریعت وماته معلوما ت راکړې چه زماحق کیږي چه زه خپل حق دماما ګانو څخه اخلم او کیا تر څو ستاسې دمعلومات سره سم زه هغه کار وکړم ؟

**جواب** : دعوی د دغه مستفتي په باره کې دحق دخپل مور صحیح ده او مسموع ده ځکه چه ۲۰ شل کاله مدة دمرور الزمان نه ده او دغه وارث قائم مقام د مورث دی حقیقتاً او حکما او مدة دمرور الزمان ۳۶ کاله بناء پرراجح قول.

وفي جامع الفتوى عن فتاوى العتابي قال المتاخرون من اهل الفتوى لاتسمع الدعوى بعد ست وثلاثين سنة الخ ( ردالمحتار صـ٣٨٢ج ٤ ) وهكذافي ( شرح المجلة الاتاسي

صـ۱۶۸ج۵ ) و ( تنـقـيح الفتاوى الحامدية صـ۳ج۲ ) وذلک لان الوارث قائم مقام المورث حقيقة وحـكما فما يمنـع صحة دعوى المورث يمنـع صحة دعوى الوارث ( حامدية ) ( شرح المجلة سليم باز صـ۹۹۴ ) و هـكذافى ( شرح المجلة الاتاسى صـ۱۸۷ج۵ ) والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که څوک دپنځلس(۱۵) ورسته دعوي وکړي دادعوه مسموع ده کنه؟

**سوال**: زما دمور خپل مور وته حق چه ۴۷ کاله پخوا دپلار دمرګ څخه وروسته ورپاته سوی او خپلو تربورو ورڅخه خوړلي دي اوس غواړي چه دعوي وکړي خو هيڅ څوک يي عرض نه اوري او وايي چه ستاسي پر دعوه ۱۵ کاله تيرسوي دي نو نه اوريده کيږي نو زمونږ پوښتنه داده چه دښځو لپاره دحق طلبول تر څو کاله پوري جواز لري؟

**جواب**: دعوه که دښځي وي او که دنر تر ۳۶ کاله پوري اوريده کيږي او که تر ۳۶ کاله دعوه تيره سي او مدعي ته هم هيڅ عذر نه وي موجود نو بيائي دعوه نه اوريدل کيږي او دغه کسان چه وايي دعوه تر ۱۵ کاله وروسته نه اوريده کيږي دا خبره هغه وقت صحيح ده که اميرالمؤمنين محکمو ته خبر ورکړي وو چه پس د ۱۵ کاله دعوه مه اورئ او که يي دا خبر نه وو ورکړي نو بيا دا خبره صحيح نه ده بلکه تر ۳۶ کاله پوري به دعوه اوري او که چيري ستاسو د دعوي شرائط برابروي نو پر قاضي دا لازمه ده چه ستاسو دعوي به اوري.

وفى جامع الفتوى عن فتاوى العتابى قال المتاخرون من اهل الفتوى لاتسمع الدعوى بعد ست وثلاثين سنة الخ ( ردالمحتار صـ۳۸۲ج۴ ) هـكذافى ( شرح المجلة الاتاسى صـ۱۶۸ج۵ ) و ( تنـقيح الفتاوى الحامدية صـ۳ج۲ ) ولو امر السلطان بعدم سماع الدعوى بعد خمسة عشر سنة فسمعها لم ينفذ قلت فلا تسمع الان بعدها الابامر ( الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۳۸۰ج۴ ) هـكذافى ( تنقيح الفتاوى الحامدية صـ۴ج۲ ) لايجوز للحاكم تاخير الحكم اذاتوفرت اسبابه وشروطه بتمامها ( المجلة المـ۱۸۲۸ ) والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که ووایي(زمامانه پرماپه سل(۱۰۰)تلاکه تلاکه ده)کوم طلاق ده؟

**سوال**: زموږ يو انډيوال دی مانيه يی کورنه وه طالب دمور سره خوشکه وکړه دماينی پر سر طالب باره وويل ومورته چه زما ماينه يی پر ما په ۱۰۰ سل تلاکه تلاکه ده يو څه چه ولاړی بيايی ورته وويل چه زما ماينه پر ما په ۱۰۰ سل تلاکه تلاکه ده په دغسی شکل يی پنځه واره وويل او دده نيت دتلاکو نه وو ددغه خبری معلومات راکړی؟

(ملا رفيق اخند)

**جواب**: په دغه صورت کی چه مستفتی ليکلی دی ۳ طلاقه واقع سوی دی او دده په نيت پوری اړه نلری ولی داصريحی طلاق دی که نيت وی او که نوی واقع کيږی حتی که نيت د عدم وقوع وکی هم دده تصديق نسی کيدلای قضاً.

کمالو قال اکثر الطلاق اوانت طالق مرارا اوالوفا اولاقليل ولاکثير فثلاث هو المختار کمافی الجوهرة الدرالمختار قوله اوالوفا جمع الفح اي فيقع به الثلاث ويلغو الزائد (ردالمحتار صــ۴۹۰ج۲) لماموان الصريح لايحتاج الی النية (ردالمحتار صــ۴۶۷ج۲) اما اشتراط نية الطلاق فلابدليل انه لونوی الطلاق عن العمل لايصدق ويقع ديانة ايضا کما ياتی مع انه لم ينو معنی الطلاق ولذالو طلق هازلا (ردالمحتار صــ۴۶۸ج۲) ايک شخص نی تکرار مين اتنی زوجه کو کها که مين نی تم کو سو طلاقين دی اب وه شخص کهتا هی که مين نی غصه کی حالت مين بلانيت طلاق يه الفاظ کهی تهی تو طلاق واقع هوئی يا نهين الجواب صريح طلاق مين نيت کی ضرورت نهين هی بدون نيت کی طلاق واقع هو جاتی هی (فتاوی دارالعلوم ديو بند صــ۴۹ج۹) رجل قال لامرءته تراتلاق ههنا خمسة الفاظ تلاق وتلاغ وطلاغ وطلاک وتلاک عن الشيخ الامام الجليل ابی بکر محمد بن الفضل رحمه الله تعالی انه يقع وان تعمد وقصدان لايقع ولايصدق قضاء (الفتاوی الهندية صــ۳۵۷ج۱).

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که دمتوفی یوزوی غائب وي دغائب زوی
## دمتوفی لمسی تقسیم وکړي اوبیاغائب دخپل زوی تقسیم نه مني ؟

**سوال** : کله چه یو سړی مړسی او په مال کی یی تقسیم نه وی سوی څه وخت وروسته په داسی حال کی چه دمتوفی یو زوی غائب وو ددغه غائب زوی چه د متوفی لمسی کیږی را ولاړ سو دمتوفی دورثۀ په مابین کی یی تقسیم وکړی اوس هغه غائب زوی حاضر سوی دی او وایی چه دا تقسیم زما په غیاب کی سوی دی زمازوی دا حق نه درلودی چه تقسیم وکړی نو ځکه یی زه نه منم ؟

( ملا یار محمد )

**جواب** : هغه تقسیم چه په غیاب کی دیوه وارث وسی هغه موقوف دی پر اجازه دهغه وارث که هغه وارث اجازه وکړه نو تقسیم صحت لری که ئی اجازه نه وکړه صحت نه لری

سئل فی دار مشترکة بین هند وجماعة فاقتسموها فی غیبة هند بدون وکالة عنها ولا اجازة منها فهل تکون القسمة المزبورة غیر صحیحة الجواب نعم . . . . . ارض قسمت فلم یرض احد الشرکاء بنصیبه ثم زرعه بعد ذلک لم یعتبر فان القسمة ترد بالرداه ( تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ۱۸۰ ج۲ )
هکذا فی ( شرح المجلة سلیم باز اللبنانی صـ۶۲۴ المـ۱۱۲۶ )

والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که ددروښځوپه حضورکی تقسیم وسي اوخپلي حصې قبض کړي بیایوه غائبه سي اومیره بل تقسیم وکړي کوم یو معتبر دي اول که دوهم ؟

**سوال** : یو سړی په خپل ژوند کی خپلو ۳ ښځو ته تقسیم ورکړی او هغوئ خپلې حصې تسلیم او قبض کړی او ډیر وخت یې تصرف پکښې وکړ وروسته په غیاب کی دیوې ښځې دغه سړي نوی تقسیم وکړ څه وخت وروسته یې بیا هم په غیاب کی دهغې ښځې دریم تقسیم وکړ اوس هغه غائبه ښځه داول تقسیم مطالبه کوی او نوری ښځی دنورو تقسیمونو مطالبه کوی ایا شرعی حکم په دی هکله څه دی ؟

( ملا محمد اسحاق اخند )

**جواب** : که واقعه داسی وی لکه مستفتی چه لیکلی دی نو دغه اول تقسیم صحیح او معتبر دی او دانور تقسیمونه بی اعتباره او غیر صحیح دی ولی په اول تقسیم سره ملکیت ودغه ۳ ماینوگانو ته انتقال سوی دی بیا هغو تصرف پکښی کړی دی نو دغه واهب بیرته رجوع هم نسی کولای ولی هم قرابة سته دواهب او موهوب له په مابین کی او هم موهوب له تصرفات کړی دی فلهذا دا اختیار زوج لره هیڅکله نسته چه نوی تقسیم وکړی.

یملک الموهوب له الموهوب بالقبض ( المجلة الم‍ـ۸۶۱ ) لووهب کل من الزوج والزوجة صاحبه شیئا وسلمه حال کون الزوجیة قائمة بینهما لیس له الرجوع ( المجلة الم‍ـ۸۶۷ ) هکذافی ( الفقه الاسلامی صـ۳۱ ج۵ ) و ( بدائع الصنائع صـ۱۳۲ ج۶ ) و ( الفتاوی الهندیة صـ۳۸۶ ج۴ )

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دتلاشي په وخت چې موټرخالي کيږي

## اوډکيږي دامزدوري پر چاده پرموټروان يامالک اوکه پرحکومت؟

**سوال**: محترماً څرنګه چه ونبارته د داخيلدو په وخت کی موټران په څنځيروکی تلاشی کيږی چه تقريباً دموټرو تعداد زياتو موټروته رسيږی چه دنوموړو موټرو د تلاشی په وخت کی هغه اجناس چه دموټر څخه کښته او بيرته موټرته پورته کيږی چه دغه اجوره دموټروانانو څخه واخستل سی او که څنګه په دغه باره کی مونږ ته معلومات راکړئ ډيره مهربانی به مو وی او دموټرانو تعداد زيات دی چه طالبان دغه کار دوظيفی له نګاه څخه نسی کولای؟

(قومندانی امنية حافظ عبدالمجيد خيرانديش)

**جواب**: په دغه صورت کی چه دموټرانو تلاشی کول دپاره دامنيت ټينګولو ضروری وبلل سی او دموټرانو څه داجناسو دکښته کولو او پورته کولو دپاره مزدوران ودرول سی نو په دی شکل کی حکومت مستاجر دی او دغه مزدور اجير دی او موټروان يا مالک دموټر فضولی او خارج سړی دی نو هر کله چه حکومت مستاجر سو نو دمزدور تنخواه او مزدوری هم پرحکومت ده نه پر موټروان يا پر مالک دموټر او حکومت ته دا هم نده جائز چه موټروان يا مالک دموټر په دی مکلف کی چه مزدور پيدا کړی او اجناس په کښته کړی ولی دا امنيت يومنفعة او مصلحة عامة دی او دفوائد عامه مصارف پر بيت المال باندی کيږی او بله ضروری خبره دا هم ده چه دغه تلاشی به يوازی دامنيتی مصالحو دپاره کيږی نه دپاره دمنکراتو پيدا کولو لکه پيټی او عکسونه او داسی نور ولی تلاشی کول دپاره دمنکراتو پيدا کولو حرامه ده او په آيت شريف او احاديثو کی منع څنی سويده او دمذهب څه خلاف عمل دی.

المستاجر بكسر الجيم وهو الذی استاجر (المجلة الـ۴۱۰) وكری نهر غير مملوک من بيت المال لان ذلک لمصلحة العامة ومال بيت المال معد لها فكان مؤنة الكری منه (تبيين الحقائق ص۴۰ ج۶) آية كريمة كښی راځی (ولاتجسسوا

) (نمـ۱۱ سورة حجرات) اخرج ابوداود وجماعة عن زیدبن وهب قلنـا لابـن مسعود هل لک فی الولیدبن عقبة بن معیط تقطر لحیته خمرا فقال ابن مسعود قد نهینا عن التجسس فان ظهر لناشئ اخذ نابه (روح المعانی صـ۱۵۷ج ۲۶) وعن ابن عمر قال صعد رسول اللهﷺ المنبر فنادی بصوت رفیع فقال یا معشر من اسلم بلسانه ولم یفض الایمان الی قلبه لاتؤ ذوالمسلمین ولاتعیر وهم ولاتتبعو اعوراتهم فانه من یتبع عورة اخیه المسلم یتبع الله عورته ومن یتبع الله عورته یفضحه ولو فی جوف رحله رواه الترمذی (مشکوة المصابیح صـ) ومعنی الایة خذواما ظهر ولاتتبعوا عورات المسلمین ای لایبحث احدکم عن عیب اخیه حتی یطلع علیه بعد ان ستره الله...... عن ابی امامة عن النبیﷺ ان الامیر اذا ابتغی الریبة فی الناس افسد هم (احکام القرآن التهانوی صـ۲۸۵ج ۴) الشرط الثاث انیکون المنکر ظاهر اللمحتسب بغیر تجسس فکل من ستر معصیته فی داره واغلق بابه لایجوزان یتجسس علیه (احیاء العلوم صـ۳۲۵ج ۲) والله تعالیٰﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

**پیشکي (اندوانس) کرایه جائز ده کنه؟**

**سوال**: بعضی دکانداران دخپلو دکانو کرایه بطور پیشکی غواړی نو دغه پیشکی کرایه ددکانو مالکانو ته جائز ده کنه؟ (اطاق تجارتی)

**جواب**: پیشکی کرایه اخستل جائز دی شرعی مشکل نسته پکښی.

تلزم الاجرة بالتعجیل یعنی لوسلم المستاجر الاجرة نقداً ملکها الآجر ولیس للمستاجر استر دادها (المجلة المـ۴۶۷) تلزم الاجرة بشرط التعجیل یعنی لوشرط انتکون الاجرة معجلة لزم المستاجر تسلیمها سواء کان عقد الاجارة وارداً علی الاعیان او علی العمل (المجلة المـ۴۶۸) هکذافی (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۶ج ۵ ط بیروت) و (الفتاوی الهندیة صـ۴۱۳ج ۴) و (مجمع الانهر صـ۳۷۱ج ۲)

والله تعالیٰﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## قطاع الطريق که له ډيرو نفرو پريوه ځای مال يوسي اونصاب ته هم ورسيږي ياځه مالونه له گرفتاري وروسته مالک ته تسليم کړی بياهم قصاص سته اوکنه؟

**ســـوال**: دوجلد دوسيه که دران رازطرف محکمه شرعی حکم برحدشرعی وقصاص صورت گرفته غرض صحت وسقم حکم ازمقام محترم امارت اسلامی افغانستان بریاست محکمه اختصاصی مواصلت ورزیده قرار معلوم وملاحظه دریک موضوع مجرمین چند نفربوده ومحکمه بقطع ید وپای صورت گرفته وی اشتباه بارآ ورده که اموال متفرقه ازچند نفر مسروق منهم یکجا به نصاب برسد حکم برقطع ید وپای صورت میگرو ویا بافرادی شکل درصورتیکه بعضی اموال مسروقه بعد ازگرفتاری بمالک ردشود دراینصورت باید چه حکم صورت گرفته باشد لطفاً درمحاز ورقه هذا غرض طلب استفتاء تکلف کنید با احترام؟

(رئیس محکمه اختصاصی)

**داول سوال جواب**: دقطاع الطريقو حکم په باب کی دنصاب لکه حکم دسرقی داسی دی لکه په سرقه کی چه دا شرط وو چه اموال متفرقة دنصاب دپاره نه جمع کيږی بلکه مال مسروق به په يوه وار سرقه سره وړل سوی وی او نصاب ته به رسيدلی وی همداسی حکم دقطع الطريق دی چه په يو وار قطع به يی دنصاب قدرمال اخستی وی که ديوه سړی څخه اخستل سوی وی که د ډيرو خلقو څخه او هر څو قاطعين چه وی هر يوه ته به دنصاب قدر مال رسيدلی وی نو که يی دنصاب اندازه مال اخيستی وو او بيائی تقسيم کړی وو لکن قاطعينو ته په تقسيم کی کم ترنصاب رسيدلی وو نو حد نه پر جاری کيږی.

واذا عرف ان النصاب شرط وجوب القطع بالسرقة فان وجد ذلک القدرفی اخذ سرقة واحدة قطع لوجود الشرط وهو کمال النصاب وان اختلفت السرقة لم يقطع لفقد الشرط (بدائع الصنائع صـ۷۷ج۷) هکذافی (الفقه الاسلامی

صـ۱۰۶ج ۶) (الفتاوی الهندية صـ۱۸۰ج ۲) فاذا اخرج العشرة من الدار قطع وان خرج فی كل مرة من الدارثم عاد حتى فعل ذلک عشرمرات لم يقطع لانها سرقات (ردالمحتارصـ۲۱۲ج ۳) يشترط فيه (ای فی المال الذی اخذه القاطع) نفس الشروط التی ذكرناها فی المسروق (الفقه الاسلامی صـ۱۳۳ج ۶) هكذافی (بدائع الصنائع صـ۹۲ج ۷) (الفتاوی الهندية صـ۱۸۶ج ۲) وان اخذ مالا وحصل لكل واحد نصاب السرقة قطع يده اليمنی ورجله اليسری ای انكان صحيح الاطراف فان لم يحصل لكل واحد نصاب لم يقطع (مجمع الانهر صـ۶۲۹ج ۱) هكذافی (ردالمحتارصـ۲۱۳ج ۳ () والفتاوی الهندية صـ۱۸۶ج ۲ والفقه الاسلامی صـ۱۳۴ج ۶).

**ددوهم سوال جواب**: ردول دمالو و خپلو مالکانو ته وروسته تر نیولو دقاطعینو اعتبار نه لري او تر مخه تر نیولو که دوی تو به کښلی وه او مالونه یی رد کړی وه نو بیا حد ساقطیږی.

والخامسة ان يظفر بهم الامام قبل التوبة وردالاموال الی اربابها كذافی التتارخانية (الهندية صـ۱۸۶ج ۲) هكذافی (ردالمحتارصـ۲۱۴ج ۳ ط بيروت) هذا اذا تاب قاطع الطريق قبل القدرة عليه فاما اذا تاب بعد ماقدر عليه بان اخذ ثم تاب لا يسقط عنه الحد لان التوبة عن السرقة اذا اخذ المال برد المال علی صاحبه وبعد الاخذ لايكون ردالمال بل يكون استردادا منه جبرا فلايسقط الحد واذا لم ياخذ المال فهو بعد الاخذ متهم فی اظهار التوبة فلا تتحقق توبته (بدائع الصنائع صـ۹۶ج ۷)

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دمرعی حکم څه دي؟ اوکه دکان یامسنجدپکښي جوړ سی جواز لري کنه؟

**ســوال**: مسئله اول مرعی است ما یان علماء حکم نمودیم چنانکه اگر درزمین مرعی مسجد جامع ودکان دحمام بناء شود لاباس بها بدلیل این مسئله قال ابو یوسف رح اذا غصب ارضا فبنا فیها مسجدا اوحماما او حانوتا فلاباس بالصلوة فی المسجد والدخول فی الحمام للاغتسال وفی الحانوت للشراء (هندیة ص۳۲۰ ج۵)

مسئله دویم انکه: والارض ان یسمع الصوت فلیس بموات لانه فناء العامر فینتفعون به لرعی المواشی وطرح الحصائد (کنز ص۴۲۹) مثلا لو ضبط واحد المرعی المختص بقریة وتصرف فیه خمسین سنة ثم ادعاه اهل القریة تسمع دعواهم (شرح المجلة الم۹۹۷) واین مسجد و بازار در وقت حکومت ربانی جور شده وریح مرعی جائزاست یانه وشفع دران جاری میشود یا نه ؟

**جواب**: ددې استفتاو په جواب کی باید څو مهمی نکتی ذکر کړو.

**اول**: که دغه ځکه واقعاً مرعی وی نو دغه مسجد حکم دمسجد نلری ولی په وقفی ځکه کی ملکیت د واقف شرط دی غیر مملوکه ځکه نه وقف کیږی که څه هم په دغه مسجد کی لمونځ صحت لری لکن مسجد چونکه شرعاً مسجد ندی نو باید ونړول سی او داغه ځکه بیرته دخلقو مرعی وگرځی ځکه چه دمرعی احیاء جائز نده.

ولایجوزاحیاء ماقرب من العامر بل یترک مرعی لاهل قریة ومطر حالحصائدهم لتحقق حاجتهم الیه تحقیقا او تقدیرا (شرح المجلة الاتاسی ص۲۰۳ ج۴) و (مجمع الانهر ص۵۵۸ ج۲) و (ردالمحتار ص۳۰۸ ج۵) وتفسیر الاحیاء ان یبنی علیها او یغرس فیها او یکربها او یسقیها کذافی الخلاصة (الفتاوی الهندیة ص۳۸۶ ج۵) ومنها الملک وقت الوقف حتی لوغصب ارضا فوقفها ثم اشتراها من مالکها ودفع الثمن الیه ...... لاتکون وقفا کذافی البحر الرائق (الفتاوی الهندیة ص۳۵۳ ج۲) هکذافی (مجمع الانهر ص۷۳۰ ج۱) و (ردالمحتار ص۳۵۹ ج۳) وهل تصح الصلاة فی المکان المغصوب قال الجمهور

غیر الحنابلة الصلاة صحیحة . . . . ویسقط بها الفرضُ مع الاثم ویحصل بها الثواب ﴿ الفقه الاسلامی صـ۷۹۵ج۱ ﴾ هکذافی ﴿ البدائع صـ۱۱۶ج۱ ﴾ .

**دوهم** : مرعی هغه ځمکی ته ویل کیږی چه دحکومت او رعیت مملوکه نوی او دخلقو منافع پکښی کی وی لکه دحیواناتو چراګاه یا دبوټو کولو ځای یا دحاصلاتو ایښوولو ځای یا دکلی مقبره یا دکوچنیانو دلوبو ځای که دکلی په مابین کی وی یا دکلی او ښار څه دومره لیری وی چه یو لوړ اوازه شخص ودریږی او ناره وکړی نو ترکمه ځایه چه یی ناره رسیږی هغه اندازه به دمرعی حد بلل کیږی چه همد غه تعریف او اندازه دامیر المؤمنین په صادر سوی فرمان کی تاکلی سویدی ( تاریخ صدور/۱۴۱۹/۱۰/۲۳ ماده ۹ الی ۱۵ ) .

ماکان من مرافق اهل بلدة یستعمل مرعی للمواشی ومحتطبا لهم او مقبرة لموتاهم او ملعبا لصغارهم سواء اکانت داخل البلدة ام خارجها فیکون حقالهم لاامواتا ﴿ الفقه الاسلامی صـ۵۴۳ج۵ ﴾ ﴿ مجمع الانهر صـ۵۵۸ج۲ ﴾ ﴿ ردالمحتار صـ۳۰۸ج۵ ﴾ قال القدوری فماکان عادیا . . . . . وهو بعید عن القریة بحیث اذا وقف انسان من اقصی العامر فصاح لم یسمع الصوت فیه فهو موات قال القاضی فخرالدین واصح ماقیل فیه ان یقوم الرجل عی طرف عمران القریة فینادی باعلی صوته الی ای موضع ینتهی الیه صوته یکون من فناء العمران ﴿ الفتاوی الهندیة صـ۳۸۶ج۵ ﴾ .

**دریم** : مرعی او همدارنګه په دعوی کی دنورو حقوق عامه مرورد زمان اعتبار نلری ځکه چه په عامو خلقو کی حتماً کوچنیان غائبین او نور اصحاب العذره موجودوی او کله چه دهغوی دعوی صحت ولری نو دهغه کسانو دعوی چه اصحاب العذر نوی هم صحت لری.

لااعتبارلمرورالزمان فی دعاوی المحال التی یعود نفعها للعامة کالطریق العام و النهر والمرعی مثلاً لوضبط واحد المرعی الختص بقریة وتصرف فیه خمسین سنة بلانزاع ثم ادعا اهل القریة تسمع دعواهم ﴿ المجلة المـ۱۶۷۵ ﴾ والحال ان ترک الدعوی بدون عذرلایتصورفی دعاوی المحال الخصصة لمنافع العامة لان العامة لاتخلوامن الصغار والمجانین والمعتوهین والغیب . . . . . . واذالم تسقط دعواه لاتسقط ایضا دعوی غیره ممن لاعذرله فی ترک الدعوی لانه لیس لکل واحد من العامة فی الطریق ونحوه حق معلوم یقبل التجزئة

لتسقط دعوی بعضهم وتبقی دعوی الاخر وقد ذکر فی المادة ۶۳ بان ذکر بعض مالایتجزء کذکر کله (شرح المجلة سلیم باز ص۹۹۷).

**خلورم**: بیع دمرعی باطله ده وبطل ایضا بیع المراعی واجارتها اما بطلان بیعها فلعدم الملک (سلیم باز ص۱۰۱) هکذافی (الفقه الاسلامی ص۱۷۷ج۴) و (بدائع الصنائع ص۱۴۶ج۵) نو کله چه ئی بیع باطله سو ه نو شفعة هم نه پکښی جاری کیږی ولی شفعة په مبیعه کی وی فقط الشفعة هی حق تملک العقار المبیع جبرا عن المشتری (الفقه الاسلامی ص۷۹۲ج۵) (تبیین الحقائق ص۲۳۹ج۵).

**پنځم**: لمونځ په ارض مغصوبة کی صحیح دی فرضیة او ثواب ته ئی ضررنه رسیږی لکن اقامة او سکونت په ارض مغصوبة کی حرام دی فلهذا لمونځ په ارض مغصوبة کی کځه هم صحیح دی لکن حرام دی او په هندیة کی چه لاباس راغلی دی نو هغه دلایسع دعبارة سره منافی ندی ولی دلاباس استعمال اکثر هلته وی چه ترک دهغه فعل اولی وی او بل دا چه لاباس دلته متوجه وصحه ته دلمانځه دی نه اقامة ته په ارض مغصوبة کی او همدارنګه باید و وایو چه حکم دمرعی حکم دارض مغصوبة نلری ځکه په مرعی کی هر څوک دموقت اقامة او سکونت حق لری نه په ارض مغصوبة کی حاصل دا چه مسجد په مرعی کی حکم دمسجد نلری باید ونړول سی لکن لمونځ هیڅ ضرر نه پکښی لری.

الصلاة فی الارض المغصوبة حرام بالاجماع لان اللبث فیها یحرم فی غیر الصلوة فلان یحرم فی الصلاة اولی....... ویسقط بها الفرض مع الاثم ویحصل بها الثواب فیکون مثابا علی فعله عاصیا بمقامه (الفقه الاسلامی ص۷۹۵ج۱ بدائع الصنائع ص۱۱۶ج۱) فکلمة لاباس وانکان الغالب استعمالها فیما ترکه اولی لکنها قد تستعمل فی المندوب (ردالمحتار ص۸۱ج۱ بیروت) والظاهر انه لامخالفة (ای بین لاباس بالصلاة فیها ولاینبغی ان یصلی فیها) لان لاباس عند عدم القرینة یدل علی خلاف الاولی ویمکن حمل لاینبغی علیه (غنیة المستملی ص۵۷۱ط مجتبائی) یجوز لکل واحد الانتفاع بالمباح لکنه یشترط ان لایضر بالعامة (المجلة الم۱۲۵۴).

والله تعالی ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحیم

## دشریکانو له رضاپرته دپخوانئ مځکې اوبه نوې مځکې ته بیولای سې کنه؟

**سوال:** یوځوک چه دیو خاصي ویالي څه دیو خاصي مځکي دپاره خپله حقابه ولري او ددې وروسته دغه سړی بل ځای مځکه رانیسي ایا کولای سی چه ددغه مځکی او به هغه مځکی ته انتقال کړی کنه؟ (غلام محی الدین)

**جواب:** کله چه یو مځکه دیو خاصي ولی څه خپله حقابه ولري او مالک ددغه مځکی بل ځای مځکه رانیسي نو دغه مالک نسي کولای چه دمخکینی مځکی اوبه ونوی مځکی ته واړوی او دهغی په حقابه یی او به کړی بی له رضاء دنورو ټولو شرکاء او بی له هغه ترتیبه څه چه ترمخه هغه پخوانی مځکه په خپله اندازه او بو سره اوبه کړی او بیا دویالی خوله بنده کړی او په دغه مځکه کی چه اوبه جمعه سوی وی هغه په یو طریقه سره نوی مځکی ته انتقال کړی.

ولیس له ان یسوق الماء فی نوبته الی ارضٍ اخری لاشرب لها من ذلک النهر (المجلة المـ۱۲۶۹) وذکر خواهرزاده انه اذا ملا الاولی وسد فوهة النهر له ان یسقی الاخری من هذا الماء لانه حینئذ لم یستوف زیادة علی حقه وان لم یسد فلا (سلیم باز صـ۶۸۷) رجل له شرب من نهر لارضٍ فاشتری ارضا اخری لیس لها شرب من هذا النهر الذی بجنب ارضه الاولی لیس له ان یجری الماء من الاولی الیها او یجعلها مکان الاولی (الفتاوی الهندیة صـ۳۹۹ج ۵) هکذافی (مجمع الانهر صـ۵۶۳ج ۲) و (ردالمحتار صـ۲۸۶ج ۵ بیروت) ((ولیس لاحد من الشرکاء) فی النهر (ان یشق منه نهرا ..... اویسوق نصیبه الی ارضٍ له اخری لیس له منه)) ای من النهر (شرب بلا رضاهم) یتعلق بالجمیع (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۲۸۶ج ۵ بیروت)

والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## داوس زمانی قاضی دخپل علم پر اساس فتوی کولای سي؟

**سوال** : حکم قاضی بعلم خود در حقوق العباد ویاحق الله درین عصروزمان موجوده شرعاً صحت دارد یا نه. ومسئله که در جلد ۷ البحر الرائق بدین طور ذکر شده است وظاهر مافی جامع الفصولین ان الفتوی علی ان القاضی لایقضی بعلمه لفساد قضاة الزمان (البحرالرائق ص-۲۰۵ج ۷) ونیز درجلد ۶ البحرالرائق همین طور مذکور است ورجح فی جامع الفصولین قول محمد قال ینبغی ان یفتی به لماعلم من احوال قضاة زماننا ثم نقل محمد قال لایقضی القاضی بعلمه ثم نقل عن عیون المذاهب ان بقوله یفتی (البحرالرائق ص-۲۵۸ج ۶) همین مسئله متذکره شرعاً معتبره می باشد یانه اگر درباره استفتاء فوق فتویٰ شرعی برایم عنایت فرمائید عین الطاف شما محترم است ؟

(حاجی ملا نظر گل احمد)

**جواب** : که څه هم په اصل مذهب کی قاضی لره جائز ده چه قضاء په خپل علم سره وکړی لکن په نن زمانه کی دفساد دز یادوالی له وجهی فقهاء منعه کوی او وایی چه قاضی به پخپل علم سره قضاء نکوی او داغه قول هم مفتی به دی که څه هم په بعض احتیاطی امورو کی احتساب اوامر جاری کولای سی لکن قضاء اعتبار نلری.

القاضی ..... یقضی بعلمه فی حقوق العباد قیاسا واستحسانافی الاموال وغیرها (الفتاوی الهندیة ص-۳۳۹ج ۳) والمختار الآن عدم حکمه بعلمه مطلقا کما لایقضی بعلمه فی الحدود الخالصة لله تعالی کزنا وخمر مطلقا غیر انه یعزرمن به اثر السکر للتهمة وعن الامام ان علم القاضی فی طلاق وعتاق وغصب یثبت الحیلولة علی وجه الحسبة لاالقضاء (الدرالمختار بهامش ردالمحتار ص-۳۹۵ج ۴) وعبارة الاشباه الفتوی الیوم علی عدم العمل بعلم القاضی فی زماننا کما فی جامع الفصولین (ردالمحتار ص-۳۹۴ج ۴) وقید بزماننا لفساد القضاة فیه واصل المذهب الجواز (ردالمحتار

صـ۳۸۳ج ۴ ) والمعتمد عنـد المتاخرين من الحنـفية وهـو المفتي بـه عـدم جواز قـضاء القاضـي بعلـمـه مطلقـا فـى زماننـا لفـسـاد قـضاة الزمـان( الفقـه الاسلامي صـ۴۹۲ج ۶ ) ( طحطاوی علی الـدرالمختار صـ۲۱۲ج ۳ ) هـكـذافی ( البحرالرائق صـ۲۰۵ج ۷ ).

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که دنجلۍ رضانه وي اوپه نکاح ورکول سی څه حکم دی؟

**سوال** : یوه ښځه چه بې بې سارا نو میږی او دیو بلې انجلی په مُخی ورکول سوی ده خو دهغه وخته چه ورکول سوی ده دغه بې بې سارا ناراضه ده او وایی چه که څوک دغـه نکاح پرما تحمیلوی نو زه خودکُشی کوم نو په دې هکله شرعی حکم څه دی ؟

**جواب** : دښځې په نکاح کې دهغې رضاء ډیر مهم شرط دی که چیری دیو ښځې رضاء او خوښه نوی او پلار یا بل قریب ئی ورکوی نو دانکاح قطعاً صحت نلری نو دغـه ښځه چه په استفتاء کې ذکـر سـوی ده او ددی بی رضاء او ددی بی خوښـی ورکـول سـوی ده دغـه نکاح صحت نلری او نه ئی ورکول دغه سړی ته جائز دی او هغه بله انجلی چه ددغـی ښځې پـه مُخی وه دهغی ونکاح ته ددی بلی ښځې پاته کیدل تاوان نه رسوی بلکه هغـی تـه دی پـه مهر( ولور )ورکولو قناعت ورکول سی.

باب اذا زوج ابنته وهی کارهة فنکاحـه مـردود حـدثـنـا اسـمـاعیل .... .. عـن خنسـاء بنـت خـذام الانـصـارية ان اباهـا زوجهـا وهـی ثيب فـكـرهـت ذلـك فـاتـت رسـول اللهﷺ فـرد نـكـاحـهـا ( بخـاری شـريف صــ۷۷۱ج ۲ ) هـكـذافی ( مشكوة المصابيح صـ۲۷۰ ) ولو استاذنها فی معين فردت ثم زوجهامنـه فـسكتت صح فی الاصح بخلاف مالو بلغها فردت ثم قـال رضيت لم يجـز لبطلانـه بـالرد الـدرالمختار قوله بخلاف مالو بلغها لان نفاذ التزويج كـان موقو فاعلى الاجازة وقـد بطل بـالرد

والر دفی الاول کان للاستئذان لالتزوج العارض بعده لکن قال فی الفتح الاوجه عدم الصحة لان ذلک الرد الصریح یضعف کون ذلک السکوت دلالة الرضاء آه واقره فی البحر ﴿ردالمحتار صـ۳۲۵ج۲﴾.
او همدارنگه په ډیرو کتابو کی دښځی رضا شرط لازم بلل سوی دی لکه ﴿ردالمحتار صـ۳۲۴ج۲﴾ ﴿امداد الفتاوی صـ۱۷۴ج۲﴾ ﴿فتاوی دارالعلوم دیوبند صـ۷۳ و۵۸ج۸﴾ ﴿عزیز الفتاوی صـ۴۱۹﴾

والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که پنځلس کاله پري تیرسی هغه دعوه مسموع ده کنه؟

**سوال**: زما مور دعبدال نامی چه زما پلار کیږی په میراث کی حق لری او عبدال نامی ۳۰ کاله تر مخه وفات سویدی او زما مور ته خپل حق نه دی رسیدلی نورو خلقو جبراً ځنی گرځولي دی کله چه په دې هکله زه دجون محکمی ته عارض سوم محکمې راته وویل چه ددې موضوع تر ۱۵ کلو زیات وخت کیږی قابل دسمع نده تاسو په دی هکله معلومات راکړئ چه پس د ۱۵ کاله قاضی موضوع اوریدلای سی کنه؟
﴿ملافضل ولدلعل محمد ولایت بادغیس ولسوالی جون﴾

**جواب**: مدة دمرور الزمان ۳۲ کاله شرعی ده یعنی که پریو موضوع ۳۲ کاله تیرسی او مدعی دعوه ونکی د قاضی په حضور کی او هیڅ عذر مدعی ته نوی پیښ نه کو چنی وی نه لیونی وی او نه هغه مدعی علیه یو ظالم حاکم وی په دی صورة کی نو قاضی ته شرعاً جواز نسته ددغسی دعوی داوریدلو او که محترم امیرالمؤمنین ومحاکموته خبر ورکړی وو چه پس له ۱۵ کاله څه هم دعوه مه اوری نو بیاقاضی ته دهغه موضوع اوریده جوازنلری چه ۱۵ کاله وربانذی تیر سوی وی او که دامیرالمؤمنین امر په دی هکله نوی صادر سوی او ددعوی دصحت شروط ټول موجود وی نو بیاقاضی ته لازمه ده چه سمع ددعوی وکی.

وفی جامع الفتوی عن فتاوی العتابی قال المتاخرون من اهل الفتوی لاتسمع الدعوی بعد ست وثلاثین سنة الخ (ردالمحتار صـ۳۸۲ج ۴) هکذافی شرح المجلة الاتاسی صـ۱۶۸ج ۵) و(تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ۳ج ۲) ولوامر السلطان بعدم سماع الدعوی بعد خمسة عشرسنة فسمعها لم ینفذ قلت فلا تسمع الان بعد ها الابامر (الدرالمختار بهامش ردالمختار صـ۳۸۰ج ۴) هکذافی (تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ۴ج ۲) اذا ترکت دعوی الارث بلاعذرشرعی خمس عشرة سنة فهل لاتسمع الجواب لاتسمع ای ان وجد المنع السلطانی الااذا اعترف الخصم بالحق ونقل مثله شیخ مشایخنا الترکمانی عن فتاوی علی افندی مفتی الروم الخ (ردالمحتار صـ۳۸۱ج ۴)لایجوزللحاکم تاخیر الحکم اذا توفرت اسبابه وشروطه بتمامها (المجلة المـ۱۸۲۸).

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

**که خوابني دزوم کشري خوراودزوم**
**مور دناوي مشر رورته شيدي ورکړی وی نکاح څنګه ده؟**

**سوال**: دناوی مور دزوم وکشرې خورته شیدی ورکړیدی اودزوم مور دناوی و مشر رورته شیدی ورکړیدی ایا په مذکوره صورت کی دناوی او زوم نکاح صحت لری کنه؟

**جواب**: محترم مستفتی صاحب په دغه مذکور صورت کی: دناوی او زوم نکاح بالکل صحت لری که چیری وناوی ته دزوم مور شیدی نه وی ورکړی او یازوم ته دناوی مور شیدی نه وی ورکړی.

سئل فی امراتین لکل منهما اولاد فارضعت کل منهما اولاد الاخری ثم بعد ذلک وضعت احدی المراتین المذکورتین بنتا والاخری وضعت ابنا ولم یرضع الابن من ام البنت ولم ترضع البنت من ام الابن الی ان بلغا فهل والحال هذه تحل البنت المذکور للابن المذکور واذا عقد علیها عقد صحیحا مستکملاً للشروط یکون العقد المذکور صحیحا نافذا اولایحرمان علی بعضهما بارضاع اخواتهما السابقین حیث لم یجتمعا علی ثدی واحد اجاب اذالم ترضع البنت المذکورة من ام الابن ولم یرضع الابن من ام البنت ولم یجتمعا علی ثدی واحد یحل النکاح بینهما وقد صرحوا بجواز تزوج اخت اخیه رضاعا والله سبحانه وتعالی اعلم (الفتاوی المهدیه صـ۶۲ج۱) سئل فی امراتین اجنبیتین ارضعت کل واحدة منهما اولادا معلومین للاخری ثم ولدت احداهما ذکر اوالاخری انثی ولم یجتمعا علی ثدی واحد بان لم یرضع الذکر من ام انثی ولاالانثی من ام الذکر اصلا فهل یسوغ للذکر التزوج بالانثی الجواب نعم حیث لم یکن بینهما رضاع وتحل اخت اخیه رضاعا کمافی التنویر وغیره (تنقیح الفتاوی الحامدیه صـ۳۴ج۱) وفی آخر المبسوط ولو کانت ام البنات ارضعت احدی البنین وام البنین ارضعت احدی البنات لم یکن للابن المرتضع من ام البنات ان یتزوج واحدة منهن وکان لاخوته ان یتزوجوا بنات الاخری الا الابنة التی ارضعتها امهم وحدها (الفتاوی الانقرویة صـ۶۸ج۱) قوله وتحل اخت اخیه لانها اختهم من الرضاعة (الفتاوی الانقرویة صـ۶۸ج۱) قوله وتحل اخت اخیه رضاعا یصح اتصاله بکل من المضاف والمضاف الیه وبهما کما قدمناه فی نظائره فالاول ان یکون له اخ من النسب ولهذا الاخ اخت رضاعیة والثانی ان یکون له اخ من الرضاع له اخت نسبیة الخ (البحر الرائق صـ۲۲۷ج۳ وهکذافی ردالمحتار صـ۴۴۲ج۲)

واللہ تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که دچاپه مځکه کي دبل وياله تيره سوی وي بياخرابه سي مځکه ئې دچاده؟

**سوال**: از طرف امان الله عرض اینکه یک نفر که زمین شان زیر زمین من بود ومرور آب شان درزمین من بود بعد از مرور وقت جوئی سابق خراب گشته ومن آب آن از طریق دیگر راه دادم وخود شان قناعت نموده وبعد زمین خود مثلا با همراه زمین طرف شرقی مایان خاک بدلی نموده حالاً ازجهت مرورآب سابق دعوی نصف آن زمین جوئی سابق نموده آیا شرعاً حق دارد یا خیر ؟

**جواب**: دغه مدعی چه دنیمی مځکی دسابقه ولی دعوه کوی۱ یابه یی په یو شرعی وجه دعوه کوی لکه داچه دغه مځکه موږ په شراکت رانیولی ده یا یو چادواړو ته بخښلی ده یا یو بله شرعی طریقه نو باید دغه مدعی دخپلی دعوی اثبات وکړی نو به شراکت ثابت سی۲ یا به یی په دی وجه دعوه کوی چه په دغه مځکه کی پخوا زماد مځکی دپاره او به راتلی نو اوبه خوزماوی فلهذا مځکه یی هم زماده او بل دلیل نه ولری نو دا شرعی وجه نده او نه په دی طریقه سره استملاک راتلای سی.

ان اسباب او مصادر الملكية التامة فى الشريعة اربعة هى الاستيلاء على المباح والعقود والخلفية والتولد من الشئى المملوك (الفقه الاسلامى صـ۵۰۱ج۵) العقود الناقلة للملكية العقود كالبيع والهبة والوصية ونحوها من اهم مصادر الملكيــة واعمهــا واكثــرهـــا وقوعـــا فـــى الحيـــاة المدنيـــة (الفقه الاسلامى صـ۵۰۹ج۵) لايجوز لاحد ان ياخذ مال احد بلاسبب شرعى (المجلة المـ۹۷) اى لايحل فى كل الاحوال عمداً او خطئاً او نسيانا جداً او لعباً ان ياخذ احد مال احد بوجه لم يشرعه الله تعالى ولم يبحه (شرح المجلة الاتاسى صـ۲۶۴ج۱) قالت المجلة بلاسبب شرعى احترازاً عن وجود سبب شرعى للاخذ فيجوز كالمعاوضة المالية فى البيع يحل لاحد المتعاقدين اخذ الثمن وللاخر اخذ المبيع وكالاجارة...... وكذا التمليكات والكفالة والحوالة وكل ماورد فيه الجوار الشرعى (شرح المجلة الاتاسى صـ۲۶۶ج۱)

والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که پلار خپلو زامنوته تقسیم ورکړي خودتصرف اجازه ورنکړي؟

(**اول سوال**): مثلاً دزید والد مځکه رانیول دنیمي حصې قباله ئی دزید پر نامه جوړه کړه دنیمي حصې قباله ئی دنور وزامنو پر نامه جوړه کړه او والد په خپل حیات کی په خپلو پیسو پر مذکورو حصو سرایونه جوړ کړل او دقبضې او مالکانه تصرف اجازه یی وزید او نورو زامنو ته نه ده ورکړی بلکه ټولو په ګډه ګزاره پکښی کوله اوس عرض دادی چه ایا دغه مذکوره سرایونه دزامنو ملکیت دی او که په ترکه دوالد کی شامل دی پر طریقه دمیراث به تقسیمیږی؟

## که پلار خپل یوه زوی ته نقدي پیسي ورکړي له میراثه ئې وباسي نو له وفات وروسته په میراث کي حق لري کنه؟

(**دوهم سوال**): زید ته خپل والد په حیات کی ۱۷۰۰۰۰ لکه کالداری نقدی ورکړی دی او داسی ابراء خط یی ورځخه ترلاسه کړیدی چه زما دوفات ځخه وروسته زما په ترکه کی دنورو ورثاء سره حق دمیراث دحصی نه لری اوس عرض دادی چه داسی ابراء صحیح ده کنه او که صحیح نه وی دغه مذکور مبلغ به زید دتقسیم به وخت کی دپلار په ترکه کی بیرته شامله وی کنه؟

محمد اسلم اخندزاده)

**داول سوال جواب**: دهبی دپاره قبض لازم دی که چیری موهوب له دغه هبه سوی شی قبض نکړی نو دده ملکیت نګرځی حتی هغه مال ومتاع دواهب چه په هبه سوی سرای کی پراته وی ترڅو چه ایسته یی نکړی او سرای فارغ نکړی نو هم قبض نه تامیږی خوداټول هلته که دغه موهوب له زوی کبیر او لوی وو او که صغیر وو نو بیادده قبض نه دی شرط بلکه دغه پلار چه واهب دی او سرای یی هم د خپلو اموالو ځخه نه دی تخلیه کړی که چیری صغیر زوی ته هبه وکړی نو په مجرد عقد سره ملکیت زوی ته انتقالیږی قبض نه غواړی.

ومنها ان یکون الموهوب مقبوضا حتی لایثبت الملک للموهوب له قبل القبض ((الفتاوی الهندیة صـ۳۷۴ج۴)) هکذافی ((الدرالمختاربهامش ردالمحتار

صـ۵۶۹ج ۴) و(الفقـه الاسـلامی صـ۱۹ج ۵) الاصـل ان الموهـوب ان مشغولا بملك الواهـب منـع تمامهـا وان شاغلالا (الـدرالمختار بهـامش ردالمحتـار صـ۵۶۹ج۴) هـكذافی (الفتاوی الهنـدية صـ۳۷۴ج ۴) الموهوب له انكان من اهـل القـبض فحق القبض اليه وانكان الموهـوب لـه صـغيرا او مجنـو نـافحق القـبض الی وليه ووليه ابوه او وصی ابيه الـخ (الفـتاوی الهـنـدية صـ۳۹۲ج ۴) الاب اذاوهـب داره من ابنـه الصغير وفيهـا متاع الواهب فانـه يجوزوهوالمـا خوذ بـه وعليهـاالفتوی (الفتاوی الهنـدية صـ۳۹۲ج ۴) هـكذافی (الدرالمختاربهـامش ردالمحتار صـ۵۶۹ج ۴)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم

**ددوهـم سـوال جـواب**: دغـه رقـم کالداری چـه مستفتی ليکلی دی او زيـد تـه خپـل والد ورکړی دی په دی شرط چه په ميراث کی حق نلری نو داهبة ده پـه شرط فاسد سره او هبة په شرط فاسد سره داحکم لری چه هبة صحيح ده شرط يی باطل دی نو دغـه مبلغ دزيد گرځی او دی په ميراث کی خپل حق لری لکن ښه او بهتره داده چه دغـه مبلغ تبرعـاً دنورو ورثـةوو په مابين کی تقسيم کی.

قـال اصـحابنـا جميعـا اذا وهـب هبة وشـرط فيهـا شرطافاسـداً فالهبـة جـائزة والشرط باطل کمن وهب لرجل امة فاشـترط عليه ان لايبيعهـا او شـرط عليه ان يتخـذهـا ام ولـد ...... فالهبة جـائزة وهـذه الـشروط کلهـا باطلة کـذافی السـراج الوهـاج (الفتاوی الهـنـدية صـ۳۹۶ج ۴) و(الـدرالمختاربهـامش ردالمحتار صـ۵۶۷ج ۴) انيکون المـبـرء منـه موجـودا عنـد الابـراء فيبطـل الابـراء من الحق قبل وجوده کـان تبری شخصاً ممـا سيقرضه لک او ممـا ينجـب لـه (الفقـه الاسـلامی صـ۳۳۴ج ۵)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دافغانيو پور په کالداروبدليداى سي چې موجوده نه کالداري وي اونه افغانى؟

**سوال**: داستفتاء پـه دول ستاسـی دمبارک حضور څخـه طلب دفتـوی لـرم ديـوه نفـر چـه عبدالباری نوميږی دده يو څه مبلغ افغانی زماپه ذمه کی وی او څه ميعاد بعد دده افغانی چه جنساً موجودی نه وی او دکالدارو په نرخ ئي راسره وارولی چه کالداری هم موجودی نه وی نواوس دی زما څخـه طلب دکالـدارو کـوی څنگـه آياچی دواړه جنسـه سره موجود نـه وی او مبادله کيږی په شريعت غراءکی جواز لری او کنه اودده حق پرما څه شی کيږی ؟

(حاجی محمدنسيم مشهورپه حاجی لالک ماما)

**جواب**: دغه مبادله دکالدارو په افغانيو په دغسی صورت کی چه نه افغانی موجودی وی او نه کالداری نو دغـه مبادلـه صحيح نـه ده جـواز نلری او نـه پـه دی طريقـه پـور ورکـوونکی دکالدارو مستحق گرځيدلای سی بناء برمفتی به قول.

واما اذا وقع بغير جنسها فيجوز التفاضل فی قولهم جميعا وتحرم النسيئة فی قول مالک رحمه الله تعالی لكون ذلک صرّفاً عنده ولاتحرم علی قياس قول الحنفية لانه لاقدر فيها ولاجنس نعم يشترط قبض احد البدلين فی المجلس لئلايكون افتراقا عن دين بدين ثم الذی يظهران فلوس مملكة واحدة كلها جنس واحد..... وفلوس ممالک مختلفة اجناس مختلفة كالهللات السعودية والبيسات الپاكستانية (تكملة فتح الملهم صـ٥٨٩ج١) (احسن الفتاوی صـ٧٨ج٧)

والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که حکومت په شخصي مځکه کي سړک جوړوي مالک ئې منکر وي قيمت هم نه اخلي څه حکم لري؟

**سوال**: محترما دښاروالی ریاست دځپلو وزځنی کارونو پـه لړکـی دمـشکل سره مخ دی چه هغه دقندهار ښارپه داخل کی په ځلورو ناحیو کی دملحد رژیم پـه وخت کـی سړکان وایستل سوه چه یو تعداد خلګو چه کورونه ئی دسړک په امتداد کی تخریب سوی وه حاضراود هغه وقت دکور بهاء ئی ترلاسه کړی ولی یو تعداد خلګ چه اصلا حاضرنه ؤو دتخریب سوی ځای بهاءئی نده اخستی او عملاً ئی ځای تخریب او زموږ سره پخوانی بهاء تعین ده ولی دهغه کورو مالکان موافقه نه لري چه هغه قیمت ترلاسه کړی او ادعاء کوی چه زموږ دکور کومه حصه چه په سړک کی تللی هغه ئی د دولت او باقی پاته حصه ئی نه ورکوو او زموږ سره په دفتر داستملاک کی ددوی ټول ځای شامل دی هیله ده چه دشریعت غرا محمد ﷺ داحکامو په رڼاکی هدایت راته وکړئ چه دنوموړو خلګو سره څه ډول چلند وکړو ایا هغه تعین سوی پخوانی قیمت ورکړو او که پاته مځکه ئی ورته حواله کړو ؟

﴿مولـوی دیـن محمـد حـق بـین ښـاروال﴾

**جواب**: اصلاً خو شرعی حکم دادی چه دخلقو شخصی ملکیتونه استملاکول پـه بیعی سره یعنی پزوره وبیعی تـه مجبوره کـول دخلګو یـوازی دلاری دضرورة پـه خـاطر روادی لکن مشروط په څو مهمو شرطونو سره چه یوده شرطونو څه دادی چه هغه قیمت دهغه ځای به ورکوی تر مخه وروسته نو حکومت ته دتصرف اجازه سته پـه هغـه ځای کی وس نو کـم ځای چه استملاک سو او قیمت یی خلقو ته ورکول سو داځایَ دحکومت وګرځیدی کـه یی پـه لار ګډوی که یی خلقو ته ورکوی هغه زائد دلاری څه که یی بیرته پر اصلی مالک خرڅوی حاصل

داچه دغه خلق حق دهغه پخوانی ځای نلری که قیمت ورکول سوی وی او ددغه خلقو حق دهغه قیمت کیږی چه په کمه ورځ استملاک سوی دی نه دنن ورځی دقیمت نو ښاروالی باید داسی یو مناسبه لار مختاره کړی چه نه دحکومت تاوان وی نه دخلقو او نه دخلقو نا رضائیت پکښی وی باید یو مناسبه صلح ورسره وکړی.

لدی الحاجة یؤخذ ملک کائن من کان بالقیمة بامر السلطان ویلحق بالطریق لکن لایؤخذ من یده مالم یؤدله الثمن انظر الی ( مادتی المـ۲۵۱ المـ۲۶۲ ) انتهی ( المجلة المـ۱۲۱۶ )هکذافی ( الفتاوی الخانیة بهامش الهندیة صـ۲۳۸ج۱ ) و ( الفقه الاسلامی صـ۵۰۹ج ۵ وصـ۷۶ج ۴ ) الواجب بالاتلافات المالیة هوالواجب بالغصب وهو ضمان المثل انکان المتلف مثلیاً وضمان القیمة یوم الاتلاف فیما لامثل له الخ هکذافی ( الفقه الاسلامی صـ۷۵۰ج۵ ) و ( بدائع الصنائع صـ۱۶۸ج ۷ ) وانکانت زیادة القیمة لتقیر الاسعارلم تضمن الزیادة لان نقصان القیمة لهذا السبب لایضمن اذاردت العین المغصوبة بذاتها فلایضمن عند تلفها ( الفقه الاسلامی صـ۷۲۲ج ۵ ) .

( **نوټ** ) : په دی صورت کی چه غائب ته قیمت نه وی ورکول سوی او غائب په دی راضی وی چه هغه تللَی حصه پروانه لری هغه پاته حصه دی راکول سی نو حکومت باید هغه پاته حصه دوی ته ورکړی ځکه چه هغه قیمت نه دی قبول کړی نو عقد دبیع نه دی تمام سوی او دلاری جوړولو ضرورت هم دفع سوی دی فلهذا حکومت باید هغه باقی پاته حصه هغه خلقوته خامخا ورکړی چه قیمت ئی نوی تسلیم کړی.

والله تعالیﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## كه پلار دزامنو په حضوركي تقسيم وركړي بياځوزامن غائب وي بل تقسيم وكړي څه حكم لري ؟

**ســـــوال** : شخصی سه پسر دارد ملک واراضی خوده قرارآتی درحین صحت عقل وجسم ونفاذ جمع تصرفات شرعیه خودمن وجوه کلها به اشد رضاورغبت درحضور جمعی از مسلمانان تقسیم نموده است که ملک واراضی به چهار حصه تقسیم سه حصه برای پسران خود ویک حصه برای شخص خود تعین وتقسیم نموده وهرکدام از پسران وشخص پدر درحصه خود تصرف وتملیک نموده است بعد اپدرمذکور درغیاب چند پسر بعداً دیگرباز ملک مذکوررا تقسیم وبرای بعضی از پسران هبه میکند ایا حصه پدر مذکور در همچو موارد اعتبار دارد یانه ؟

**جواب** : در واقعه متذکره (طبق بیان مستفتی) تقسیم اول پدر صحیح وقابل اعتبار است وهبه سه حصه زمین به سه پسر درتقسیم اول هبه صحیح وشرعیه است ورجوع پدر ازین هبه بعد از قبض وتصرف پسران دران زمینها صحت ندارد فلهذا پدر حق تقسیم ثانی ندارد ونه تقسیم ثانی پدر صحت دارد زیراکه این تصرف است درملک شخصی پسران که تصرف درملک شخصی پسران بی اذن آنها جائز نیست . یملک الموهوب له الموهوب بالقبض (المجلة الـ۸۶۱) من وهب لاصوله وفروعه اولاخیه ...... فلیس له الرجوع (المجلة الـ۸۶۶) والمراد بالقرابة هنا القرابة الرحمیة المحرمیة فدخل فیها الاباء والامهات وان علوا والاولاد وان سفلوا الخ (سلیم بار ص۴۷۷) هکذافی (الفقه الاسلامی ص۳۱ ج۵) ولایرجع فی الهبة من المحارم بالقرابة کالاباء والامهات وان علواوالاولادوان سفلوا (الفتاوی الهندیة ص۳۸۷ ج۴) والخلاصة ان غیر المالکیة یرون ان الموهوب یملک بالقبض لابالعقد وعند المالکیة بالعقد (الفقه الاسلامی ص۲۱ ج۵)

والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که له غوږ څخه ترږتي دباندي نو نه راوزي سړی معذور ده کنه؟

**سوال**: که چیری مثلاً یو سړی معذوروی په غوږ سره مثلاً تر غوږئي حیا دی وی نو بهیږی نو په غوږکی دننه پنبه کنښیږدی نو په ۴-۳ شپا روزه تر پنبه شی نه راووزی پنبه چه دغوږ طرف ته وی هغه لانده وی او خارج طرف ئی وچ وی نو دغه سړی په حکم کی دمعذوروی او کیا په دغه حالت کی فقط ؟

**جواب**: که په غوږ کی زخم معلومیدی ښکاره وو او ده پنبه پر هغه زخم ایښی وه یعنی پنبه او زخم تماس سره درلودی نو ددی حکم په دی دول دی چه تر څو دپنبه وو ښکاره طرف لو ندنسی نو اودس لاهم نه ماتیږی معذور کیږی خو بالکل نه او که په غوږکی زخم نه معلو میدی او اوبه راتلی نو که ددغه اوبو راتلو سره درد وو نو کله چه دپنبه ؤو باطنی طرف لوندسی اودس ماتیږی نو که دغو نه وقت دغه لوندوالی څندیدی چه اودس او لمونځ پکښی ځاییدی نو معذور نه دی او که دغونه وقت ده نسوای پیدا کولای بیانو معذور بلل کیږی او که ددغه اوبو راتلو سره درد نوو نو بیا اودس نه ماتیږی که باطنی طرف لوندسی او که ظاهری طرف او که په غوږ کی زخم نه معلومیدی او وینه یا ژړی اوبه یانور فاسده مواد خارجیدل عام علماء او کتابونه وایی حکم یی داوبو راوتلودی او بعضی وایی که درد وی که ندوی چه دپنبه وو باطنی طرف لوندسی اودس ماتیږی.

وان احتشى احليله بقطنة خوفا من خروج البول لولا القطن لكان يخرج منه البول فلاباس به ولاينتقض وضوءه مالم يظهر البول على ظاهر القطنة لعدم الخروج ﴿كبيرى شرح منية المصلى صـ١٢٧﴾ هكذافى ﴿الفتاوى الهندية صـ١٠ج١﴾ وكذ الذاوضع عليه قطنة او شيئا آخر حتى ينشف ثم وضعه ثانيا وثالثا فانه يجمع جميع مانشف فانكان بحيث لو تركه سال نقض وانمايعرف هذا بالاجتهاد وغالب الظن ﴿ردالمحتار صـ١٠٠ج١﴾ كمالا ينتقض لو خرج من اذنه ونحوها كعينه وثديه قيح ونحوه كصديد وماء سرة وعين لابوجع وان خرج به اى بوجع نقض لانه دليل الجرح الدرالختار وعدم النقض هو مامشى عليه الدرر والجوهرة والزيلعى معزيا للحلوانى قال فى البحر وفيه نظر بل الظاهر اذا كان الخارج قيحا او صديداً انتقض سواء كان مع وجع او بدونه لانهما لايخرجان الاعن علة نعم هذا لتفصيل حسن فيما اذا كان الخارج ماء ليس غيرآه واقره في الشرنبلالية وايده بعبارة الفتح الجرح والنفطة وماء الثدى والسرة اذا كان لعلة سواء على الاصح الخ ﴿ردالمحتار صـ١٠٩ج١﴾ .

وقد منافى نواقض الوضوء عن البحر وغيره انّ التقييد بالعلة ظاهر فيما اذا كان الخارج من هذه المواضع ماء فقط بخلاف ما اذا كان قيحا او صديداً وقد منا هناك ايضاً بقية المباحث المتعلقة بالدمع فراجعها ﴿ردالمحتار صـ٢٢٣ج١﴾ واذا خرج من اذنه قيح او صديد ينظران خرج بدون الوجع لا ينتقض وضوءه وان خرج مع الوجع ينتقض وضوءه لانه اذا خرج مع الوجع فالظاهرانه خرج من الجرح هكذا حكى فتوى شمس الائمة الحلوانى رحمه الله تعالى كذافى المحيط وهكذافى الذخيرة والتبيين والسراج الوهاج ﴿الفتاوى الهندية صـ١١ج١﴾ هكذافى ﴿الجوهرة النيرة صـ١٠ج١﴾

وصاحب عذرمن به سلس ...... ان استوعب عذره تمام وقت صلاة مفروضة بان لايجد فى جميع وقتها زمنايتوضا ويصلى فيه خاليا عن الحدث ولوحكما لان الانقطاع اليسير ملحق بالعدم.

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## کوم ډول قبال داعتبار وړده ؟اوپه کومه خرابي قباله بې اعتباره کیږي ؟

**سوال** : اما بعد موږ ته دامعلومات راکړی چه کوم قسم قبالی داعتبار وړ دی او دیوه حد په خرابی سره قباله خرابیږی کنه ؟

**داول سـوال جـواب** : شـرعی قبالـه اعتبـار لـری کـه دغـه ۳ شرطه پکښی موجـود وه (اول ) : دا چه مثنی به یی موجوده وی دقاضی په کتاب کښی ( دوهم ) : دقاضی کتاب به داسی ځای محفوظ وی چه دخلقو دچمونو او لاس وهلو څخه خلاص وی ( دریم ) : په قباله کی به خلاف دشریعت حکم نوی لکه حکم په ملکیت دغصب سوی شی.

ان الاعـلام والـسـنـد الـصـادرين مـن حـاكـم محكمـة يجـوز الحكـم والعمـل بمضمونها بـلابينـة اذا كـانـا عـاريين وسـالمين من شبهة التزويـر و التصنيع وموافقين لاصولها ( المجلة المـ١٨٢١ ) وماذكرنـاه عن الخانية محله ما اذا لم يكـن للـصـك وجـود فـي سـجل القـضـاة امـالو جـد فيـه فانـه يعمـل بـه (ردالمحتـار صـ٣٤٣ج ٣ ) لكـن اذا كانـت الاعلامـات والـسندات مطابقـة للاحكام الشرعية والافلايعمل به ( شرح المجلة الاتاسی صـ١١٧ج ٦ ) .

**د دوهم سوال جواب** : غلطی په یوه حد کی ده حدودو یو شبهه دتزویرده داسی قباله قابل داعتبار نده بلکه که مدعی په یوه حد کی غلطی وکی نو دعوه یی غیر مسموع ده او که شاهد غلطی وکی نو شهادة یی ردیږی خو هغه وقت که په دغه غلطی سره شاهد یا مدعی هم اقرار وکی چه دغه حد ما غلط بیان کی یوازی دمدعی علیه په قول اثبات دغلطی نه راځی.

لايعمل بالخط والختم وحدهما الااذا كان سالمامن شبهة التزويـر و التصنيع ( المجلة المـ١٧٣٦ ) ولكـن لـوذكر الحـد الرابـع وغلـط فيـه بطلـت الـدعوى والشهادة وهـو المفتى بـه ( شرح المجلة سليم بـاز صـ٩١٧ ) ولو غلط فى الرابع فالاصح الذى عليه الفتوى انها لاتقبل ولكن الغلط لايثبت الاباقرار المدعى ان الشاهد غلط امالو ادعاه المدعى عليه لايقبل ( شرح المجلة سليم بـاز صـ١٠٢ ) مكذافى ( شرح المجلة الاتاسى صـ٣٣ج ٥ ) وفيه وانما يثبت الغلط بـاقرار الشاهد انى غلطت فيه امالو ادعاه المدعى عليه لايسمع ولاتقبل بينـته الخ

بسم الله الرحمن الرحیم

## بخښلي ځمکه بیرته راګرزي کنه؟

## که څوک ئي په زور وخوري موهوب له دهغو کلونودحاصلوحق لري کنه؟

(**اول سوال**): محترما په ۱۳۲۹ سنه کی عبدالعزیز او احمد شاه چه دحاجی سیدحبیب زامن دی نو ماته یی ۲۵ منه تخم ریز ځمکه دخپلی حقابی سره راکړه په بخښنه هغه وو چه ځمکه ما باغ کړه مصرف می په وکړی نو تر ځلور کالو تصرف وروسته باغ بیرته دوی راخځه وګرځوی نو اوس تقریباً ۳ کاله کیږی چه حصول یی عبدالعزیز او احمدشاه خوری نو اوس دوی وایي چه دا باغ موږ تاته نه درکوو نه حصول راکوی او نه باغ ددی په باره که موږ ته شرعی معلومات راکړئ مهربانی؟

## مشترکه ځمکه چې خرڅه سي دشریک زامن دخریدار له زامنو خپله برخه غوښتلای سي کنه؟

(**دوهم سوال**): ۲۲ کاله کیږی چه یو سړی خپله مشترکه موروثی ځمکه خرڅه کړه نو په هغه ځمکه کی یوه ورور او یوې خور هم حق درلودی کوم وخت چه خور او وروره سوه نو هغه ورور هغه مشترکه ځمکه خرڅه کړه نو په هغه وخت کی دهغه ورور او خور اولادونه کوچنی وه اوس لوی سوی دی نو دعوه کوی چه موږ ځمکه نه خرڅوو او بیرته یی راګرځوو نو اوس دوی دا ځمکه بیرته راګرځولای سی کنه دځمکی خریدار مړ دی زامن ئی پاته دی؟

## دسرقلفي مشترکه کوټه چې خرڅه سي او واړه شریکان لوی سي بیرته ئې راګرزولای سي؟

(**دریم سوال**): تقریباً ۵ کاله کیږی چه یوه کوټه خرڅه سوه د دو ونفرو دسر قلفی په شراکت وه چه دیوه شریک ۳ وروڼه نور وه چه په هغه کی ۲ کوچنی او ۲ یی لوی وه نو اوس ۲ کوچنی دعوه کوی چه موږ خپله کوټه نه خرڅوو نو داکوټه هغه ۲ نفرو ۵ کاله ترمخه خرڅه کړه اوس دا ۲ نفره کوچنی ورونه دعوه کوی چه موږ یی نه خرڅه ؤو؟

**داول سوال جواب**: کله چه یو څوک څه ځمکه یو چاته هبه کی او هغه یی پس دهبی څه قبض کی او بیا پر هغه ځمکه بناء وکی یا باغ باندی جوړکی نو که دغه بناء یا باغ پر ټوله ځمکه جوړوو نو واهب لره داحق نسته چه رجوع وکړ، نه خپله هبة کی بلکه داد موهوب له شخصی

ملکیت ګرځی حصول او منافع او هر څه یی د ده دی او که دغه بناء یا باغ په یوه حصه کی دمځکی واقع سوی وو نو په هغه حصه کی رجوع نسی کولای او په هغه حصه کی چه فارغه ده رجوع کولای سی.

ویمنع الرجوع فیها حروف دمع خزقه یعنی الموانع السبعة الآتیة فالدال الزیادة المتصلة کبناء وغرس ان عد ازیادة فی کل الارضؔ والارجع ولوعدافی قطعة منها امتنع فیها فقط زیلعی (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۵۷۴ج ۴) هکذافی (البحرالرائق صـ۲۹۱ج ۷).

**ددوهم سوال جواب**: مشترکه مځکه چه څوک خرڅه کی نو پخپله حصه کی یی بیع صحیح ده او دشریک په حصه کی موقوف ده پر اجازه دشریک که شریک اجازه وکړه صحیح ده که نه نو نده صحیح خلاصه دا چه د دغه خوراو ورور اولادونه خپله حصه راګرځولای سی نه ټوله مځکه او که خریدار مړوی نو پرزامنو یی هم دعوه صحیح ده.

وقف بیع مال الغیر ای علی الاجازة (ردالمحتار صـ۱۵۲ج ۴) اذا باع الرجل مال الغیر عندنا یتوقف البیع علی اجازة المالک ویشترط لصحة الاجازة قیام العاقدین والمعقود علیه(الفتاوی الهندیة صـ۱۵۲ج ۳) هکذافی (الفقه الاسلامی صـ۳۷۱ج ۴ وصـ۳۷۲ج ۴) (سئل) فیما اذا کان لایتام حصة معلومة فی طاحونة ارثاعن ابیهم فباعها عمهم بدون وصایة علیهم ولا وجه شرعی من زید وتصرف بها زید..... حتی بلغ الایتام رشیدین ویریدون الدعوی بها علی المشتری...... فهل یسوغ لهم ذلک (الجواب): نعم (تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ۴۰ج ۲) وذلک لان الوارث قائم مقام المورث حقیقة وحکما (شرح المجلة سلیم باز صـ۹۹۴) هکذافی (شرح المجلة الاتاسی صـ۱۸۷ج ۵) و(تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ۴ج ۲).

یوه خبره دا ضروری ده چه د صغیرانو دمال بیع باطله ده دهغو په اجازه پوری اړه نلری نو که ددغه خوراو ورور اولادونه کوچنی وی او مځکه یی خرڅه سوه دابیع باطله ده ددوی حق به دوی ته تسلیمیږی که چیری دغه خرڅونکی وصی نه وو.

وولیه ابوه ثم وصیه بعد موته ثم وصی وصیه الخ (الدرالمختار صـ۲۰۳ج۲) والتصرف في المال ليس الالاب اوالجد او القاضي اواوصيائهم (الفقه الاسلامي صـ۷۴۹ج۷ () والدرالمنتقی صـ۴۵۴ج۲).

**ددریم سوال جواب** : دغه ورونه چه دوه کوچنی او دوه بالغ دی او ټول په دغه خرڅه سوی کوټه کی شریکان دی نو که چیری یو ورور داکوټه خرڅه کړی دغه بیع یوازی دده په حصه کی صحیح ده او دبالغ ورور په حصه کی موقوف ده دهغه پراجازه باندی او ده ۲ دوو صغیرانو په حصه کی بیع باطله ده ځکه چه شرعاً دغه بایع دصغیرانو په مال کی هیڅ حق نلری که چیری وصایة په مابین کی نوو حاصل دا چه دغه کوچنی ورونه حق لری چه خپله حصه راوګرځوی لکه ده دوهم سوال په عبارتونو کی چه تیره سوه.

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که پلار پر زوی مځکه قطعي خرڅه کړي اونور زامن ئې بیانه منې څه حکم دي؟

**سوال** : پر یو زوی چه پلار پخپل ژوند کی مځکه خرڅه کړی په بیع قطعی سره او وروسته پلار وفات وکړی او نور ورثه دعوه په دغه مځکی وکړی او ووایی زموږ پلار نه ده درباندی خرڅه کړی او دخریدار سره هم شاهدان دبیع نه وی او زامن ئې په خبر وی په دغه خرڅیدو لکن منکر سی نو ماته درویه دشریعت معلومات راکړئ چه وکوم جانب ته دورثې قسم کیږی چه پس له معلومات څخه موږ دهغه څه کار واخلو او مشکل مو حل سی؟

**جواب**: که چیری دغه رانیوونکی وارث ذوالید دمځکی وو نو دغه ورثة چه انکار کوی دپلار دخرڅولو څه دمځکی په حقیقة کی دوی مدعیون دی دترکة ده پلار او دغه وارث چه دعوی دشراء کوی په حقیقة کی مدعی علیه دی نو دمدعی څخه به داسی شاهدان غوښتنه کیږی چه هغه په دی طریقه شاهدی اداء کی چه دغه ملک ۱ددوی دپلار وو او ۲ بیا هغه وفات سو او ۳ دوی ته په میراث پاته سوی دی یعنی دغه دری سره اجزاء به په شاهدی کی ذکر کوی

او که داسی شاهدان نوه نو به ودغه وارث ته چه دی وایی زه رانیوونکی یم داسی قسم ورکول کیږی چه دا زما د پلار ملکیت نوو په وقت کی د وفات او که چیری دغه رانیوونکی ذوالیدنوو بلکه ذوالیدی دهغه نورو ورثۀ ؤو وه نو بیا دغه رانیوونکی وارث مدعی او هغه نور ورثۀ مدعی علیه بلل کیږی قسم به هغو ورثۀ وو ته کیږی.

البینة علی المدعی والیمین علی المنکر ( المجلة المـ۵۱ ) سئلت فیمن ادعی علی زید عیناً فی یده انها کانت ملک والدی مات وترکها میراثا لی ولفلان وذکر جملة الورثة ولم یبین حصته هل تسمع دعواه فالجواب نعم تسمع دعواه ولکن اذا آل الامر الی المطالبة بالتسلیم لابد من بیان حصه ( الفتاوی الکاملیة صـ۱۱۵ ) هکذافی ( جامع الفصولین صـ۵۹ج۱ ) اذا ادعی دارافی ید انسان انها له ورثها من ابیه وجاء بشهود شهد وا انها کانت لابیه الی ان مات وترکها میراثا لانعلم له وارثاغیره او شهد وا انها کانت لابیه یوم الموت فالقاضی یقبل هذه الشهاده ویقضی بالدار للمدعی وان لم یشهد وا انه ترکها میراثاله ( الفتاوی الهندیة صـ۴۹۱ج۳ ) وان عجز المدعی عن تقدیم البینة وطلب یمین خصمه المدعی علیه استحلفه القاضی ( الفقه الاسلامی صـ۵۱۵ج۶ ) سئلت فیمن ادعی عقارا ملکا مطلقا هل یساله القاضی عن صاحب الیدمن هو فالجواب نعم قال فی جامع الفصولین لابدمن معرفة القاضی کون العقارفی یدالمدعی علیه فیذکر المدعی انه بیده الیوم بغیر حق ( الفتاوی الکاملیة صـ۱۱۵ج ).

وفرقوابینه وبین غیره بان المدعی علیه فی غیر العقارینتصب خصما بذاته من غیر امرآخر وفی العقارلاینتصب خصما الاباعتباریده فمالم تثبت عند القاضی یده لایجعله خصما ( جامع الفصولین صـ۸۵ج۱ ) البینة حجة متعدیة والاقرارحجة قاصرة ( المجلة المـ۵۲ ) المدعی من لایجبر علی الخصومة والمدعی علیه من یجبر علیها وهذا احسن ماقیل فیهما ( شرح المجلة سلیم باز صـ۹۰۷ ) هکذافی ( الفقه الاسلامی صـ۵۱۴ج۶ ) و ( الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۴۶۶ج۴ )

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که يو ورور لوړي يوازي مزدوري پيل کړي بيا وروسته بل هم ورسره لګيا سي تقسيم به څنګه کوي؟ اوپه دې مال کي واده سوي خوندي هم حق لري که؟

**سوال** : يو سړی ۲ زامن ولري او دنيا نه لري او يو زوی کشر او بل مشر وي او دامشر غواړي په يو کار پيل وکړي اوبيا څو روپې وګټي په تعداد ۱۲۰۰ او بيا يو دکان کښېږدي وروسته له کاره پلار او کشر ورور هم په کار ورسره لګيا سي ۳-۲ کاله وروسته بيا دکان الله ﷻ ډير پر مخ بوزي زيات ګټه وکړي او داورونه ۲ واده خويندي هم ولري اوس غواړي تقسيم وکړي او ددکانداري د پيل نه ۱۵ کاله وروسته پلار هم وفات سوي دی او دنورمحمد د پاچهي وروسته دملک روپي هم راتلي او په دکان ګډيدی مراد دملک څه دپلار مملوکه مځکه ده چه اولادو ته په ميراث پاته سوي ده او تقسيم سوي نه ده ؟

**جواب** : دامسئله څو شکله لري.

۱:-اول دا چه دکور ټول مصارف او نفقة په دغه مشر زوی پوري اړه ولري او کشر زوی او پلار يوازي ديو کومکي په صفت ورسره وي نه ديو مستقل کار کوونکي په صفت په دې شکل کي ټوله پيسي ددغه مشر ورور دي او تقسيم ته ضرورت نسته او هغه دمځکي دحصول پيسي چه په دکان ګډې سوي دي هغه ټولي دې راجمعه سي او نورو ورثه وو ته دې ورکړلې سي يو دمشر زوی حصه دې پاته په دوکان کي سي.

۲:-دوهم داچه پلار او کشر ورور هم دپوره کار کوونکي په صفت کار کړی وي او دکور مصارف ددکان څخه کيږي په دې شکل کي دې دپلار د وفات په وخت کي دکان ته حساب وسي او ټول مال دې ۳ مساوي حصي سي ۲ حصي دې ورونه واخلي او دپلار حصه دې دميراث په ډول پر ټوله ورثه وو تقسيم سي او په تيرو کلو کي دمځکي دحصول دپيسو څخه دې دخويندو حق جدا سي او خوندو ته دې ورکړل سي.

۳:-دريم داچه پلار دمستقل کار کوونکي په صفت او کشر ورور ديو شاګرد په صفت کار کړی وي نو دپلار دمرګ په وقت کي چه څونه مال وو هغه دې نيمی سي نيمی به ميراث سي نيمی به دمشر ورور سي.

۴:- ځلورم دا چه دواړو ورونو د مستقل کارکوونکی په صفت کار کړی وی او پلار په مکلف ډول په کار کی برخه نه وی اخیستی نو هر څه مال چه وی هغه د دوو ورونو دی خو د مځکی په تیرو حصولو کی خوندی حتمی حق لری او د مشرورور هغه اوله سرمایه ۱۲۰۰کالداری به اول جلا کیږی هغه به مشرورور ځان ته اخلی وروسته به د تیربیان مطابق اجراءات کیږی.
سئل فی ابن کبیر ذی زوجة وعیال له کسب مستقل حصل بسببه اموالا ومات هل هی لوالده خاصة ام تقسم بین ورثته اجاب هی للابن تقسم بین ورثة علی فرائض الله تعالی حیث کان له کسب مستقل بنفسه واماقول علماء نا اب وابن یکتسبان فی صنعة واحدة ولم یکن لهما شئی ثم اجتمع لهما مال یکون کله للاب اذا کان الابن فی عیاله فهو مشروط کما یعلم من عباراتهم بشروط منها اتحاد الصنعة وعدم مال سابق لهما وکون الابن فی عیال ابیه..... فمدار الحکم علی ثبوت کونه معیناله فیه فاعلم ذلک...... وانلم یکونو ابهذا لوصف بل کان کل مستقلا بنفسه واشترکو افی الاعمال فهو بینَ الاربعة سویة بلا اشکال وانکان ابنه فقط هوالمعین والاخوة الثلاثة بانفسهم مستقلین فهو بینهم اثلاثا بیقین والحکم دائر مع علته باجماع اهل الدین الحاملین لحکمته (تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ۱۷ج۲ ) قال فی التنویر وشرحه وماحصله احدهما فله وما حصلاه معا فلهما نصفین ان لم یعلم مالکل وما حصله احدهما باعانة صاحبه فله ولصاحبه اجر مثله بالغاً مابلغ الخ (احسن الفتاوی صـ۳۹۴ج۶).
**تنبیه**: ددی عبارتو څه دا هم معلومه سوه که چیری کشر وروریا پلار دیو کومکی یا شاگرد یا معاون په صفت کار کړی وی نو هر څو میاشتی یا کلونه چه کار کړی دی د هغه وخت مناسبه تنخواه باید ورکول سی.
سئل فی اخوین سعیهما واحد وعائلتهما واحدة حصلابسعیهما اموالا من مواش وغیرها والان یرید احدهما مفارقة آلاخر ومقاسمة المال مناصفة ویابی الاخر فهل والحالة هذه جمیعما حصلاه بسعیهما وکسبهما مشترک بینهما تجب قسمته بینهما مناصفة ام لا اجاب نعم ماحصلاه بکسبهما مشترک بینهما لایجوزان یختص به احدهما دون الاخر (الفتاوی الخیریة صـ۱۱۲ج۱ طبع کراچی ارام باغ) والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که په کوټه کي کالداري حواله کړي اوپه کندهارکي افغانۍ ورته ومني وخت تیر سي افغانۍ ټیټه سي کالداري به ورکوي که افغانۍ؟

**سوال** : محترما : ما حاجی عطامحمد ویو سړی یا یو نفر ته ۲۰۰۰۰۰ لکه کالداری ورکړی دپاره دحوالی چه زما او دهغه سړی کورونه په کویټه کی وه ما کالداری ورکړی چه دی باید په قندهار کی ماته افغانۍ راکړی او زموږ ددغه تبادلی په وقت کی کالداری په ۱۱۵ افغانی تبادله کیدله کله چه ما ودغه سړی ته کالداری ورکړی نونوموړی سړی کالداری تسلیم کړی خو په همدغه ورځو کی چه زه ورغلم ده راته وویل زه مفلسه سوم نه کالداری لرم نه افغانۍ خو ځوکاله تیر شوه او په دغه جریان کی چه به هر وقت زه ورغلم ده به دافلاس عذر وایه او نور مهلت به یی وغوښتی او په دغه جریان کی ده ونورو پورورو ته یو اندازه پیسی هم ورکړی وی او هم ئی ورکولی لکن ما ته یی یوه روپۍ هم نه ده راکړی خو په دی وخت کی ما هغه نفر ته وویل چه ته ماته یوه اندازه پیسی راکړه چه زه ګټه په وکړم او زه او ته به سره شریکان یو ده وماته ۳ لکه کالداری راکړی او سره له دی چه مابه دپور غوښتنه څنی وکړه ده به وویل چه زه یی نه لرم ما هغه پیسی واخستلی او په خپل احتیاج می ولګولی خو ۲ میاشتې پس هغه سړی زما څخه پیسی وغوښتلی ما ورته وویل چه زه ستا متباقی پیسی درکوم او خپل حق څنی ګرځوم اوس هغه سړی وایي چه اول خو مامفلس خط جوړ کړیدی دهغه مفلس خط له رویه زه هر سړی ته یوه اندازه پیسی ورکوم او دوهم هغه سړی وایی چه زه تاته افغانی درکوم نه کالداری زه وایم په هغه وقت کی چه ما تاته کالداری درکولی یو ه کالداره په ۱۱۵ افغانۍ وه اوس ۷۵۰ افغانۍ تبادله کیږی نو محترم ما ته فتوی راکړئ چه زما کالداری حق کیږی که افغانۍ او مفلس خط اعتبار لری کنه ؟

**جواب** : په دی استفتاء کی ۳ خبري دی.

**( اوله خبره داده )** : کله چه دغه مستفتی ددغه نفر سره دکالدارو او افغانیو تبادله وکړه او د کالداری ورتسلیم کړی نو دهغه پرذمه افغانی قرض پاته سوی اوس چه افغانی ډیره کم قیمته سوی ده نو باید دهغه بیعی دورځی افغانۍ په یو بله سکه قیمت کړل لکه کالداری ریال یا داسی نور او دهغې سکې په اندازه خپل حق ځان ته تسلیم کړی.

(**دوهمه خبره داده**): کله چه دغه نفر تاته پیسی په معامله درکړی او تاخپل حق ځنی وګرځوی او دی دعوی کوی چه مامفلس خط جوړ کړی تولو پورورړوته زه خپله حصه ورکوم نو اوس به وګورو چه ترمخه چه هغه نورو پوروړوته پیسی ورکړی دی او تاته یی نه دی درکړی که دغه ستا موجوده اخستل سوی حق دهغه حصی سره سم وو چه باید پخوائی تاته درکړی وای نو دده دعوی بیځایه ده او که موجوده حق دهغه حصی څخه زیات وو نو باید دهغه حصی مقدار وګرځوی او نوري پیسی قاضی ته تسلیم کړی یا هغه په خبر کړی چه دنورو پوروړو په مابین کی یی هم تقسیم کړی.

(**دریمه خبر داده**): مفلس خط یعنی داچه قاضی دیو چا په افلاس حکم وکړی شرعاً جواز لري او دهغه وروسته به پیسی ودائنینوته ورتقسیمیږی او هر یوه ته به خپله حصه ورکول کیږی.

ولو استقرضْ الفلوس اوالعدالی فکسدت...... قال ابویوسف رحمه الله تعالٰی علیه قیمتها یوم القبض...... وقوله اقرب الی الصواب فی زماننا (الفتاوی الهندیة صـ۲۰۴ج۳) وفی البزازیة عن المنتقی غلت الفلوس او رخصت فعند الامام الاول والثانی اولالیس علیه غیرها وقال الثانی ثانیا علیه قیمتها من الدراهم یوم البیع والقبض وعلیه الفتوی...... فحیث صرح بان الفتوی علیه فی کثیر من المعتبرات فیجب ان یعول علیه افتاء وقضاء (ردالمحتار صـ۲۶ج۴) هکذافی (مجموعة رسائل ابن عابدین صـ۶۰ج۲) رجل له علی رجل دراهم فظفربدراهم مدیونه کان له ان یاخذ دراهم المدیون اذا لم تکن دراهم المدیون اجود اولم تکن مؤجلة (الفتاوی الهندیة صـ۲۰۳ج۳) ویشترط لصحة الحجر (ای علی المدیون) عندهما القضاء بالافلاس ثم الحجر بناء علیه (سلیم باز صـ۵۵۵) وفی الخانیة لو باع المحجور شیئامن عقاره او عروضه من الغریم الذی حجر لاجله لیصیر الثمن قصاصابدینه جازبیعه اذا کان الغریم واحدا فانکان اثنین وکان قد حجر بدینهما جازبیعه من احدهما لوبمثل القیمة کمالو باع من اجنبی ولکن لایصیر کل الثمن قصاصا بدین هذا المشتری لان فیه ایثار بعض الغرماء علی البعض ولکن الثمن یکون بین الغرماء بالحصص ولو حجر القاضی بدین علی رجل لقوم لهم دیون مختلفة فقضی المحجوردین بعضهم شارکهم الباقون فیما قبضو افیسلم لهم حصتهم وید

فعون مازاد علی حصتهم الی غیرهم من الغرماء آه (سلیم باز صـ۵۵۶ هکذا فی الفتاوی الهندیة صـ۶۳ج۵).

**تنبیه** : داتول بیان په هغه صورت کی دی چه قاضی دیو مدیون پر تصرفاتو حجر یعنی ممانعت راوستلی وی دهغه دافلاس په صورت کی او دقاضی په حکم دده شخصی مالونه خرخیږی او پیسی ئی پر پوروړو تقسیمیږی.

والله تعالی ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحیم

## که یو دوکان چوکیدار ولري بیاهم غلا وسي ضامن څوک دي؟

**سوال** : عزت منده څنګه چه بسم الله نامی او زوی ئی زما او دبازار ددکانو رسمی چوکیداران وه ددوی په اقرار سره بیا زما دواخانه چه دبرو دروازی په چوک کی موقعیت لری دشپی لخوا غلو ووهله او سهار موږ همدغه چوکیدار په غلاکولو دپیسو ګرفتاره کړی ولی چه موثق قرینی پر نوموړی باندی موجودی وی بیا زما دعرض په نتیجه کی په مرکزی ابتدائیه محکمه کی بسم الله نامی اوزوی ئی منکر سول او بیائی قسم واخیست نو څنګه چه نوموړی چوکیدار زموږ مزدور وو او په دغه شرعی مسئله کی نوموړی وماته مسئول دی؟

ثم ان عدم ضمان الاجیر الخاصّ انماهو اذا کان مستاجر العمل غیر الحفظ فلوکان مستاجرا لمجرد حفظ الودیعه التی فی یده یکون ضامنا لها اذا هلکت بسبب یمکن التحرز عنه کالسرقة وصرح به فی الدروغیره لان الحفظ حینئذ مستحق علیه (اتاسی صـ۷۱۸ج۲).

اوس زه ستاسو محترم څخه هیله کوم چه تاسو جناب ماته دافتوی راکړئ چه ایازه حق پر دغه چوکیدار لرم کنه او دی زما دغلاسوی مال ضامن دی او کنه؟

(ملا عبدالسلام اخند)

**جواب**: محترم مستفتي صاحب ته باید وویل سي کوم عبارت داتاسي چه تاسو په استفتاء کی ذکر کړي دی هغه ستاسو دموضوع سره پوره مطابقة نه لري ځکه چه په دي پیښه کی تاسو خپله دغه چوکیدار په سرقه متهم کړیدی او دا تاسی عبارت دهغه موضوع په هکله دی چه سارق یو مغایر او یو دریم شخص وی نه چوکیدار خو ددواړو موضوع ګانو په هکله باید داسی تفصیل وکړو.

( **اول** ) : کله چه یوځوک پر یو چادسرقي دعوی وکړی نو دنوړو دعواګانو په شان باید شاهدان راو غوښتل سی یا مدعی علیه ته قسم ورکړل سی او که چیری بعضی قرائن دهغه پر سرقي موجودی سی او شاهدان نه وی نو حاکم او قاضي دی دخپلی رأيي او صوابدید مطابق دشریعت سره سم متهم ته حبس ورکړی او نور اجراءات دی وکړی خو پوره سعی او کوشش دی وسی چه نه دسارق په باب کی دشریعت دحدود وڅه یوادنی تجاوز وسی او نه داصلی مالک دغلاسوی مالونو په هکله دمسامحی څه کار واخستا سی( ومن یتعد حدود الله فاولئك هم الظالمون )

( **دوهم** ) که چیری دیو دکان څه غلا وسی او هغه دکان چوکیدار ولری او سارق بل څوک وی پرته له چوکیداره نو که چیری دغه غلا دچوکیدار دغفلة او ترک دحفظ په وجه سوی وی نو چوکیدار دمال ضامن دی او که چیری چوکیدار خپله کامله سعیه کړی وی او بیاهم غلا سوی وی نو چوکیدار ضامن نه دی نو که اصلی مالک دچوکیدار غفلة او ترک دحفظ ثابت نه کړی او چوکیدار ووایي چه زما دچوکیداری په مدة کی غلانه ده سوی بلکه وروسته سوی ده نو دچوکیدار قول معتبر دی.

قال الفقیه ابوجعفر والفقیه ابوبکر الحارس اجیر خاص الایری انه لواراد ان یشغل نفسه فی موضع آخر لم یکن له ذلک (مجمع الضمانات ص ۳۴) اتفق ائمة المذاهب وهم الحنفیة هکذافی (ردالمحتار ص ۴۴ ج ۵ ط بیروت)

والمالکیة والشافعیة والحنابلة علی انه( ای الاجیر الخاصْ )لایکون ضامنا العین التی تسلم الیه للعمل فیها لان یده یدامانة ....... مالم یحصل منه تعداو تقصیر فی حفظه سواء تلف الشئی فی یده اواثناء عمله ( الفقه الاسلامی صـ۷۶۸ج ۴) هکذافی الدرالمختار وفیه - وکذالاضمان علی حارس السوق وحافظ الخان ( الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۴۴ج ۵ بیروت ) الاجیر الخاصْ امینْ حتی انه لایضمن المال الذی تلف فی یده بغیر صنعه( المجلة المـ۶۱۰ ) لوتلف المستاجر فیه بتعدی الاجیر وتقصیره یضمن ( المجلة المـ۶۰۷ ) ولافرق فیما اذا کان الاجیر خاصا او مشترکا ( سلیم باز صـ۳۲۶ ) تقصیر الاجیر هو عدم اعتنائه فی محافظة المستاجر فیه بلاعذر ( المجلة المـ۶۰۹ ) المدعی علیه بالسرقة اذا انکر النرقة حکی عن الفقیه ابی بکر الاعمش ان الامام یعمل فیه باکبررأیه فانکان اکبر رایه انه سارق وان المال عنده عذبه ویجورله ذلک ....... ادعی علی آخر سرقة کان علی المدعی البینة و علی المدعی علیه الیمین والضرب خلاف الشرع ولایفتی به لان فتوی المفتی یجب ان تطابق الشرع ( هندیة صـ۱۷۳ج ۲ ) الامین یصدق بیمینه فی براءة ذمته کما اذا ادعی المودع الودیعة وقال الودیع انارددتها الیک فالقول له بیمینه ( المجلة المـ۱۷۷۴ ) وکذا لو قال الودیع هلکت فی یدی بدون تعد ( حامدیه ) ( سلیم باز صـ۱۱۴۴ ) الاصل براءة الذمة ( المجلة المـ۲۲ ) الاصل ان تکون ذمة کل شخص بریئة ای غیر مشغولة بحق آخر ....... فکل شخص یدعی خلاف هذا الاصل یطلب منه ان یبرهن علیٰ ذلک لانه حسب المادة ۷۷ تطلب البینة من مدعی خلاف الظاهر و خلاف الاصل ( دررالحکام شرح مجلة الاحکام صـ۲۵ج ۱) .

واللہ تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دلوټمارانو په سيمه کي که امن راسي تجار دلوټ شويو مالونو طلب کولای سي؟ که ئې کولای سي مال که قيمت؟ که قيمت نو دځه وخت قيمت؟ اوهغه صغير چې دپيښي په وخت صغير او ددعوي په وخت کبير وي شاهدي څنګه ده؟

**سوال:** محترمه دا چه زما کسب تجارت دی ځکه نو ددوستم په دوره کی دفارياب ولايت مربوط داند خوی او دولت آباد په ولسواليو کی يو تعداد تجارتی مالونه چه عبارت دی د ۳ دانو زراعتی ترکتوران ۳۰۰ کارتنه سګريټ ۴۰۰ جوړی جرمنی بوټونه ۵۰ جوړی مزاری کمبلی ۳۰ جوړی ترکمنی کراستی ۲۴۰ لکه نقدی افغانی ددوستم او پهلوان قومندانانو په زور راځخه چور کړي اوس چه الحمد الله په هغه منطقه کی دطالبانو دبرکته امنيت تامين او شريعت برحال دی غوارم چه په نوموړو ولسواليو کی دچپاولګرو څخه دخپل حق مطالبه وکړم او حال دا چه غله ټول ه دنامه او رنګه پيژنم.

(**اول سوال**): ايا دثبوت په صورت کی زه دخپلو مالو مستحق يم او که شريعت قيمت راته ټاکلی؟

(**دوهم سوال**): که شريعت قيمت راته ټاکلی وی نو دا ولی ورځی دمالو دخريداری قيمت معتبر دی او که دنن ورځی نرخ صحت لری؟

(**دريم سوال**): که مالونه په لاس راسی او زاړه سوی وی لکه تراکتوران چه غلو استعمال کړی نو دشريعت دنګاه همدغه زاړه مالونه وماته دمنلو وړدی او که دجديد مالو طلب کولای سم؟

(**څلورم سوال**): يو نفر چه دواقعی په وقت کی صغير وی اما اصلی واقعه ښه ورپياد وی اوس چه هغه نفر کبير سوی وی نو په محکمه عدليه کی د دارنګه شخص شاهدی دهغی واقعی په باره کی چه ده دصغارت په وقت کی ليدلی وه منل کيږی که څنګه لطفاً دلوړو څلورو مسئلو په باره کی شرعاً معلومات راکړی چه په آينده کی ستاسی دهدايت مطابق رفتار وکړم؟

(حاجی امان الله)

**داول سوال جواب** . که ستا دمدعی علیه غصب ثابت سی نو ته دخپلو مالو مستحق یی ستا مالونه به تاته درکوی که ورسره موجود وه او که ځنی هلاک سوی وه نو که په بازار کی بعینه هغسی شیان پیدا کیده هغه به رانیسی او تاته به یی درکوی او که نه پیدا کیده نو دهغه هلاک سوی مالو قیمت به تاته درکوی.

ویجب علی الغاصب ردعینه علی المالک وان عجز عن ردعینه بهلاکه فی یده بفعله او بغیر فعله فعلیه مثله ان کان مثلیا کالمکیل والموزون فان لم یقدر علی مثله بالانقطاع عن ایدی الناس فعلیه قیمته ( الفتاوی الهندیة صـ۱۱۹ج ۵ ) هکذافی ( الفقه الاسلامی صـ۷۱۸ج۵ ) و ( بدائع الصنائع صـ۱۴۸ج ۷ ) و ( شرح المجلة سلیم باز صـ۴۸۸ ) والمال المثلی هو مایو جد له مثل فی الاسواق بلاتفاوت یعتدبه . . . . . والاموال المثلیة اربعة هی المکیلات والموزونات والعددیات المتقاربة وبعض انواع الذرعیات . . . . . . والقیمی هو مالیس له مثل فی الاسواق او یو جد لکن مع التفاوت المعتد به ( الفقه الاسلامی صـ۷۲۰ج ۵ ) هکذافی ( تبیین الحقائق صـ۲۲۳ج ۵ ) .

**ددوهم سوال جواب** : که پرغاصب باندی قیمت دمغصوب لازم سو نو قیمت به دورځی دغصب ورکوی نه دنن ورځی قیمت او نه دخریداری دورځی قیمت اعتبار لری.

وان غصب مالامثل له فعلیه قیمته یوم الغصب بالاجماع کذافی السراج الوهاج ( الفتاوی الهندیة صـ۱۱۹ج ۵ ) فقال الحنفیة علی الختار عندهم والمالکیة تقدرقیمة المغصوب یوم الغصب ( الفقه الاسلامی صـ۷۲۱ج ۵ ) وهو اعدل الاقول کما قال المصنف وهو الختار علی ما قال صاحب النهایة ( ردالمحتار صـ۱۲۸ج ۵ ) او که یی اول واری مثل پیداکیدی وروسته قطع سو نو بعض کسان قیمت دورځی دغصب معتبروی او بعضی کسان دهغه ورځی قیمت معتبر وی چه په بازار کی نیستی سوی وی وان انقطع المثل فقیمته یوم الخصومة ای وقت القضاء وعند ابی یوسف یوم الغصب وعند محمد یوم الانقطاع ورجحاقهستانی (الدرالختار) وعند ابی یو سف یوم الغصب وهو اعدل الاقوال کما قال المصنف وهو الختار علی ماقال صاحب النهایة وعند محمد یوم الانقطاع وعلیه الفتوی کمافی ذخیرة الفتاوی وبه افتی کثیر من المشایخ ( ردالمحتار صـ۱۲۸ج ۵ ) قال السید ابو السعود قال الالقانی ونحن ناخذ

بقول محمد آه ای لان لفظ وعليه الفتوى او كد الفاظ الترجيح لكن قال فی مجمع الانهر وفيه كلام لان يوم الانقطاع لايضبط (شرح المجلة الاتاسی صـ۴۱۶ج ۳).

نو په دې دوه قوله کې قطعي ترجيح یوه ته نه ده ورکول سوې فلهذا دواړه دعملي کېدو وړ دي یعني په اول قدم کې باید دامام محمد صاحب قول عملي سي که هغه ممکن نوي نو دامام یوسف صاحب قول دې عملي سي.

**دریم سوال جواب** : که غاصب ومغصوب ته لږ تاوان رسولی وي نو عین مغصوب به ردوی سره دضمانه داندازی دنقصان (پر دې طریقه چه هغه مال به مخ کې تر نقص قیمت کې او بیا به یې پس دنقص څه قیمت کړي هر څونه تفاوت چه وو هغه اندازه یې دضمان ده) او که یې ډیر تاوان ور روسولی وو نو اصلي مالک اختیار لري که خپل مال غواړي سره دضمانه دهغه نقصان چه وررسیدلی دی او که قیمة غواړي دټوله مال او مال غاصب ته پرېږدي او دلږ او ډیر اندازه پر ډی معلومیږي که دغه دنقصان اندازه څلورمه حصه دټول مال دقیمت جوړیدل نو ډیر دی او کنه جوړیدل نو لږ دی.

لكن اذا طرء على قيمة المغصوب نقصان بسبب استعمال الغاصب يلزم الضمان ..... فانكان النقصان يسيراً يعني غير بالغ ربع القيمة اى قيمة المغصوب ضمن الغاصب نقصان قيمته وانكان النقصان فاحشا اى مساويا لربع قيمة او اكثر فالمغصوب منه بالخياران شاء ضمنه نقصان القيمة وان شاء تركه للغاصب واخذ منه كل قيمته (المجلة المـ۹۰۰) هكذافي (الفقه الاسلامی صـ۷۲۹ج ۵) واذا وجب ضمان النقصان قومت العين صحيحة يوم غصبها ثم تقوم ناقصة فيغرم الغاصب الفرق بينهما (الفقه الاسلامی صـ۷۲۹ج ۵).

**دڅلورم سوال جواب** : دواقعي په وقت کې دشاهد عقل شرط دی نه بلوغ فلهذا دعاقل کوچني شاهدي صحیح ده.

ولاتشترط للتحمل البلوغ والحرية والاسلام والعدالة حتى لوكان وقت التحمل صبيا عاقلا او عبدا.... تقبل شهادتهم كذافي البحرالرائق (الفتاوى الهندية صـ۴۵۰ج ۳) هكذافي (الفقه الاسلامی صـ۵۵۹ج ۶) و(بدائع الصنائع صـ۲۶۶ج ۶)

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دمشترکي مځکې دخرڅلاو په اړه څو مهمې مسئلې

**سـوال** : محترم ازه عبدالمبين دحاجی محمد عمر زوی د ۳ مسئلو په باب پوښتنی لرم ستاسی له مقامه په دغه باب دشرعی فتویٰ هيله کوم هيله ده چی دشرعی مسائلو په استناد زما پوښتنو ته جواب راکړئ.

**د لومړۍ مسئلې صورت** : څوقطعې مځکې او باغونه چی ديوی ورثی تر منځ چی تعداد ئې ۳۰ نفرو ته رسيږی شريک او مشاع دی دورثی ديوه تن له خوا دنورو په غياب کی او بيله دی چه دهغوی وکالت ولری په مشتری باندی په بيع قطعی ټوله خرڅيږی ، خو مشتری دټا ديه ثمن دپاره دبائع له خوا دټولی ورثی دوکالت جوړول شرط ايږدی خو کله چه نوره ورثه خبريږی بائع مذکور ته وکالت نه ورکوی او وائی چه موږ خپل حصص نه خرڅوؤ او بائع مذکور هم پښيمانه کيږی چه زه نو هم خپله حصه نه خرڅوم

( **اول سوال** ): نو آيا داټوله بيع فاسده ده او که دابيع يوازی دبائع پر حصص ثبوت پيدا کوی ؟

( **دوهم سوال** ): او که دا بيع يوازی دبائع پر سهم صحت پيدا کړی آيا مشتری مذکور قبل القسمت دنوموړی مشاع جايداد خپل رانيول سوی سهم قبض کولای سی او که دنورې ورثی له خوا دمځکی دتقسيم تر وخت پوری يوازی دخپل رانيول سوی سهم په اندازه دمځکی دحصول دوړلو حق لری ؟

**ددوهمې مسئلې صورت** : احمد او مجيد ديوی ورثی ټوله مشترک جايداد دورثی ديوه تن محمود څخه په شراکت بالمناصفه دشهودو په حضور کی په بيع قطعی رانيسی او تر ايجاب او قبول وروسته احمد يو دمشتريانو څخه په دغه مجلس کی دخپلی خوا دثمن يوه برخه محمد بائع مذکور ته تأديه کوی خو څنګه چی محمود مذکور دنوری ورثی وکالت نلری او نوره ورثه هم غائبه ده دټولو په موافقه دمحمود له خوا دټولی ورثی دوکالت تر جوړولو پوری دباقی ثمن تأديه معطل کيږی خو شرط نه وی دا معطل کيدل څه موده وروسته په داسی حال کی چه دواړه مشتريان دمحمود بائع له خوا دنوری ورثی دوکالت جوړولو ته منتظر دی مجيد

یو د مشتریانو څخه چې د بیع د عقد په مجلس کې ئې بائع مذکور ته هیڅ مبلغ نه ؤ ورکړی
دعوه کوی چې ما مجید بیله د خپل شریک احمد له حضور څخه محمود بائع مذکور ته خپل
حصه ثمن ورکړی او د هغه څخه می رسید اخیستی چې د غه ثمن ما محمود په نوموړی
مشترکه جایداد کې د خپل سهم د ثمن په ډول قبول کړی دی. البته مجید دا نه وائی چه ما په
جلاعقد د محمود حصه رانیولی ده بلکې د دغه ثمن ورکول د لمړنی بیع جزء بولی.
(**دریم سوال**): په هغه صورت کې چه د مشترکې مځکې بیع قطعي یوازی د محمود بائع پر
سهم صحت پیدا کړی خو محمود بائع مذکور د مجید مشتری څخه د بعدی ثمن پر اخیستلو
منکر وی قسم مجید مشتری ته کیږی او که محمود بائع مذکور ته ؟
(**خلورم سوال**): او که مجید خپله ادعا چې بیله د خپل شریک د حضور څخه یې محمود
بائع مذکور ته ثمن ورکړی وی پر محمود مذکور ثابته کړی آیا احمد چې د بیع د انعقاد په
لمړنی مجلس کې ئې لمړی ځل محمود ته د ثمن یوه برخه ورکړی وه د محمود پر خرڅ سوی
سهم کې شریک وی او که د غه سهم ټوله یوازی د مجید چې د وهمه پلائی مبلغ ورکړی دی
کیږی ؟ انشاالله تعالی په دی باب خپله شرعي فتوی صادره کړی یعنی خلص آیا محمود بائع
د لمړی بیع تر مجلس وروسته د ومره صلاحیت لری چې بیا د دوهم مشتری بیله حضوره خپل
حصص و یوه مشتری ته اختصاص ورکړی په داسی حال کې چې د اصلی بیع په مجلس کې ئې
بالمناصفه خرڅه کړی وی د ټولی ورثې مځکه ؟
(**پنځم سوال**): که د پورته مشاع مځکې بائع او ورثه هیڅ یو حاضر نه وی خو یو د مشتریانو
څخه طلب د خپلی حصی وکړی بائع او نوره غائبه ورثه دا حق لری چې خبر ورکول سی او که
قاضی کولای سی بیله دی چې هغوی ته خبر ورکړی چې حاضر سی غیاباً مځکه تقسیم او
مشتریانو ته د هغوی حصص تسلیم کړی ؟
(عبدالمبین ولد حاجی محمد عمر قندهار ناحیه ۲)
**د اول سوال جواب**: دا بیع یوازی د بائع پر حصص ثبوت پیدا کوی او د هغه نورو ورثه
رو څخه چه هر چا اجازه وکړه د هغه په حصه کې ثبوت پیدا کوی او هغه چا چه اجازه نه وکړه
د هغه په حصه کې ثبوت نه پیدا کوی ؟

وقـف بيـع مـال الغيـر ای علـی الاجـازة (ردالمحتـار صــ۱۵۲ج ۴) هكـذافی (الفتـاوی الهنديـة صــ۱۵۲ج ۳) و (الفقـه الاسـلامی صــ۳۷۱ج ۴ و صــ۳۷۲ج۴) و (احسن الفتاوی صـ۵۰۱ج ۶) الشريک مخير ان شاء باع حصته من شريكه وان شاء باعها من اجنبی بدون اذن شريكه (المجلة المـ۱۰۸۸ والمـ۲۱۵).

خو که په شریکانو کی صغیران وه او دغه خرڅوونکی ئی وصی نوو نو دهغو په حق کی بیع باطله ده ځکه چه دهغو دمال متصرف یا پلار یا نیکه یا قاضی دی یا دهغوی او صیاء دی. والتصرف فی المال ليس الا للاب او الجد او القاضی او او صيائهم (هكـذافی الفقه الاسلامی صـ۷۴۹ج ۷ والدرالمنتقی صـ۴۵۴ج ۲) وولیه ابوه ثم وصيه بعـد موته ثم وصی وصيه الخ (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۲۰۳ج ۲).

سئل فيما اذا كان لجماعة زيت مشترک بينهم بدون الخلط و الاختلاط فباع بعضهم حصته و حصة شركائه من اجنبی بدون اذنهم ولا اجازتهم ولا وجه شرعی فهل يكون البيع صحيحا فی حصته دون حصة شركائه. الجواب: حيث كان مشتركا بينهم وملكوه بطريق الاشتراک لا الخلط و الاختلاط يكون البيع لاجنبی فی حصة البائع صحيحا دون حصة شركائه (تنقيح الفتاوی الحامدية صـ۲۴۷ج۱).

**ددوهم سوال جواب**: اسهام دورثة وو خو په قسمت سره معلومیږی او متعین کیږی نو قبل القسمة ځنګه مشتری کولای سی چه خپل رانیول سوی سهم قبض کړی او همدارنګه دغه مشتری حق دحصول اخستلو هم نلری دهغه نورو شرکاء وځخه تر وقته دقسمة که هغو دغه مځکه دده بی اذنه کرلی وی او که یی په دغه کرلو سره مځکی ته نقصان رسولی وو نو بیا به مشتری ته دهغه نقصان ضمان ورکوی البته دهغوی دپاره هم دمشتری دحصی مقدار حصول ښه ندی بهتر داده چه خیرات یی کی.

اذا زرع احـد الشركاء الاراضی المشتركة فليس للاخران يطلب حصته من الحاصلات علی عادة البلدة مثل الثلث والربع (المجلة المـ۱۰۷۶) سئل فی رجل زرع حنطة فی ارض جارية فی ملک زيد بلااذنه ولاوجه شرعی ونبت الزرع ولم يدرک ويريد زيد تكليف الرجل قلع زرعه المزبور فهل له ذلک الجواب حيث لم يدرک الزرع فلمالک الارض ان يامر الغاصب بقلعه ولوأبی فللمالک قلعه فان لم يحضر المالک حتی ادرک الزرع فهو للغاصب وللمالک تضمينه نقصان ارضه

ان نقصت الارض بزراعته كمافي جامع الفصولين (تنقيح الفتاوى الحامدية صـ۱۵۶ج ۱) ولكن رأى ابى حنيفة ومحمد لايحل للغاصب الانتفاع بالمغصوب. .... واذا حصل فيه فضل (نماء وزيادة) يتصدق بالفضل استحسانا (الفقه الاسلامى صـ۷۲۴ج ۵).

**دريم سوال جواب**: څرنگه چه په دې صورت کې که مجيد دعوى دتأديه دثمن پرېږدي بل څوک يې نسى مجبوره کولاى نو دي مدعى دي او محمود مدعى عليه دي مجيد به شاهدان راولى که نوه محمود ته به قسم ورکول کيږي ځکه چه البينة على المدعى واليمين على من انكر (المجلة المـ۷۶). فقد عرفهما فى التنوير والغرر والملتقى بان المدعى من لا يجبر على الخصومة والمدعى عليه من يجبر عليها وهذا احسن ماقيل فيهما (شرح المجلة سليم بازصـ۹۰۷).

**دځلورم سوال جواب**: بائع چه محمود دي داحق نلرى داولى بيع وروسته چه يوازى ديوه مشتري سره نوى عقد وکى او پيسى څنى تسليم کى بلکه دغه مبيعه ددواړو مشتريانو په ملکية کى داخله سوه نو دبائع نوى تصرف او خرڅول حرام دي.

القبض ليس بشرط فى البيع الاان العقدمتى تم كان على المشترى ان يسلم الثمن اولا (المجلة المـ۲۱۲) اى لان البائع انما يتعين حقه فى الثمن بعد قبضه لان الاثمان لاتتعين بخلاف المشترى فان حقه قد تعين فى المبيع بمجرد العقد لدخوله فى ملكه به ابوالسعود (شرح المجلة الاتاسى صـ۱۹۱ج ۲).

**دپنځم سوال جواب**: که چيرى يو مشترى يا دواړه دقاضى څه طلب دقسمة وکى نو قاضى به سوئ له بائع څه بل وارث راغواړى نو کله چه دوى وفاة دمورث او تعداد دورثة وو په اثبات ورسوى قاضى به ددوى په مابين کى تقسيم وکى او دهغه غائب ورثةؤو دجانب څه به وکيل ودروى چه دهغوى حصه قبض کړى حتماً دټولو ورثةؤو حاضريده نه غواړى خو پدى شرط چه ذواليدى به دغائبو ورثةؤو په لاس کى نه وى او که ذواليدى دغائبو ورثهؤو وه نو دهغه ذواليد حضورشرط دى.

وفى الهندية فى المنتقى عن ابى يوسف رحمه الله تعالى اذا اشترى رجل من احد الورثة نصيبه ثم حضرا يعنى البائع والمشترى وطلبا القسمة فالقاضى لايقسم بينهما حتى يحضر وارث آخر غير البائع (شرح المجلة الاتاسى صـ۷۴ج ۴

هکذافی ردالمحتار صـ۱۸۲ج ۵ ) والتقیید بـالوارثین فی قول الهدایة فی عبارته السـابقة واذا حـضر وارثـان للاحتراز عمـا اذا حـضر وارث واحد فانـه لایقسم (شرح المجلة الاتاسی صـ۷۳ج ۴ ) فان ادعوا انه میراث عن زید لایقسم حتی یبر هنوا علی موته وعدد ورثته ( الدرالمختار بهـامش ردالمحتـار صـ۱۸۱ج ۵ هکذافی شرح المجلة الاتاسی صـ۷۱ج ۴ ) ولو برهنـا علی الموت وعدد الورثة وهو معهما وفیهم صغیرا وغائب قسم بینهم ونصب قـابض لهمـا ( متن الـدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۱۸۲ج ۵ ) وانکـان العقـار فی یـد الـوارث الغـائـب اوشئ منـه لم یقسم باقرار الحضور وکذا اذا کـان فی یـد مودعه وکـذا الـخ ........ ای لئلایلزم القضاء علیها باخراج شئ ممافی اید یهما بلاخصم حاضر عنهمـا ولافـرق فی هـذا بـین اقامة البینـة ای علی الارث وعـدمها هـو الـصحیح کمافی الهدایة والتبیین والهنـدیة (شرح المجلة الاتاسی صـ۷۳ج ۴ ) .

**نوټ**: مذکور جوابونه ټول پردی بناء دی چه ددغه یوه وارث حصه مشتری تـه معلومه وی او که وه مشتری ته معلومه نوه نو دغه بیع فاسده ده بهتره داده چه فسخ یی کی او فسخ یی هم ددواړو پررضاء نده موقوفه بلکه هر یو کولای سی چه فسخ یی کی او هغـه بل جانب تـه خبر دفسخ ورکی کله چه حصص معلوم سی نو بیاکه ددوی خوښه وه نوی بیع به سره وکی.

یصح بیع حـصة شائعة معلومة کـالنـصف والثلث والعشر من عقـار مملوک قبل الافرازلانه لایشترط فی صحة البیع الافـراز عنـد التسلیم وقید الحـصة بکونهـا معلومة لانها لو کـانت غیر معلومة یفسد البیع لجهالة المبیع فلوقال الرجل الخ (شـرح المجلـة الاتاسی صـ۱۰۸ج ۲ ) فلوقـال لرجـل بعتـک نـصیبی من هـذه الـدار بهکذا وقبل الـمشتری ولـم یـکن عـالمـا بنـصیبه لایجوز هـذا البیـع وان علـم جاز خانیة (شرح المجلة سلیم باز صـ۱۰۳ج ) لکل من المتعاقدین فسخ البیع الفاسد ( المجلة المـ۳۷۲ ) غیرانـه یـشترط فی الفسخ علـم العاقـد الاخـر لارضـاه ولاقضاء قاضی سواء کـان الفسـاد فی صلب العقد الخ (شرح المجلة سلیم بـاز صـ۲۰۸)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## دچراگاه تعریف؟اوپه هغه کې کرهنه ؟اودبارانی (خوشکاوي)مځکې دعشرحکم؟

(**اول سوال**): دچراگاه تعریف څرنگه دی ؟

(**دوهم سوال**): په چراگاه کی کرهنه او ابادي کیږي کیا یعنی جواز لري کنه درعیت یا حکومت ؟

(**دریم سوال**): زموږ په وطن کی خوشکا وه یعنی دیمه مځکی دي پخوا حکومتو لکه شاهي لسم من څنی اخستی موږ باید څرنگه وکړو ایا هغه رنگه لسم من تول کړو او یائی وخلقو ته پریږدو او یا بله طریقه چه د شریعت سره سمون خوری او موږ ته روښانه سی په خیر ؟

﴿قومندان ملا حاجی محمد اخند اولسوال ولسوالی معروف﴾

**داول سوال جواب**: مځکه دوه قسمه ده یو مملوکه ده یو مباحه ده مملوکه هغه ده چه مالک یی معلوم وی او مباحه بیا دوه قسمه ده یو موات ده او بل مرعی ده مرعی هغه مځکی ته ویل کیږي چه دیو کلی په څنگ یا مابین کی موقعیت ولري او دکلی خلق نفع باندی اخلی مثلاً چراگاه وی دکلی یا دبوټو کولو ځای وی یا دحاصلاتو داېښولو ځای وی یا دکوچنیانو دلوبو کولو ځای وی یا دکلی مقبره او هدیره وی چه دهمدی قسمه استفادی ته اماده وی او موات هغه مځکی ته ویل کیږي چه وتیر سوی منفعتونو ته اماده نوی او دکلی خلق څنی استفاده نسی کولای که کلی ته نژدی وی یالیري وی هغه فرق نلري بناء بر مفتی به قول او حد فاصل په مابین کی دموات او مرعی دادی څونه مځکه چه په هغه کی دکلی مکمل حوائج اجراء کیږي او نوری مځکی ته ضرورت نه پیدا کیږي که چیری کلی وال اکتفاء په وکی نو هغه مځکه مرعی او دهغه څه وروسته موات ده لکه څنگه چه فقهاء لفظ داستغنا او حاجة مستعملوی.

الارض المباحة وتسمی الموات وهی نوعان احدهما مایکون تبعاً لبعض القری مرعی لمواشیهم ومحتطبالهم ...... والنوع الثانی مالایکون تبعالقریة من القری فهی علی الاباحة (تحفة الفقهاء صـ۳۲۲ج۳) الارض الموات کما عرفنانوعان احدهما ماکان من مرافق اهل بلدة یستعمل مرعی للمواشی ومحتطبالهم او مقبرة لموتاهم او ملعبا لصغارهم سواء اکانت داخل البلدة ام خارجها فیکون حقالهم لامواتا ...... والموات هومالایملکه احد ولاینتفع به

من الاراضي لانقطاع الماء عنه او لغلبة الماء عليه وما اشبه ذلک مما يمنع الزراعة بان غلبت عليه الرمال مثلاً ولايكون مملوكا لمسلم او ذمي (الفقه الاسلامي صـ۵۴۳ج۵) واعتبر محمد عدم ارتفاق اهل القرية به وبه قالت الثلاثة قلت وهذا ظاهر الرواية وبه يفتي كما في زكاة الكبرى ذكره القهستاني وكذافي البرجندي عن المنصورية عن قاضيخان ان الفتوى على قول محمد الدرالختار قوله واعتبر محمد حاصله انه ادار الحكم على حقيقة الانتفاع قرب او بعد (ردالمحتار صـ۳۰۷ج۵) والصحيح جواب ظاهر الرواية (الفتاوى الهندية صـ۳۸۶ج۵) هكذافي (الفقه الاسلامي صـ۵۴۴ج۵) قوله ولايجوزاحياء ماقرب من العامر لتحقق حاجتهم اليه تحقيقا عند محمد. .... ولهذا قالوا لايملک الامام ان يقطع مالاغنى للمسلمين عنه كالملح والاباريستقى منها الناس (البحرالرائق صـ۲۱۱ج۸) وكذلک ارض الملح والقارونحوهما مما لايستغنى عنها المسلمون لاتكون ارض موات (هندية صـ۳۸۶ج۵).

**د دوهم سوال جواب**: په مرعی یعنی چراګاه کی کرهنه او آبادی جواز نلري که دحکومت په امروی که درعیت په امروی یعنی هیڅ څوک نسی کولای چه شخصی استفاده څنی وکی.

ولايجوزاحياء ماقرب من العامر، لتحقق حاجتهم اليه تحقيقا عند محمد (البحرالرائق صـ۲۱۱ج۸ هكذافي الدرالمختار وردالمحتار صـ۳۰۸ج۵ والمجلة المـ۱۲۷۱).

**د دریم سوال جواب**: دیمه یاخوشکاوه مځکی کچیری دحکومت یا رعیت شخصی مملو کی نوی او په پخوا کی هم دچا په ملکیت کی نوی داخلی سوی او مرعی یا چراګاه هم نوه او او به یی بالکل نه درلودی نو دامځکی موات بلل کیږی دغه موات مځکی که چیری عشری مځکی ته نژدی وه عشرية ده که خراجیه مځکی ته نژدی وه خراجية ده که یوه بغل ته عشرية وه بل طرف ته خراجیة وه نو دغه موات عشرية ده که یی ابادو ونکی مسلمان وو او دغه خوشکاوه مځکه چه موات ده خلق یی په اجازه د امام اباده ولای سی دامام اجازه دوه قسمه ده یو قسم دادی چه حکومت خلقو ته منفعة او رقبة دمځکی دواړه ورکی یعنی صراحةً ورته

ووايي چه ته د دغه مځکی مالک یی هم رقبه ستاده هم یی منفعت ستادی په دی صورت کی دغه مځکه د دغه سړی شخصی ګرځی نه یی بیاحکومت ځنی اخستلای سی نه نور خلق بل قسم دادی چه حکومت مؤقتاً دیو څه وقت دپاره مځکه یو چاته ورکی چه هغه خپل منفعة باندی حاصل کی لکن رقبة یی دبیت المال او حکومت ده په دی معنی چه هروقت حکومت کولای سی چه ځنی وایی خلی او که چیری پخوا دغه خشکاوه مځکی دیو چا په تصرف او ملکیت کی راغلی وی نو که یی هغه مالک یا دهغه کورنی او ورثة معلوم وه نو دا مځکی مملوکی دی خپل مالکان یی تصرف پکښی کولای سی او که یی مالک یا کورنی نوه معلوم نو دامځکی حکم دلقطة لری متصرف یی بیت المال دی داسی معاملة ورسره کیږی لکه دموات مځکی.

عبارة الكنز هی ای الموات ارض تعذر زرعها لانقطاع الماء عنها او لغلبته عليها الخ وقوله هنا التی ليست ملكا لاحد ای مادخلت فی الاسلام فی ملک احد ولوذميا لان الميت عند الاطلاق ينصرف الی الكامل وكماله بان لايكون مملوكا لاحد لانها اذاكانت مملوكة لمسلم او ذمی كان ملكه باقيافيها لعدم ما يزيله فلاتكون مواتا ( شرح المجلة الاتاسی صـ۲۰۲ج۴ ) ولو احياه مسلم اعتبر قربه ای قرب ما احياه انكان الی ارض الخراج اقرب كانت خراجية وانكان الی العشراقرب فعشرية نهر وانكانت بينهما فعشرية مراعاة لجانب المسلم ط عند ابی يوسف واعتبر محمد الماء فان احياها بماء الخراج فخراجية والافعشرية بحر وبالاول يفتی درمنتقی ( ردالمحتار صـ۲۸۴ج۳ ) هكذافی ( الفتاوی الهندية صـ۳۸۸ج۵ ) وقد مناعن الدرالمنتقی ان المفتی به قول ابی يوسف انه يعتبر القرب وهو مامشی عليه المصنف او لاكالكنز وغيره وقد مه فی متن الملتقی فافا دتر جيحه علی قول محمد وقال ح وهو المختار كمافی الحموی علی الكنز عن شرح قراحصاری وعليه المتون ( ردالمحتار صـ۲۸۴ج۳ ) ثم ان ماذكر من الحكم هوقول الامام رحمه الله تعالی وقالايملكها بلا إذن...... قال فی درالمحتار وقول الامام هو المختار ولذا قدمه فی الخانية والملتقی كعادتهما وبه اخذ الطحاوی وعليه المتون ( شرح المجلة الاتاسی صـ۲۰۴ج۴ ) و ( ردالمحتار صـ۳۰۷ج۵ ) وان اذن السلطان او وكيله لشخص باحياء ارض علی ان لايكون متملكا بل لمجرد الانتفاع فذلک

الشخص یتصرف بتلک الارض کما اذن له لکن لایکون مالکا لتلک الارض ( المجلة المـ۱۲۷۲ ) اذا احیا شخص ارضامن الاراضی الموات بالاذن السلطانی صار مالکالها ( المجلة المـ۱۲۷۲ ) ثم ان عرف المالک فهی له وان لم یعرف کانت لقطة یتصرف فیها الامام کما یتصرف فی جمیع اللقطات والاموال الضائعة وجعل المملوک فی الاسلام اذا لم یعرف مالکه من الموات لان حکمه کالموات حیث یتصرف فیه الامام کما یتصرف فی الموات لالانه موات حقیقة زیلعی ملخصاً ( شرح المجلة الاتاسی صـ۲۰۳ج۴ )

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## دشیعیه مذهب په اړه څو مهمي پوښتني اوځوابونه

**سوال** : محترما ! دری نفره هزاره گان چه اصلی آبائی وطن یی دافغانستان جاغوری داسلامی امارت تابع ده دایران مملکت ته تللی وو دهغه ځایه وکندهار ته راغلی وه دوی دکندهار په ښار کی څونفرو طالبانو دنوموړی ۳ تنو هزاره گانو له جملی څخه ۲ دوه تنه قتل کړي دی اود ۳ نفرو هزارگانو څخه یی نقدی پیسې هم وړی په دغه اړه لاندنی استفتا کوو.

( **اول سوال** ): آیا دشیعه گانو هزارؤو قتل روا دی ؟

( **دوهم سوال** ): که چیری شیعه وی خو په ډله او فرقه باندی یی اوپه بغاوت او عدم بغاوت څوک علم ونه لری قتل یی روا دی او کنه ؟

( **دریم سوال** ): که چیری ددغو خلگو( مذکورینو )قتل رواوی دچا لپاره یی قتل جواز لری ؟

(**الف**): په انفرادي ډول هر څوک کولای سي چه دغه کسان په قتل ورسوی

(**ب**): که د دوی قتل دامیر اجازه غواړی یا به یو مسئول اورگان دغه مسئولیت په غاړه اخلی.

(**څلورم سوال**): اوس ددغو طالبانو مذکورینو سزاء څه ده کوم چه ۲ تنه هزاره گان بی وژلی دی او هم یی ددوی څخه پیسی اخستی دی ؟

**داول سوال جواب**: که دمستفتی مراد دقتل څخه قتل په وجه دکفر وی نو باید په وضاحت سره ووایو چه دیو فرقی یا طائفی یا یو شخص په کفر سره حکم کول ډیر عظیم خطر لری دهیڅ چالپاره داسی جرءت کول نه دی پکار او دشیعه گانو او نورو بالمثل طائفو په باب کی حکم دادی چه ددوی دعقائدو تحقیق باید ددوی دخولی څخه وسی که چیری دضروریاتو څخه داسلام یی انکار وکړی نو بالکل دشکه وتلی کافران او مرتدین او مباح القتل دی خو شرط دادی چه هغه انکار دوی پخپله وکړی نه داچی دخلقو داوازو پر بناء وی او بل داچه هغه شی واقعاً دضروریاتو څه ددین وی یعنی چه ثبوت یی هم قطعی وی او دلالة دآیة یا حدیث پر هغه موضوع هم قطعی وی لکه لمونځ روژه او داسی نور--- ډیر داسی موضوعات سته چه ودوی ته منسوب سوی وی خو دوی پخپله دهغه سره موافق نه وی او په هغه موضوع کی دهغه خرابی عقیدی څه دوی ځان پاک بولی او بل داچه دوی په خپل مابین کی ډیری مختلفی فرقی او طائفی دی چه دهریوه عقائد جلا جلا دی نو پرټولو باندی یو حکم کول ډیر زیات خطر لری حاصل او خلاصه داچه داسلام بعضی احکام داسی دی چه انکار یی کفر دی بعضی داسی دی چه انکار یی فسق او بدعت وی کفرته نه رسیږی بعضی داسی دی چه انکار یی فسق هم نه بلل کیږی لکه اختلاف په فروعاتو کی نو جواز دقتل بناء دی پر اباحة ددم او هغه بناء دی پر انکار دضروریاتو څخه ددین خو مکمل تحقیق باید وسی چه دوی انکار کړیدی کنه او هغه شی واقعاً دهغه ضروریاتو څخه دی چه منکریی کافر کیږی کنه یوازی دخلقو

پراقوالو او دکتابونو پر حوالو باید اکتفاء ونسی حقیقت باید معلوم سی ځکه چه دکفرار قتل موضوع ډیر مهمه او خطری ده.

یا ایها الذین آمنوا اذا ضربتم فی سبیل الله فتبینوا ولاتقولو المن القی الیکم السلام لست مؤمنا تبتغون عرض الحیوة الدنیا الایة (سورة النساء آیة نمـ۹۴) ادخال کافر فی الملة الاسلامیة او اخراج مسلم عنها عظیم فی الدین شرح شفاء لملا علی قاری (جواهر الفقه صـ۲۱ج۱) لایجوز الحکم بکفر من قال لااله الاالله حتی یتبین امره....... ولایعجل فی قتله حتی یتبین امره (احکام القرآن للتهانوی صـ۳۲۸ج۲) الاتری انامتی شککنا فی ایمان رجل لانعرف حاله لم یجزلنا ان نحکم بایمانه ولابکفره ولکن نثبت حتی نعلم حاله (احکام القرآن للتهانوی صـ۳۲۹ج۲) ومایشک انه ردة لایحکم بها اذالاسلام الثابت لایزول بالشک مع ان الاسلام یعلو وینبغی للعالم اذا رفع الیه هذا ان لایبادر بتکفیر اهل الاسلام الخ وفی الفتاوی الصغری الکفر شئ عظیم فلا اجعل المؤمن کافرا متی وجدت روایة انه لایکفر وفی الخلاصة وغیرها اذا کان فی المسئلة وجوه توجب التکفیر ووجه واحد یمنعه فعلی المفتی ان یمیل الی الوجه الذی یمنع التکفیر...... ولقد الزمت نفسی ان لا افتی بشئی منها (ردالمحتار صـ۳۱۲ج۳).

روافض واهل تشیع مین بہت سے مختلف العقائد فرقین ہیں اور ہر فرقہ کی عقائد کو جداجدا منضبط کرنا بھی دشوار ہیں ایک دوسری مشکل یہ ہیں کہ کسی فرقہ کی کتابون مین اُن کی بعض عقائد معلوم ہوتی ہیں مگر جب عقیدہ اُن کی طرف منسوب کیا جاتا ہیں تو وہ اُس کا انکار کرتی ہیں مثلاً کتب شیعہ مین جابجا اس قسم کی عبارتین ملتی ہیں جن سے معلوم ہوتا ہیں کہ وہ موجودہ قرآن کو محرف ونا قابل اعتبار سمجتی ہیں ہیں مگر جب کہا جاتا ہیں کہ تم موجودہ قرآن پر ایمان ہیں رکھتی تو وہ شدت کی ساتھ اس سے تبری کرتی ہیں (جواہر الفقہ لمولانا مفتی محمد شفیع رحمہ اللہ تعالی ص‍ـ۵۹ج۱).

**ددوهم سوال جواب** : دچاچه فرقه طائفه بغاوت او عدم بغاوت نوی معلوم نو بناء بروهم او ظن به څنګه دمسلمان پر قتل څوک اقدام کوی یا به څنګه څوک پر جواز فتوی ورکوی.

**ددریم سوال جواب** : داول سوال دجواب څه معلومه سوه چه دپوره معلومات څه ترمخه ددوی قتل نه دامام دپاره جائز دی نه دقاضی لپاره او نه په انفرادی شکل.

**دڅلورم سوال جواب** : داکسان چه داقتل یی کړی او خاص یی دپیسو لپاره کړیدی باید محکمی ته پیش سی چه هغوی دخپل تحقیق مطابق دوی محکمه کړی یا دی امام یا قاضی دوی ته سخت او انتهائی تعزیر ورکړی حتی امام ته داجائزه ده چه دغه کسان سیاسة قتل کړی که چیری تکراراً دوی داسی قتلونه کړی وه ځکه چه دوی مرتکبین دډیر عظیم جرم دی او بی اجازی دامام یی قتل کړیدی او پیسی یی اخیستی دی نو داکسان که چیری تکرارا دوی داسی قتلونه کړی وه دساعی بالفساد دجملی څخه دی او ددی کسانو قتل ډیر ثواب لری ولی فتنه انګیزه خلق باید ورک سی دمځکی له مخه.

وجميع الكبائر والاعونة والسعاة يباح قتل الكل ويثاب قاتلهم انتهى وافتى الناصحي بوجوب قتل كل مؤذ (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۱۹۸ج۳) من تكرر الخنق منه في المصر قتل به سياسة لسعيه بالفساد وكل من كان كذلك يدفع شره بالقتل (ردالمحتار صـ۱۹۶ج۳).

**تنبیه**: دغه مذکور احکام دهغه شیعه ګانو دی چه په قندهار یانورو هغه ولایتوکی وی چه جنګ نسته پکښی او دباغیانو شیعه ګانو سره ارتباط ونه لری.

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که دشفع رغ له خبرسره سم وکړي اودعوی

## ځلورکاله دموانعو له امله وځنډيږي څه حکم لري اوکوم قیمت معتبردی؟

**سوال**: کله چې مونږ ته خبر راورسیدی چه ستاسی له مځکی سره هغه همجواره مځکه خرڅ سویده هم په دغه مجلس کی مونږ طلب دشفعی وکړی داسی مو وویل چه تاسی شاهدان سی چه مونږ طلب دشفعی کوو خو داؤو چه په سبب دموانعو طلب دشفعی تر څلورو کالو پوری پاته سو هغه موانع دادی چه په هغه وخت کی قاضی نه وو په هغه ولایت کی بل مونږ په پاکستان کی وو سفرمو هلته نسو کولای کله چه دطالبانو امارت اسلامی راغلی مونږ ورغلو دشفعی دعوه مو وکړه ایا چه زمونږ په دغه صورت کی هم اوس حق دشفعی سته او که باطله سوی ده .او وروسته ترڅلور وکلو چه شفع وگټی ایاکوم قیمت به شفیع وه مشتری ته ورکوی یعنی قیمت درانیولو به ورکوی چه دڅلورو کلو مځکی وو او که دتسلمیدو دوخت به ورکوی؟

**جواب**: که چیری واقعه داسی پیښه وی لکه مستفتی چه لیکلی دی او کله چه دطالبانو حکومت رامابین ته سوا ومحکمی جوړی سوی بیا هم بی له ځنډه دوی مطالبه دشفعی په محکمی کی کړی وی نو دشفعی حق قائم دی او باقی دی او غیبة دشفیع هم دشرعی اعذاروڅخه یو دی او یواهمه خبره دا هم ده چه دغه شفیع به دبائع په وړاندی که مبیعه تر اوسه دده سره وه یاد مشتری یا مبیعی په وړاندی شاهدان درولی وی او دهغه شاهدانو په حضور کی به طلب دشفعی کوی که شرعی عذر نوو او که عذر موجود وو بیا چه عذر زائل سی دستی به دغه کار کوی چه دغه ته طلب تقریر ویل کیږی حتی که پر دغه طریقه یی طلب نسوای کولای او خط یی واستا وه هم کفایت کوی.

على الشفيع بعد طلب المواثبة ان يشهد ويطلب طلب التقرير والاشهاد وهو ان يقول الخ (المجلة المـ۱۰۳۰) يكون طلب التقرير والاشهاد فى احد ثلاثة مواضع اوله عند المبيع ....... ثانيها عند المشترى ...... ثالثها عند البائع اذا كان المبيع لايزال فى يدالبائع ولم يسلم للمشترى بعد (دررالحكام صـ۷۹۵ج۲) لواخر الشفيع طلب التقرير والاشها دمدة يمكن اجراء ه فيها ولو بارسال كتاب يسقط حق شفعته (المجلة المـ۱۰۳۳) لواخر الشفيع طلب الخصومة بعد طلب التقرير والاشهاد شرعاً من دون عذرشرعى ككونه فى ديار يسقط حق شفعته (المجلة المـ۱۰۳۴).

**د دوهم سوال جواب** : دنن ورځی قیمت اعتبار نه لری بلکه هغه قیمت اعتبار لری چه په هغه قیمت سره بائع او مشتری بیعه کړی وی که چیری دغه مبیعه په پیسو خرڅه سوی وه او کچیری ئی دمبیعی په بدل کی موټر یا دکان یا بل داسی شی ورکړی وو نو هغسی شی به ورکوی.

يعنى اذا كان بدل العقارمن القيميات فالقيمة المعتبرة فى البدل هى القيمة وقت الشراء ولاتعتبر قيمته وقت الأخذ بالشفعة ﴿ دررالحكام صـ۸۱۱ج۲ ﴾ وتحسب قيمة الشئ المبيع يوم البيع لايوم الاخذ بالشفعة باتفاق الفقهاء ﴿ الفقه الاسلامى صـ۸۱۱ج۵ ﴾ اذا اشترى المشفوع ببدل من المثاليا فعلى الشفيع ان يعطى المشترى مثل ذلک البدل.

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دډير وخت په تيريدو دعوی باطليږي کنه؟

**سوال**: محترمه دازمونږ موضوع د ځمکی چه ده اول زما نيکه محمد کريم او دوهم دده زوی تورنامی ته پاته وه، او دريم عبدالحبيب او پردل ته پاته ده، د دوی عمر د (۷۰) کالو دی تر اوسه پوری ئی خوری او هيڅا دعوی نه ده کړی. اميد کوو چه و مونږ ته فتویٰ را کړی چه په دغسی مرورزمان د دوی دعویٰ کيږی کنه؟

(حبيب الله)

**جواب**: هغه څوک چه اوس غواړی دعوی وکړی که ئی جانب مقابل دامنی يا منلی وی په حضور کی د حاکم يائی په بل مجلس کی منلی وی او خط يی دا قرار نوشته کړی وی او خپله امضاء يا ټاپه ئی لګولی وی او د خط څه وروسته مرورالزمان نوی راغلی چه دی زمونږ سره حق لری او حق يی نه دی ورتسليم سوی نو دعوی ئی صحيح کيږی او مرورالزمان هيڅ اعتبار په دی صورت کی نلری کڅه هم ۲۰۰ کاله تير سوی وی او که جانب مقابل منکروی او د ده حقداری نه منی يا وايی چه ده ته حق رسيدلی دی نو بيا دغه مرورالزمان که بی له يو شرعی عذر څه راغلی وو د هغه ددعوی مانع ګرځی او دعوی يی نه اوريدل کيږی لکن که هغه ته خپل حق نوو رسيدلی او جانب مقابل په خبروو او منکر وو نو د الله تعالی ﷻ په نزد به سخت مسئوليت ور په غاړه وی غاړی به ئی بندی وی او په آخرت کی به جواب ورکولو ته مجبور وی او همدارراز نور وارثان او حقداران که دهغوی دعوی صحت لری او کنه که دعوی کوی او کنه خپل حق هغوی ته بايد ورسوی خصوصًا که نور زنانه وارثان وی يا يتيمان وی او د الله ﷻ او د آخرت دعذابه بايد اوس لا ځان خلاص کړی.

لا یسقط الحق بتقادم الزمن بناء علیه اذا أقر واعترف المدعی علیه صراحة فی حضور القاضی بأن للمدعی عنده حقا فی الحال فی دعوی وجد فیها مرورالزمن بالوجه الذی ادعاه المدعی فلا یعتبر مرورالزمن ویحکم بموجب اقرارالمدعی علیه واما اذالم یقر المدعی علیه فی حضور القاضی وادعی المدعی بکونه اقرفی محل آخر فکما لا تسمع دعواه الاصلیة کذلک لا تسمع دعوی الاقرار ولکن الاقرار الذی ادعی انه کان قد ربط بسند حاولخط المدعی علیه المعروف سابقًا او ختمه ولم یوجد مرورالزمن من تاریخ السند إلی وقت الدعوی تسمع دعوی الاقرار علی هذه الصورة (المجلة المـ۱۶۷۴) لا یسقط الحق بتقادم الزمن ولو تقادم الزمن احقا باکثیرة (دررالحکام صـ۳۱۹ج ۴) عدم سماع القاضی لها (ای بعدمرورالزمان) انما هو عند انکارالخصم فلو اعترف تسمع کما علم مماقدمناه من فتوی المولی أبی السعود افندی اذلا تزویر مع الاقرار (ردالمحتار صـ۳۸۱ج ۴) وعن ام سلمة عن النبی ﷺ فی رجلین اختصما الیه فی مواریث لم تکن لهما بینة الادعواهما فقال من قضیت له بشئ من حق اخیه فانما اقطع له قطعة من النار (مشکوة شریف صـ۳۲۷)

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که داسنادو په تاریخ کي اختلاف راسي کوم سندمعتبرده؟

**سوال**: استفتاء محکمه قادس ولایت بادغیس - بمقام محترم ریاست دارالافتاء مقیم قندهار السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

اما بعد:

از مقام محترم استفتاء بعمل میاید اینکه دونفر درمقدار اراضی در محکمه ابتدائیه قادس دعوی داشتند یکی ذوالید بود ودیگر خارج و محکمه از هر نفر سند ملکیت طلب نمود وذوالید سند خریداری حاضر آورد ودران نوشته بود که همین محدوده را بتاریخ دوشنبه اول حمل ۱۳۴۹ مبلغ ۸ لک افغانی از فلان بائع خریده است وخارج نیز سند عرفی ارائه نمود ودران نوشته بود که بتاریخ یوم یکشنبه ۱۳۴۹ بدون تعین برج که چهاریک از تحت همان محدوده ذوالید بمبلغ دولک افغانی نیزازهمان بائع خریده است پس بروت سندین حکم نمود که سند یوم دوشنبه اول حمل ۱۳۴۹ مقدم التاریخ است نسبت به سند یوم یکشنبه ۱۳۴۹ زیراکه چونکه یوم دوشنبه اول حمل ۱۳۴۹ شد پس معلوم است که یوم یکشنبه ۱۳۴۹ ازان دوشنبه مؤخرست چه که اگر مقدم باشد به سال ۱۳۴۸ واقع میشود ونظر به فقه شریف حنفی هرجاکه بائع یک شخص باشد وهر دو مشتری تاریخ بیان میکنند برای اسبق التاریخین حکم میشود

كما قال فی البحر الرائق ۲۴۱ج ۷ وعلى الشراء من واحد فالاسبق احق لانه اثبت انه اول المالكين فلا يتلقى الملک من جهته ولم يتلق الاخر منه انتهى و قال في فتح القدير صـ۳۲۳ج ۶ اذ تبين به ان الاخر اشتراه من غير المالک فكان باطلا انتهى

وبروی این اساس محکمهٔ ابتدائیه قادس حکم نمود که سند یوم یکشنبه ۱۳۴۹ که متأخرالتاریخ است باطل است باید که مزاحم صاحب سند یوم دوشنبه اول حمل ۱۳۴۹ نشود وپس از مرافعه طلب‌ـی محکوم علیه ریاست دیوان مدنی وحقوق

عامه دلالت بادغیس قرار بر بطلان حکم و فیصلۀ ابتدائیۀ قادس صادر نمود باین عبارت لکن محکمۀ قادس بصورت دقیق تحلیل نکرده است که سند دست داشتۀ عبدالنبی ازیوم یکشنبه تاریخ چند و درکدام برج سال ۱۳۴۹ صورت گرفته است زیراکه یوم یکشنبه به تناسب یوم دوشنبه مندرج سند مولوی حبیب الله مقدم التاریخ بملاحظه میرسد باید که محکمۀ قادس تاریخ و برج یوم یکشنبه ۱۳۴۹ در سند دست داشتۀ عبدالنبی از بائعین و مشتریان و اهل خبره تثبیت و اجراآت سالم و مثبت شرعی را در ان مورد صادر میکرد ازینکه اجراآت محکمۀ مذکور مثبت نبوده بحکم مسئلۀ شرعی

(یشترط ان یکون المدعی به معلوما لا تصح الدعوی اذا کان مجهولا المادۀ ۶۱۹ مجلة الاحکام

غیر شرعی و مجهول میباشد قرار قضائی مذکور و فیصله خط نمبر فوق قابل نقض و باطل است پس آیا ازنگاه شرع انور و فقه حنفی این اعتراض ریاست مدنی مذکور که باید زمان تاخر سند متأخر معلوم باشد تا حکم به بطلان سند متأخر شود صحیح است یا مجرد ثبوت تأخر در سند متأخر کافی است خواه یکروز باشد یا صد روز و نیز آیا این استشهادش بمسئله شرعی یشترط الخ بمحل خود میباشد و یا دور از محل خود است واگر اعتراض ریاست مدنی شرعاً صحیح نباشد فیصلۀ قادس سالم میماند و اگر صحیح باشد باطل میباشد.

(**نوت**): این مضمون از فقه حنفی در فیصله قادس موجود است (قال فی شرح المجلة سلیم باز صه۱۱۲۷ ادعیا الشراء من واحد والعین فی ید احدهما، ۴۵ لم یورّخا یقضی لذی الید، ۴۶ ارخا تاریخا واحدا یقضی لذی الید، ۴۷ ارّخا وتاریخ احدهما اسبق یقضی للاسبق ،۴۸، ارخ احدهما ولم یؤرخ الاخر یقضی لذی الید؟

(بینوا رحمکم الله تعالی توجروا نجیب الله قاضی محکمۀ قادس)

**جواب**: درین استفتاء که از محکمۀ ابتدائیه قادس فرستاده شده چند نکته موجود است:

(نکتۀ اول) اینست که مدعی ذوالید و مدعی خارج که بعد از دعوی کردن مدعی خارج سند عرفی أرائه نموده است این سند عرفی درحالت عدم موجودیت شهود و عدم موجودیت مثنی آن در محکمه قابل اعتبار نیست زیراکه احتمالات

تزویر دران بسیار است سند آن وقت معتبر است که ثبت محفوظ داشته باشد واحتمال تزویر دران نباشد وحکم خلاف شرع دران موجود نباشد

(نکته دوم) اینست که این موضوع را محکمهٔ قادس ازجملهٔ صورت چهل وهفتم شمرده است که عبارتست از صورت ارّخا وتاریخ احدهما اسبق وحال آنکه ظاهراً ازجمله صورت چهل وهشتم است که عبارتست از صورت

ارّخ احـدهما ولم یؤرخ الاخر

زیراکه مدعی خارج تاریخ بیان نکرده است واین اسبقیت که مستفتی تفصیل آن کرده است ضمنا وتبعًا فهمیده میشود صراحتا وآن هم در صورتی که احتمالات تزویر درآن سندها وتاریخها بالکلیة مندفع شده باشد پس اگر درینجا از طرف دیوان مدنی وحقوق عامه مطالبهٔ زیاده تحقیق واجراء ات بعمل آید بسیار بجا نباشد وباید گفته شود که استشهاد بمجرد این عبارت که

(یشترط ان یکون المدعی به معلوما)

بدون ضم دیگر عبارت برای نقض فیصلهٔ ابتدائه قادس بهمین شکل که نوشته شده است کفایت نمیکند.

وما ذکرناه عن الخانیة محله ما اذالم یکن للصک وجود فی سجل القضاة اما لووجد فیه فانه یعمل به کما فی حواشی الاشباه (ردالمحتار صـ۴۴۳ج۳) لکن اذاکانت الاعلامات والسندات مطابقة للاحکام الشرعیة والافلا یعمل بها (شرح المجلة للاتاسی صـ۱۱۷ج۶) یعمل ایضًا بسجلات المحاکم اذا کانت قد ضبطت سالمة عن الفساد والحیلة علی الوجه الذی یذکر فی باب القضاء (المجلة صـ۱۷۳۸)

والله تعالیٰ اعلم

بسم الله الرحمن الرحیم

## دهغو درختو حکم څه دي چې دبل چا پر ویاله ابنودل سوي وي؟

**سوال** : فضیلت مآب د مسجد شریف وقفي سرای دی و بغل ته ئی عامه لاره تیره سوی ده د عمومی لاری څخه وروسته عمومی ویاله ده اعنی عمومی لار د مذکور وقفي سرای او عمومي ویالي په میان کی تیره سوی ده زما یوڅودرختي د ولی د مذکور سرای پر مقابل د ویالي پر غاړه دی د کلي خلگ و ما ته وایي چه دغه ولی د مسجد د سرای د حریم دی مانه ورته پریږدی نوزه داسی هیله کوم چه وماته شرعی فتوی راکړی چه دادرختي دچاحق دی ویاله هم دبل وطن ده ؟

**جواب** : محترم مستفتي ته باید وویل سی که موضوع داسی وی لکه تاسو چه لیکلی دی نو دغه ولی نه د سرای په حریم کی دی او نه د دغه سرای د حقوقو څخه دی نو که چیری دغه مستفتي دغه درختي د ویالي پر غاړه ایښی وی په اجازه د ټول هغه وطن چه ویاله ور رغلی ده نو دا درختي د دغه ایښوونکی دی او خپله شرعی استفاده ځنی کولای سی او که یی د هغو بی اجازی ایښی وی او آینده هم د هغو اجازه نه وی نو فورًا به خپلی درختي کاږی او ایسته کوی به یی ، او بله خبره دا ده چه که د ټولو وطن والو اجازه هم وی خو دی به داسی تصرف نه کوی چه دغه سرای والا یا و نورو ته ناحقه ضرر ورسوی او دا حکم ځکه ثابت دی چه دغه درختي خو په حریم کی د ویالي ایښوول سوی دی او د حریم مالک هغه څوک وی چه د ویالي مالک وی نو دغه درختي په ملک کی د غیر ایښوول سوی دی.

ولاحریم لدار محفوفة بملک الغیر من کل جانب لان الحریم من المرافق ولا یرتفق بملک غیره لان مالکه أحق به و یتصرف کل واحد منهم فی ملکه و ینتفع بحسب ما جرت به العادة ( الفقه الاسلامی صـ۵۷۰ج ۵ ) لا یجوز لاحد ان یتصرف فی مال الغیر بلا اذنه ( المجلة المـ۹۶ ) الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۱۴۰ج ۵ ) و عدم الجواز شامل لجمیع انواع التصرف من استعمال کرکوب و لبس ووضع جذع علی حائط و دخول دارالخ ..... فتصرف الغیر فی مال الغیر ممنوع ال انتکون و صایة او ولایة او تدعو ضرورة فیجوز ( شرح المجلة للاتاسی

صـ۲۶۲ج ۱) انکـان المغـصوب ارضـًا فبنـی الغاصـب فيهـا بنـاء او غـرس فيها اشجارا فانـه يؤمر بقلعهـا و ردالارضْ (المجلة ۹۰۶) لـو شغل واحـد عرصة آخر بكناسة او غيرهـا فانـه يجبر على رفـع مـا و ضعه و تخلية العرصة (المجلة المـ۹۰۹) لاضرر ولا ضرار (المجلة المـ۱۹) فـسره فی المغـرب بـان لا يـضر الرجل اخاه ابتداء و لاجزاء (اشباه) (سليم باز صـ۲۹)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## وقف سوی شئ بيرته ملکيت گرزولای سي؟

**سوال**: د افغانستان د علماؤ د مرکزی شوری د دارالافتاء عالی مقام ته. السلام عليکم ورحمة الله و برکاته. محترما! که چيری يو نفر خپل شخصی ملکيت يو شی ته وقف کړی او په هغه وقف شوی ځای کی تصرف هم وشی پس له څه وخته لومړی نفر چه دغه ځای وقف کړی دا حق لری چه بيرته تر وقف تير سی او خپل ملکيت ئی و گرځوی کنه؟

(کندهاربنارروال مولوی دين محمد حق بين)

**جواب**: شخصی ملک که يو ثوک وقف کی نو دغه واقف بيا هيڅکله نسی کولای چه دغه وقف خپل ملکيت و گرځوی او نه د بل چا شخصی ملک گرځيدلای سی او نه يی وارثانو ته د ملکيت په ډول انتقاليدلای سی بنا پر مفتی به قول.

فـلا يجوزله (ای للواقف) ابطاله (ای الوقف) ولا يورث عنـه و عليه الفتوی (الـدرالختار) قوله و عليه الفتوی ای علی قولهـما بلزومه لان الاحاديث و الاثار متظافرة علی ذلک و استمر عمل الصحابة و التابعيـن و من بعـد هم علی ذلک فلذا تـرجح خـلاف قوله آه (ردالمحتار صـ۳۹۲ج ۳) هـكذافی (الفقه الاسلامی صـ۱۵۴ج ۸) (الفتاوی الهندية صـ۳۵۰ج ۲) (و مجمع الانهر والدرالمنتقی بهامش صـ۷۳۳ج ۱).

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دهغې مځکې حکم چې دشخصې مځکو په منځ کې وي اوله دولت سره هم قيد وي

**سوال**: محترم د کندهار د دارالافتاء رياست ته السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته و بعد.
محترما! څرنګه چه د عبدالرحمٰن او محمد صادق د موسی قلعه د ولسوالی د شاهرګی اوسيدونکی يوه موضوع چه پر يوه اندازه دولتی (امارتی) ځمکه باندی دعوه ده د دوی د خلاصون په خاطر د موسی قلعه ولسوالی په (۸۳) ۱۴۲۰/۶/۱۷ ګڼه ليک په ذريعه د هلمند د امارت د قضاياو رياست ته راجع سويده زموږ د څيړنی په لړکی معلومه شوه چه مدعی بها ځمکه په سرجمع د دولت قيد ده او د ذکر شوی مدعی بها ځمکی اربعه حدونه ټول په شخصی ځمکو پوری متصل دی او خپله مدعی بها ځمکه په نقشه کی موازی (۴۰) جريبه بلند آبه، تپه، يا غونډی ده نو د امارتی قضاياو رياست د مشکل سره مخامخ دی ځکه چه نوموړی مدعی بها ځمکه چه د خلکو د شخصی ملکيتو په مابين کی موقيعت لری يا داسی بلند آبه او تپه زاری ځمکی چه د خلکو د شخصی ځمکو په منځ موقيعت لری او په امارتی دفاترو کی او په نقشو کی د امارت په سرجمع کی قيديت ولری د امارت بلل کيږی او يا د اشخاصو صرف او صرف د داسی موضوعاتو په اړوند شرعی فتوا غواړو تر څو هغه اجراآت چه په نظر کی لرو تر سره شی ډيره مهربانی به موو؟

《ملا محمد اکبر اخندزاده د هلمند د امارت قضاياو د رياست کفيل》

**جواب**: کچيری دغه مدّعی شخص د دغه مدعی بها مځکې د ملکيت لپاره شرعی دلائل ولری يعنی شاهدان د رانيولو يا د ميراث پاته کيدلو يا نور شرعی دلائل د ملکيت ولری يا شرعی معتبره قباله ولری شرعی معتبره قباله هغه ده چه ثبت يی موجود وی په محکمه کی او خلاف د شريعت حکم پکښی نوی او د تزوير چم او فريب څخه محفوظ ساتل سوی وی نو

دغه مځکه د دغه مدّعی ګرځیدلای سی یوازی دغه خبره چه په د فاترو او نقشو کی د أمارت په سرجمع کی قیدیت لری په مقابل کی د شرعی دلائلو ( کچیری مدعی سره دغه شرعی دلائل وه ) هیڅ اعتبار نلری او نه یوازی په دغه خبره د قیدیت حکومت دغه مځکه ځان ته راګرځولای سی ( په هغه صورت کی که د مدّعی سره شرعی دلائل موجود وه ) او دا چه دغه مځکه د شخصی ملکیتونو په مابین کی ده او د بلند آبه او تپه زاری مځکو څه ده نودا خبره هم د قرائن قویة او قطعیة څه نده چه یو جانب استدلال په ووایی.

اذا اثبت المدعی دعواه بالبینة حکم الحاکم بذلک ( المجلة المـ۱۸۱۸) ان الاعلام و السند الصادرین من حاکم محکمة یجوز الحکم و العمل بمضمونهما بلابینة اذا کانا عاریین و سالمین من شبهة التزویر و التصنیع و موافقین لاصولهما ( المجلة المـ۱۸۲۱) و ماذکرناه عن الخانیة محله ما اذالم یکن للصک وجود فی سجل القضاه إما لووجد فیه فانه یعمل به کما فی حواشی الاشباه ( ردالمحتار صـ۴۴۳ج ۳ ) لکن اذا کانت الاعلامات و السندات مطابقة للاحکام الشرعیة والافلا یعمل بها ( شرح المجلة للاتاسی صـ۱۱۷ج ۶ ) احد اسباب الحکم القرینة القاطعة ( المجلة المـ۱۷۴۰) القرینة القاطعة هی الامارة البالغة حد الیقین مثلاً اذا خرج رجل من دارخالیة خائفا مدهو شافی یده سکین ملوثة بالدم فدخلت الدارفی الحال و شوهد فیها رجل مذبوح فی ذلک الوقت فلا یشتبه فی ان قاتله هو ذلک الرجل و لایلتفت الی الاحتمالات التی هی محض توهم کالقول ان الرجل ربما قتل نفسه ( المجلة المـ۱۷۴۱) و لیس للامام ان یخرج شیئا من ید احد الابحق ثابت معروف ( ردالمحتار صـ۲۸۱ج ۳ )

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که ښځه له خاوندسره په یوه ښارکي
## گذاره نه کوي میره کولای سي چې ۷، ۹، کلن ماشومان څني جلاکړي؟

**سوال**: وحضور ته د مرکزی دارالافتاء علماء کرامو السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته و بعد: عرض دا دی چه زما منکوحه ۲ زامن یو د ۷ کلو بل د ۹ کلو زما څخه لری څه وقت زما گذاره په کراچی کی وه اوس تقریبا ۷ میاشتی کیږی چه زه په کندهار کی گذاره کوم نو اوس زما ښځه په کراچی که ده خپلو هغه ۲ زامنو سره ده زما سره موافقه نلری چه په کندهار کی زما سره گذاره وکړی او څه شرعی عذر هم نلری او س سوال دا دی چی که زما ښځه اوس هم زما سره موافقه ونکړی ایا زه ددغو ۲ زامنو حق لرم چه د موره یی جدا کړم کندهار ته یی راولم او کنه او دا زما یقین دی چه دغه کوچنیان که د مور سره وی تربیه به یه خرابه وی؟

(مستفتی حاجی محمد نبی)

**جواب**: هرکله چه زوی داسی اندازی ته ورسیږی چه ده ښځو و خدمت ته ضرورت نلری مثلاً خوراک څښاک طهارة اغوستل د جامی پخپله کولای سی چه هغه نو غالبًا ۷ ـ ۸ کاله دی نو بیا کولای سی پلار چه ده ځان سره یی بوزی.

فقال الحنفية الحاضنة اما او غيرها احق بالغلام حتى يستغنى عن خدمة النساء و يستقل بنفسه فى الاكل والشرب و اللبس و الاستنجاء و قدر زمن استقلاله بسبع سنين لانه الغالب (الفقه الاسلامى صـ۷۴۲ج ۷) هكذافى (بدائع الصنائع صـ۴۲ج ۴) وفيه و ذكر الخصاف سبع سنين او ثمان سنين او نحو ذلك انتهى اذا انتهت مرحلة الحضانة ضم الولد الى الولى على النفس من أب اوجد لا لغيرهما و يظل للاب الحق فى امساك الصبى حتى يبلغ (الفقه الاسلامى صـ۷۴۵ج ۷) اذا كانت الام هى الحاضنة فى حال قيام الزوجية او اثناء العدة من طالق أو وفاة فمكان الحضانة هو المكان الذى تقيم فيه مع الزوج و لا يجوز لها الانتقال به الاباذن الزوج لان الزوجة ملزمة بمتابعة زوجها و الاقامة معه حيث يقوم (الفقه الاسلامى صـ۷۳۷ج ۷) مكان الحضانة مكان الزوجين اذا كانت

الزوجية بينهما قائمة حتى لواراد الزوج ان يخرج من البلد فارا داخذ ولده الصغير ممن له الحضانة من النساء ليس له ذلک حتى يستغنى عنها (الفتاوى الهندية صـ۵۴۳ج۱)

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

**پر دکانو، ريگونو، ډبرو وغيره باندې ماليه اخيستل جواز لري کنه؟**

**سوال**: ماليه د دکانو اخستل د عامو دکانو څخه. ريگ ده رود او ډبرې د غره او بتې د ريگ پرد غه مذکوروشيانو محصول آخستل جوازلری کنه

**جواب**: کومې پيسې چه حکومتې خلق په نامه د محصول يا د ماليې د خلقو او دکاندارانو څخه اخلي دا شرعې جواز نلرې ټوله ظلم دې او نه په شريعت مقدس کې د غه طريقه د مستفتې يو اصل لرې ځکه چه عامه قاعده د فقه حنفې ده چه.

تصرف السلطان على الرعية منوط بالمصلحة (حموى على الاشباه و النظائر صـ۳۶۹ج۱) وهكذافى (شرح المجلة للاتاسى صـ۱۴۱ج۱) وليس للامام ان يخرج شيئا من يد احد الابحق ثابت معروف (ردالمحتار صـ۲۸۱ج۳) و هكذافى الحموى شرح الاشباه والنظائر صـ۳۷۳ج۱) قوله التصرف على الرعية الخ فيشمل السلطان ومن قلده السلطان بذاته اوبالواسطة ويشمل ايضًا الاوصياء ومتولى الاوقاف فان جميعهم تناط تصرفاتهم العائدة لمن هم تحت ولايتهم بالمصلحة اى بما فيه نفع يعود اليهم والافتصرفهم غير صحيح ولانافذ شرعا الخ (شرح المجلة للاتاسى صـ۱۴۱ج۱) وفعل الامام منوطٌ بالمصلحة و الظلم ليس بمصلحة (شرح المجلة للاتاسى صـ۱۴۳ج۱) وهكذافى (الفقه الاسلامى صد صـ۲۸۰ج۶).

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## هغه ښځه چې دپلار اومیره جایداد ورته پاته وي وفات سي ددې زامن په دواړو کي دمور حق غوښتلای سي کنه؟

**سوال**: و حضور ته د حاجی مولوی صاحب السلام علیکم .... اما بعد، د دوو ورونو ملک دی په ویش سره ګډ دی یو ورور ئی و فات شو بل ئی ژوندی دی د مړه وروه څخه یوه لور پاته ده ملک ئی سره مشترک او د ورور د مرګ وروسته ئی نور ملک رانیوی پسله خریداری دغه بل وورور ئی هم وفات سو د یوه ورور زوی پاته دی د بل ورور څخه لور پاته ده دغه ښځه را ولاړه سوه خپل د اکازوی ئی په نکاح کی په دغه ګډ ویش کی د دی د اکا زوی چه میړه ئی هم دی ده نور ملک رانیوی اوس دغه ښځه هم وفات سوله د دغی ښځی زامن د خپله پلاره څخه د خپلی مور حق غواړی نو دغه ښځه په دغه نوی ملک او خریداری چه اکا یی کړیده او میړه ئی کړیدٰه چه د اکا زوی ئی هم دی نو د دغی و فات سوی ښځی زامن په دغه نوی خریداری کی حق لری او کنه د ملک مالیات هم د دغی ښځی پر نامه تحویلیږی د پخوا لا بیا ترننه پوری؟

(عبدالباقی اغا)

**جواب**: دغه مړ ورور چه د زوی پلار کیږی او دغه د ښځی میړه چه کومی مځکی رانیولی دی دا د دوی شخصی ملک ګرځی او په مشترک مال نه ګډیږی نو که دغه ښځی خپل د اکا په شخصی مځکه کی حق نه درلودی نو په دغه رانیول سوی مځکه کی هم حق نلری او میړه خو یی ژوندی دی د هغه په مځکه کی خو بالکل حق نلری، یوازی په هغه صورت کی را نیول سوی ملک په مشترک ملک ګډیږی چه دغه مشتری او بایع دواړه په وقت کی درانیولو نسبة و خپلو شریکانو ته وکړی یعنی مشتری و وایی چه زه یی ده شریک دپاره رانیسم او بایع ووایی زه یی د هغه دپاره خرخوم او بیا یی د شریک خوښه هم سی په دغه صورت کی د استفتاء ښځه د خپل اکا په شخصی ملک کی هیڅ حق نلری ولی د هغه زوی ژوندی دی نو هرکله چه ښځی په هغه شخصی ملک کی حق نکی پیدا نو د ښځی زامن په طریق اولی حق نه پکښی لری.

وکـلٌ اجنـبـی فـی قـسط صـاحبه (تبییـن الحقـائق صـ۳۱۳ج۳) ر هکذافی (بدائع الصنائع صـ۶۵ج۶) (الفقه الاسلامی صـ۷۹۴ج۴) و اما حکم شراء الفضولی فجملة الکلام فیه ..... فان اضافه الی نفسه کان المشتری له سواء وجدت الاجازة من الذی اشتری له او لم توجد و ان اضاف العقد الی الذی اشتری له بان قال الفضولی للبائع ..... او قال البائع بعت هذا العبد من فلان بکذا وقبل المشتری الشراء منه لاجل فلان فانه یتوقف علی اجازة المشتری له (بدائع الصنائع صـ۱۵۰ج۵) او قال البائع للفضولی بعت منک هذا العبد بکذالفلان فقال اشتریت لا یتوقف و ینفذ الشراء علیه لانه لم توجد الاضافة الی فلان فی الایجاب و القبول و انما وجدت فی احدهما واحدهما شطر العقد فلا یتوقف (بدائع الصنائع صـ۱۵۰ج۵) و ما اشتراه احدهم لنفسه یکون له و یضمن حصة شرکائه من ثمنه اذا دفعه من المال الشترک (الفتاوی الکاملیة صـ۵۰) و المستحقون للترکة عشرة اصناف مرتبة ..... فیبدء بذی الفرضٌ ثم بالعصبة ..... ثم ذوی الارحام (الفتاوی الهندیة صـ۴۴۷ج۶)

والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## په پیچکارۍ (انجکشن) روژه ماتیږي کنه؟

**سوال** : ایا په پیچکاری سره روژه ماتیږی او کنه؟

(بینوا توجروا)

**جواب** : څرنګه چه پیچکاری په پخوا زمانه کی نوه فلهذا د متقدمینو علماؤو په کتابونو کی دا مسئله نده ذکر سوی او متأخرینو علماؤو خصوصًا د دیوبند علماؤو په دی مسئله کښی زیات تحقیق کړی دی او د ماهرینو ډاکترانو سره یی معلومات کړی دی او دی نیتجی ته رسیدلی دی چه په پیچکاری سره روژه نه ماتیږی او نه مکروه کیږی او پر دی باندی نی

ښه قوي دلائل ذکر کړيدي او پخپلو کتابونو کښې ئې ليکلي دي چه د نمونې په ډول به مونږ څوکتابه ته د دوی حواله ورکړو.

وهذايدل على ان الدواء الداخل فى الباطن بتوسط الحقن والابرة لا يفطر سواء ادخلت الابرة فى اللحم او العرق لان هذاالدواء وان وصل الى اللحم والعرق بالمنفذ لكنه يدخل الباطن بوساطة المسامات دون المنافذ الخ (منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذى تصنيف مولانا محمد فريد اكوړه خټک صـ۳۵ج۴) هكذافى (فتاوى دارالعلوم ديوبند صـ۴۰۸ج۶) (وامدادالفتاوى صـ۱۴۵ج۲) (واحسن الفتاوى صـ۴۳۲ج۴) (آلات جديدة صـ۱۵۳) (وجواهرالفقه صـ۳۷۹ج۱) (وبوادرالنوادرلمولانا اشرف على التهانوى صـ۳۸۹) (وجديد فقهى مسائل صـ۹۵) (امدادالمفتين صـ۴۸۹) (وكفايت المفتى صـ۲۳۸ج۴) (الفقه الاسلامى صـ۶۵۸ج۲).

## دلائـــــل

**اول دليل:** پر زخم باندې دوا اچول فقهاؤو مطلقًا مفسد ندی بللی بلکه زخم يې په جائفه يا آمه سره مقيد کړی دی ولی دغه ۲ قسمه زخمونه د جوف البطن يا جوف الدماغ سره منفذ لري او نور قسم زخمونه يې نلري کځه هم پر نورو زخمونو باندې په دوا اچولو سره اثر معدی يا دماغ ته رسيږي لکن چونکه منفذ نلري نو فساد نلري همدارنګه د پيچکاري دوا کـه څه هم اثر يې معدی يا دماغ ته رسيږي لکن چه منفذ نلري نو فساد نه راولي.

ولوداوى جائفة او آمة بدواء فوصل الى جوفه او دماغه افطر عند ابى حنيفة والذى يصل هو الرطب وقالا لا يفطر لعدم التيقن بالوصول (الهداية صـ۲۰۲ج۱) هكذافى (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۱۰۲ج۲ بيروت) وفيه فوصل الدواء حقيقة الى جوفه و دماغه الخ وهكذافى (الفتاوى الهندية صـ۲۰۴ج۱).

**( سوال )**: مراد د زخم څخه یوازې جائفة ندی بلکه هر هغه زخم دی چه نفوذ کولای سی را معدی یا دماغ ته که په لاسو کی وی دا زخم یا پښو یا بل ځای کی وی لکه صاحب د کفایة په زخم عام ذکر کړی او ویلی دی . وما وصل الی الجوف او الی الدماغ من غیر الخارق المعتادة نحو ان یصل من جراحة فانه یفطر عند ابی حنیفة ( کفایة مع فتح القدیر صـ۲۶۶ج۲ ) .

**( جواب )**: په ډیر تاکید باید ذکر کړو چه د دغه جراحة څهه چه په کفایة کښی ذکر شوی دی مراد آمة یا جائفة ده نه مطلق زخم ځکه چه هلته بیان د مخرق غیر معتاد دی او هغه زخم چه سواله جائفی او آمی څه وی دا ممکنه نده چه مخرق ولری تر معدی یا دماغ پوری او دفقهی په هیڅ کتاب کی ماندی لیدلی چه سواله جائفی او آمی څۀ پر نورو زخمونو په دوا اچولو سره دی فساد د روژی راغلی وی.

**دوهم دلیل**: د فقهاؤو په ډیرو عبارتو کی داسی مثالونه سته چه دواء جوف ته د بدن ورسیږی لکن چه هغه جوف د جوف سره د بطن یا دماغ منفذ ونلری او د دواء یا غذاء وصول حقیقة معدی یا دماغ ته ونسی نو حکم د فساد ئی نوی کړی لکه دا مثال یو څوک پخپل ذکر کی اوبه یا روغن توی کی نو که مثانی ته نه ورسیږی اتفاقا فساد د روژی نه راځی او که مثانی ته ورسیږی نو اختلاف دی امام صاحب ئی روژه صحیح بولی ولی د ده په نزد د مثانی او معدی تر مابین منفذ نسته او امام ابو یوسف صاحب ئی صحیح نه بولی ولی هغه منفذ ثابتوی او حال دا چه مثانه خپله هم یو جوف دی نو اعتبار منفذ لره دی.

و اذا أقطر فی احلیله لا یفسد صومه عند ابی حنیفة و محمد رحمهما الله تعالی کذافی المحیط سواء اقطر فیه الماء او الدهن وهذا الاختلاف فیما اذا اوصل المثانة و اما ذالم یصل بانکان فی قصبة الذکر بعد لا یفطر بالاجماع ( الفتاوی الهندیة صـ۲۰۴ج۱ ) هکذافی ( الهدایة صـ۲۰۲ج۱ ) یفید انه لا اخلاف لو اتفقوا علی تشریح هذا العضو فان قول ابی یوسف بالافساد انما هو بناء علی قیام المنفذ بین المثانة و الجوف فیصل الی الجوف ما یقطر فیها و قوله بعدمه بناء علی عدمه ( فتح القدیر صـ۲۶۷ج۲ ) .

(**بل مثال**) که یو سړی د انګور دانه په تار و تړی او تیره یی کړی او بیرته یی راوکاږی یا غوښې په دغه طریقه تیری کړی او بیرته یی راوکاږی روژه نه فاسدیږی یا اوبه په پزه کی واچوی او دماغ ته ونه رسیږی هم فساد نه راځی حال دا چه ستونی او پزه هم جوفونه دی.

وعلی هذالوابتلع عنبا مربوطا بخیط ثم اخرجه لایفسد صومه (خلاصه صـ ۲۶۰ ج ۱ ومثله فی العالمگیریة مطبوعة الهند صـ ۲۰۲) ومن ابتلع لحما مربوطا علی خیط ثم انتزعه من ساعته لایفسد وان ترکه فسد کذافی البدائع (آلات جدیدة صـ ۱۵۴) حتی لوبقی السعوط فی الانف ولم یصل الی الرأس لایفطر (ردالمحتار صـ ۱۰۲ ج ۲ بیروت).

نو د دی تحقیق څه دا معلومه سوه چه په پیچکاری سره هم روژه نه فاسدیږی ولی که رګ دی او که غوښه هغه منفذ د بطن یا دماغ سره نلری او د رګونو مجوف والی اعتبار نلری ځکه چه مثانه ستونی او پزه هم جوفونه دی او اعتبار نلری.

**د ریم دلیل**: کوم شی چه بدن ته د مسامات له طرفه داخلیږی اتفاقا روژه نه فاسدوی نو د پیچکاری په واسطه چه کم شی د بدن و مساماتو ته داخلیږی په هغه هم باید روژه نسی ماته.

ومایدخل من مسام البدن من الدهن لایفطر هکذافی شرح المجمع ومن اغتسل فی ماء وجد برده فی باطنه لایفطر (الفتاوی الهندیة صـ ۲۰۳ ج).

**ضروری تنبیه**: له دغه تیر حکم څه هم هغه پیچکاری مستثنی دی چه په نس کی لګیږی یا بل داسی ځای کی لګیږی چه دواء یی حقیقةً دماغ یا معدی ته رسیږی او په یوازی اثر رسیدلو سره روژه نه فاسدیږی او همدارنګه باید ووایو چه په پیچکاری سره د روژه نه ماتیدلو حکم باید دضرورت شدیدة په وقت کی ورکړه سی او که ضرورت شدیدة نوی نو باید دروځی پیچکاری نه ولګول سی په دی وجه چه د اختلاف څه خبروزی او عوام خلق په نورو امورو کی بی احتیاطی ونکړی یا هغه پیچکاری ونه لګوی چه دواء یی براه راست دماغ یا معدی ته ځی.

مالایفسد الصوم عند الحنیفة هو اربعة و عشرون شیئا ۱ الاکل اوالشرب اوالجماع ناسیا . . . . . ۱۶ الحقن فی العضل او تحت الجلد او فی الورید والاولی عند الامکان تاخیرها الی المساء اما الحقن الشرجبة فتفسد ( الفقه الاسلامی صـ۶۵۸ ج ۲ ) .

**فائدة** : بعضی کسانو څه کاغذونه را استولی وه او یو څه اعتراضونه یـی کړی وه چه د هغو خلاصه په دی ډول ده (۱) د ښځی د مثانی څه لار و کلیتین ( یعنی گردگان ) تـه ده نـه و معدی ته او (بدائع الصنائع ) کی راغلی دی ( لمثانتها منفذ افیصل الی الجوف صـ۹۳ ج ۲. نو معلومه دا سوه چه په جوف سره ئی تعبیرد کیلتیـن څه کړی دی او د دی څه دا ثابیتږی چه بطن یا جوف یوازی کیس الطعام ته نه ویل کیږی بلکه کلیتین کبد قلب او همدا راز نور ټوله په بطن کی داخل دی نو د پیچکاری دوا خو قلب ته رسیږی او قلب د بطن څه دی فلهذا روژه ماتوی تاسی باید لغوی تحقیق وکړی چه دا معلومه سی چه بطن یوازی کیس الطعام تـه نه ویل کیږی بلکه دا ټولو ته شامل دی.

(۲) ( ردالمحتار صـ۱۱۱ ج۲ ) راغلی دی الجائفة الطعنة التی بلغت الی الجوف او نفذ ته الخ د نفذ ته څه دا معلومیږی چه که زخم د لاس یا پښی وی او دواء نفوذ وکړی نو هم روژه ماتیږی نو مراد د زخم څه یوازی جائفة نده او د کفایة په عبارة کی جراحة عام راغلی دی او ویلی دی .نحو ان یصل من جراحة الخ ( کفایة صـ۲۶۷ ج ۲ ) . (۳) او همدارنگه فقهاؤو ویلی دی چه اعتبار وصول لره د دواء دی نه لوندوالی یا وچوالی د دواء تـه هر کله چه وصول د دواء راغلی په زخم کی د جائفة یا آمة فساد راځی نو په پیچکاری کی هم وصول د دواء راځی نو فساد راولی .واکثر مشایخنا علی ان العبرة بالوصول حتی اذا علم ان الدواء الیابس وصل الی جوفه فسد صومه و اذا علم ان الرطب لم یصل الی جوفه لا یفسد صومه عند الا ان ذکر الرطب والیابس بناء علی العادة الخ ( المبسوط للسرخسی صـ۶۸ ج ۳ ) .

دا وو د دوئ د اعتراضونو خلاصه او حاصل لکن د اول اعتراض په جواب کی باید ووایو که چیری ستاسو د دغه دلیل په وجه پښتورگی په بطن او جوف کی شامل وای نو د نارینه مثانه خو هم لارو پښتورگو ته لری نو هلته به هم اتفاقًا روژه ماتیدلای لکن هلته اختلاف په فساد کی ځکه راغلی وو چه داخبره معلومه نوه چه مثانه جوف ته منفذ لری که او د ښځی د مثانی په مسئله کی چه فساد راغی د هغه دا وجه نده چه پښتورگو ته لار لری بلکه هغه وجه دا ده چه هلته دوا اچول حکم د حقنی لری. واما فی قبلها فمفسد اجماعا لانه کالحقنة (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۱۰۱ج۲) او که چیری دا معترض پخپله لغوی تحقیق کړی وای نو دا به یی نوای لیکلی چه قلب په بطن کی شامل دی ځکه چه قلب په صدر کی دی. د فقهاؤو د عبارتونو څه دا معلومیږی چه مثانه پښتورگو ته هم همیشنی منفذ نلری لکه د دی عبارة څه د مجمع الانهر چه معلومیږی.

وهذا الاختلاف مبنی علی انه هل بین المثانة والجوف منفذ و الاظهر انه لا منفذ له و انما یجتمع البول فیها بالترشح کما یقول الاطباء (مجمع النهر صـ۲۴۵ج۱).

**د دوهم اعتراض جواب**: زما ذهن ته نه راځی چه دلاس یا پښی زخم دی هم منفذ ولری د جوف یا دماغ سره او نه دا ممکنه را ته معلومیږی او که عبارة ته ښه متوجه سو چه ضمیر د نفذت راجع طعنة ته دی او د (ه) ضمیر جوف ته او بیا فکر وکړو چه یو سړی په لاس یا پښه کی په چاړه ووهل سی نوا دا به څنگه معدی یا دماغ ته نفوذ وکړی او د نفوذ څه د دواء مراد حقیقة وصول دی نه وصول داثر لکه چه وایی.

فوصل الدواء حقیقة الی جوفه و دماغه (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۱۰۲ج۲ بیروت) (الدرالمنتقی بهامش مجمع الانهر صـ۲۴۱ج۱).

او د کفایی په عبارة کی هم مراد د جراحة څه جائفة یا آمة ده نه مطلق زخم لکه د اول دلیل په بیان کی چه تیره سوه.

**د دریم اعتراض جواب**: باید و وایو چه د پیچکاری دواء حقیقة وصول نکوی جوف یا دماغ ته ولی مونږ پخوا وویل چه منفذ نسته بلکه یوازی ئی اثر معدی یا دماغ ته رسیږی او د اثر

رسيده اعتبار نلري او علماؤ چه تحقيق د ډاکترانو څهٔ کړي دي نو هم داثابته سويده چه دواء وصول نکوی حقيقة بطن يا دماغ ته.

ڈاکٹروں سے تحقیق کرنی سے نیز تجربہ سے یہ بات ثابت ہوئی کہ انجکشن کی ذریعہ.... جوف دماغ یا جوف بطن میں دوانہیں پہنچی (امدادالفتاوی ص۱۴۵ج۲) (بوادرالنوادر ص۳۸۹) (آلات جديدة ص۱۵۳) والله تعالي ﷻ اعلم.

**دانقل دی دهغه مضمون اونظرچه بعضی کسانودارالافتاءته رااستولی وه**

گرانو ډاکټرانو مونږ علما، و تاسو محترمينو ته داسی پيشنهاد کوو:

**سوال**: دغه پيچکاری چه انسان ته ولگيږی وصول ئی و جوف بطن و دماغ ته کيږی که نه کيږی؟

**جواب**: وصول کيږی.

**سوال**: دغه دواء په خپله رسيږی وجوف ته که دواء د لگيدلو پر ځای پاتيږی اثرئی رسيږی؟

**جواب**: دوا پخپله زړه ته رسيږی بيا په ټوله بدن کی تجزيه کيږی.

**سوال**: دغه رگونه چه پيچکاری او سيرم پکښی لگيږی ټوله مجوف دی او که په مثال د سپنج دی؟

**جواب**: ټوله مجوف دی او والونه هم لری چه د دوا د رسيدلو کومک کوی.

**سوال**: په څو دقيقو يا ثانيو کی کی دغه دواءو نس ته رسيږی؟

**جواب**: د دوا، رسيدو و بدن او زړه ته فرق لری.او بعضی دوا په ۱ دقيقه بعضی په ۲ دقيقو او بعضی په ۵ دقيقو کی رسيږی.

**سوال**: وصول وتلل د دغه دواء په څه طريقه کيږي ايا داطور ځی لکه دواء ده سيرم په تار کی او که پر طور د جذب لکه په سپنج کی چه اوبه توی کړل سی ؟

**جواب**: لکه دواء چه د سيرم په تار کی ځی. په دغه شان وه زړه ته رسيږي

(دکتورمحمد قاسم)

## الفتوی فی الدواء التی تصل الی الجوف بواسطة الابرة

اول دا چه افتاء به موافق درسم المفتی سره وی .

ثـم اذالـم توجد الـروايـة ، عن عـلمائنـا ذوی الـدراية واختلـف الذين قـد تاخروا . يرجح الـذی علـيه الاكثر مثل الطحاوی وابی حفص الكبير . وابوی جعفر والليث الشهـير وحيـث لم توجـد لـهـؤ لاء . مقالـة واحـتيج للافتـاء فلينظر المفتی بجد واجتـهاد . وليخش بطش ربه يوم المعاد فليس يجسـر علی الاحـكام . سوی شقـی خاسر المـرام هذا فی من كان المفتی مجتهدا

وان لم يوجد منهم جواب البتة نصًا ينظر المفتی فيها نظر تامل واجتهاد وتد برليجد فيها مايقرب الی الخروج عن العهدة ولا يتكلم فيها جزا فالمنصبه وحرمته وليخش الله تعالی ويراقبه فانه امرعظيم لا يتجا سر عليه الا كل جاهل شقی ۱۲ هذا اذاكان المفتی مجتهداً ، وان كان المفتی مقلدا غير مجتهداً ، ليس له ان يفتی فيما لم يجد فيه نصًا عن احد ۱۲ شرح عقود رسم المفتی ( ص۲۶ ) هذا تصريح بعدم اهلية اهل زماننـا للحكم فی مثل المسئلة الموصوفة كالحكم بعدم الفطر بالابره ، الدكتورية ، ولانحتاج اليه ، ويجب علی المفتی ان ينظر الی اهل زمانه كما ذكر فی الكتُب عندابی يوسف و التحقيق ان المفتی فی الوقائع لابدله من ضرب اجتهاد و معرفة باحوال النـاس ، كمن اكل لحمابين اسنانه لم يفطر و ان كان كثيرًا يفطر و عنـد زفر يفطر فی الوجهين فينظر الی صاحب الواقعة ان كان ممن يعاف طبعه ذلک ويحكم بعدم

بالافطار اعنی بقول ابی یوسف و ان کان ممن لا اثر لذلک عنده اخذ
بقول زفر،رح ، اعنی الافطار شرح عقود رسم المفتی ( صـ۳۹ ) فالمناسب
لاهل زماننا الحکم بالافطار بالابرة الدکتوریة ، کما هو مذهبنا ، لا
نهم لا یبالون بامر الدین۔ هذا اذالم یکن تصریح۔ وقد صرح بهذه المسئلة
فی کتب المذهب کلها تصریحًا اظهر من الشمس۔ وفی دواء الجائفة
والامة اکثر المشائخ علی ان العبرة للوصول الی الجوف والدماغ لا لکونه
رطبًا او یا بسًا ، حتی اذاعلم الوصول یفطر ، هندیه۔ وبعضنا لا یعرف
الجائفه و یقول هی جراحة فی المعدة التی هی کیس الطعام ، فیقول
متی لم تصل الدواء الی کیس الطعام لا یفطر ، و ذلک لعدم تصفحهم
کتب اللغة ، وکتب المذهب ، و قد ذکر فی ( ردالمحتار صـ۱۱۱ج۲)
الجائفة الطعنة التی بلغت الی الجوف او نفذته ، و قد ذکر (المنجد
ص۴۲ ) معنی الجوف ، الجوف بطن کل شئ والبطن خلاف الظهر ، وفی
( المعجم الوسیط صـ۱۴۶ ) الجوف من کل شی باطنه الذی یقبل الشغل
والفراغ ، وفی ( فرهنگ عمید صـ۸۴۱ج۱ ) جوف شکم ، اندرون چیزی ،
داخل چیزی ، ولنا شاهد عدل علی ان المراد من الوصول الی الجوف ، هو
الجوف المفسر بالبطن ، لا المعدة کما قال البعض ، وهو ان ماذکر فی
کتب المذهب ، و اما الافطار فی قبل المرأة فقد قال مشائخنا انه یفسد
صومها بالاجماع لان لمثانتها منفذا فیصل الی الجوف (بدائع صـ۹۳ج۲)
ولا سبیل من مثانتها الا الی الکلیتین یعنی گردوگان ، وقد عد
علمائنا الکلیتین من الجوف و ما هذا الاالمفسر بالبطن ، والالما حکمو
ابالفطر ، و هذاینادی باعلی نداء ان القلب و الکبد و الکلیتین و کل
ماهو فی البطن من الجوف فمتی وصل الدواء الی واحد منهم کان مفطرًا
، کما لا یخفی ، وایضا یعلم من قوله ( اونفذته ) ان جراحة الیدوالرجل
ان نفذت الی الجوف فوصل الدواء منه الی الجوف کان مفطرًا ، لا کما
قال البعض ان المعتبرة فی الافطار هی الجائفه فقط ولنا علی هذا شاهد
عدل ، وهو ماذکر فی (الکفایة علی هامش فتح القدیر صـ۲۶۷ج۲) وما

وصل الى الجوف او الى الدماغ من غير الخارق المعتادة نحو ان يصل من جراحة فانه يفطر عند أبی حنیفه رحمة الله تعالی علیه و قد ذکرنا ان اکثر المشائخ على ان العبرة للوصول فانه يعتبر الوصول لا المسلک و یوید ذالک مافی(المبسوط جـ۴صـ۶۸) فا ما الجائفه والامة اذا د اوا هما بدواء یا بس لم یفطره و ان داواهما بدواء رطب فسد صومه فی قول ابی حنیفة رحمة الله تعالى علیه ولم يفسد فی قولهما والجائفة اسم لجراحة وصلت الي الجوف او نفذته کما فی ردالمحتار و الآمه اسم لجراحة وصلت الى الدماغ فهما يعتبر ان الوصول الى الباطن من مسلک هو خلقة فی البدن لان المفسد للصوم ما ينعدم به الامساک المامور به و انما یومر بالامساک لاجل الصوم من مسلک هو خلقة دون الجراحة العارضة و ابو حنيفة رحمة الله تعالى علیه يقول المفسد للصوم وصول المفطر الى الباطن فالعبرة للواصل لا للمسلک و قد تحقق الوصول ههنا و فی ظاهر الرواية فرق بين الدواء الرطب واليابس و اكثر مشائخنا على ان العبرة بالوصول حتى اذ اعلم ان الدواء اليابس وصل الى جوفه فسد صومه ، واذ اعلم ان الرطب واليابس و اكثر مشائخنا على ان العبرة بالوصول حتى اذ اعلم ان الدواء اليابس وصل الى جوفه فسد صومه ، و اذا علم ان الرطب لم يصل الى جوفه لا يفسد صومه عنده الا ان ذكر الرطب واليابس بناء على العادة ، فاليابس انما يستعمل فى الجراحة لاستمساک رأسها به فلا يتعدى الى الباطن و الرطب يصل الى الباطن عادة فلهذا فرق بينهما ، و الدليل على ان العبرة لما قلنا ان اليابس يترطب برطوبة الجراحة

(المبسوط للسرخسی صـ۶۸ج۴).

نظر په قول ددو شاهدانو ډاکترانو مسلمانانو چی پچکاری وصول کوی و معدی ته نو روژه ماتیږی.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که څوک کسان ووايي (پرموږخپلې ماينې طلاقې دي)څه حکم دي؟

**سوال:** يو څوکسان ووايي پر مونږ خپلې ماينې طلاقې دي نو هغه ښځې چه قبل الدخول وې او هغه ښځې چه بعدالدخول وې فرق لرې کنه يعنې هغه ښځې چه قبل الدخول وې هغه هم تحليل غواړي کنه ؟ (رياست امربالمعروف و نهی عن المنکر)

**جواب:** کله چه يو څوک خپلې ښځې ته ۳ طلاقه ورکړي په لفظ واحد سره نو هغه ښځه که مدخول بها وي او که نه وي حرمت غليظة واقع کيږي او تحليل ته په زوج ثاني سره ضرورت لري په دې حکم کې د مدخول بها او غير مدخول بها هيڅ فرق نشته.

قال (ای المحقق ابن الهمام) فی اخر باب الرجعة لا فرق فی ذلک ای اشتراط المحلل بين کون المطلقة مدخولا بها او لا لصريح اطلاق النص و قد وقع فی بعض الکتب ان غير المدخول بها تحل بلا زوج و هو زلة عظيمة مصادمة للنص و الاجماع لا يحل لمسلم رآه ان ينقله فضلا عن ان يعتبره.... ولا يخفی ان مثله مما لا يسوغ الاجتهاد فيه لفوات شرطه من عدم مخالفة الکتاب والاجماع نعوذبالله من الزيغ والضلال والامر فيه من ضروريات الدين لايبعدا کفار مخالفه( ردالمحتار صـ۴۵۵ج۲ بيروت) وما نقل عن المشکلات انه (ای طلاق غير المدخول بها ثلاثا) لا يقع لنزول الاية فی الموطوءة باطل محض منشاه الغفلة( الدرالمنتقی بهامش مجمع الانهر صـ۳۹۹ج۱) هکذافی (مجمع الانهر صـ۴۰۰ج۱).

خو د مدخول بها او غير مدخول بها د طلاق فرق دا دی چه په مدخول بها کی که په يو لفظ ۳ طلاقه ورکی او که په متعدد والفاظو حرمت غليظة واقع کيږي او په غير مدخول بها کی که په يو لفظ ۳ طلاقه ورکی حرمت غليظة راځی او که متعدد دالفاظ وی نو اول طلاق واقع کيږي نه دوهم او دريم لکه طالق طالق طالق يا نور داسی الفاظ ـ وان فرق .... بانت بالاولی ... ولم تقع الثانية بخلاف الموطوءة حيث يقع الکل (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۴۵۵ج۲ بيروت) هکذافی (مجمع الانهر صـ۴۰۰ج۱) (الدرالمنتقی صـ۴۰۰ج۱)

بسم الله الرحمن الرحیم

## دېردي سړي په لاس دځواني ښځې علاج

**سوال** : محترما دغسی د واوی چه د آینده احتمالی امراضو د دفعی لپاره استعمالیږی مثلاً لکه واکسین و ځوانو ښځو ته د اجنبی په لاس شرعًا جواز لری کنه ؟

﴿بینوا توجروا﴾

**جواب** : د دی تر مخه چه د استفتاء لپاره جواب ذکر کړو دری ۳ خبری باید ذکر کړو:

(**اول**) : دا چه دوا تداوی په حلال سره پر شرعی طریقه د مرض تر مخه هم جائز ده او هم ثابته ده.

(**دوهم**) : دا چه د أجنبی ډاکتر پـه لاس دَ أجنبیة تـداوی پـه وخت کی د ضرورت پـه شرعی طریقه سره او په شرط د عدم خلوة جائزه ده.

(**دریم**) : هغه شی چه شائع او غالب الوقوع وی هغه په حکم کی د متحقق او واقع سوی دی او همدارنگه حاجة کله کله پر منزلة د ضرورت وی چه د دی ټولو خبرو لپاره ډیر شواهد په کتابونو کی ذکر سوی دی۔

حاصل دفتوی دا دی چه هغه امراض چه غالب الوقوع وی د هغو د دفع لپاره واکسین لگول د ښځی په لاس کی د أجنبی ډاکتر په واسطه هلته جائز دی چه خلوت به نه وی او ښځه به بی ستره نوی او داسی ښځه ډاکتره به نه وی چه دا عمل اجراء کړی او ډاکتر به مسلمان او با احتیاطه وی فقهاء وایی چه دغه شرائط که موجود سی نو احتقان لا هم جائز دی لپاره د دفع د وقوع دسِلِ د مرض نو واکسین لگول په بازو کی په طریق اولی جائز دی.

ویجوز الحقنـة للتداوی للمـرأة وغیرهـا وکـذا الحقنـة لاجل الهـزال لان الهزال اذا فحش یفضی الی السل ویجوز للرجل النظر الی فرج الرجل للحقنـة (الخانیة بهامش الهندیة صـ۴۰۳ج۳) هکذافی (الهندیة صـ۳۳۰ج۵) سئلت عما اعتاده النـاس فـی زماننـا مـن تلقیح الصبیان وحجـامتهم لـدفع ضرر الداء

المعروف بالجدری هل هو جائز شرعا فالجواب نعم هو جائز شرعًا وفيها ايضًا لو امر بذلک مولانا السلطان ايده الله تعالى لاجل المصلحة العامة هل يكون امره مشروعًا فاجاب نعم يكون مشروعا (الفتاوى الكاملية صـ۲۶۲) لا باس بقطع العضوان وقعت فيه الاكلة لئلا تسرى (الهندية صـ۳۶۰ج۵) ولو خافت الافتصاد من المرءة فللاجنبى ان يفصدها كذافى القنية (الهندية صـ۳۳۰ج۵) قال فى الجوهرة اذا كان المرضُ فى سائر بدنها غير الفرج يجوز النظر اليه عند الدواء لانه موضع ضرورة و انكان فى موضع الفرج فينبغى ان يعلم امرأة تداويها (ردالمحتار صـ۲۳۷ج۵ بيروت) واذا جاز الاحتقان جاز للحاقن النظر الى موضعه (عناية شرح الهداية بهامش فتح القدير صـ۴۶۲ج۸) (ردالمحتار صـ۲۳۷ج۵ بيروت) وعن ابى يوسف انه يباح النظر الى ذراعها ايضًا لانه قد يبد و منها عادة.

(الهداية مع فتح القدير صـ۴۶۰) (مجمع الانهر صـ۵۴۰ج۲) (ردالمحتار صـ۲۳۶ج۵ بيروت) (هندية صـ۳۲۹ج۵) (امدادالفتاوى صـ۱۹۹ج۴) وما حل نظره مما مر من ذكر أوانثى حل لمسه اذا امن الشهوة على نفسه و عليها (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۲۳۵ج۵ بيروت)

قبل ابتدائی مرض بطور حفظ ماتقدم تدبیر تداوی جائز ہیں یا نہیں

الجواب تداوی بالمباح قبل سے بھی جائز ہیں (امدادالفتاوى صـ۲۸۴ج۴) وفى المعالجة للطبيب يجب انيكون النظر الى موضع المرضْ من المرأة للضرورة مع وجود مانع الخلوة كمحرم اوزوج اوامرأة ثقة وبشرط عدم وجودإمرأة تحسن ذلک لان نظر الجنس الى جنسه اخف واسهل عاقبة والايكون الطبيب غيرامين مع وجود امين والايكون ذميامع وجودمسلم اوذمية مع وجودمسلمة (الفقه الاسلامى صـ۵۶۳ج۳) الحاجة تنزل منزلة الضرورة عامة اوخاصة (المجلة الـ۳۲) العبرة للغالب الشائع لاللنادر (المجلة الـ۴۲) والله تعالىٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## كه سركاري سړى نظر پرځان ومني بيائې وس ونه لري امير ئې له بيت المال څخه وركولاى سي كنه؟

**سوال**: محترم عـالی قـدر امیرالمو منیـن السلام علیکم ورحمـة الله وبرکاتـهٔ وروسـته تـر سلامه. عرض لرم چه زه د ملاامیرخان انډیوال یم په شبرغان کی اسیر وم او بیا را خلاص شو وما شپږ پسونه نذر ایښی وه حالا ۵۳۰۰ کلداری لرم په هغو باندی شپږ پسونه نه کیږی بقایه کلداری که چیری جواز لری ستا و درانه حضورته امید لرم چه رائی کړی
(ملاامان الله اخند)

**ملاحظـه**: تـه د علمـاؤ څخـه پوښـتنه وکـړه بعـضی نذرونـه د قـسم پـه فـدیه سـره خلاصـیږی د ثاقب صاحب سره خـبره وکـړه؟ (امیرالمـؤمـنیـن)

**جواب**: كه چيرى دغه مستفتي واقعًا ۵۳۰۰ کالداری لری نوری پیسی نه لری نه موټر نه مځکه نه یی د بل چاسره حقوق وی نو دغه کالدای دی خیرات کی یا دی هغه اندازه پسونه په رانیسی چه په کیږی ده نورو څه یی شرعًا ذمه فارغه ده او سوال کول لپاره ده آداءد نذر ورته حرام دی او که یی نوری پیسی درلودی یا یی مځکه یا موټر یا نور قسم اموال درلوده نو بیا آداءد نذر د خپل مال څه باندی واجبه ده.

نذران يتصدق بالف من ماله وهو يملك دونهما لزمه. مايملك منهـا. فقط. هو الختارلانه فيما لم يملك لم يوجد النـذرفى الملک ولامضافاالى سببه فلم يصح (الدرالمختار) وانكـان عنـده عـروض اوخـادم يسـاوى مائـة فانـه يبيـع ويـتصدق و انكان يساوى عشرة يتصدق بعشرة وان لم يكن شئ فلاشئى عليه كمن اوجب على نفسه الـف حجـة يلزمـه بقـدرمـاعـاش فـى كـل سـنة حجـة (ردالمحتارص۷۷ج۳) هكذافى (التتارخانية ص۶۴۲ج۵) (فتاوى دارالعلوم ديوبنـد ص۱۳۷ج۱۲) وفيه (پس اس نابینا کو لازم نہیں ہیں کہ بھیک مانگ کرنذرپوری کریں اور سوال حرام ہیں) فقط.

او هر چه دا خبره ده چه بعضی نذرونه د قسم په فدیه سره خلاصیږی. دا خبره د نذر دالفاظو سره تعلق لری. او دلته په لفاظو کښی څه خبره نشته. والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که غل اودغلامال دواړه ونیول سي غل اقرار هم وکړي خو مال مالک ته نه سپارل سوی اومالک دعوی نه وي کړي حد جاري کیږي کنه!

**سوال**: بمقام محترم عالی تمیز مقیم ولایت قندهار قابل توجه دارالافتاء مرکزی کندهار محترما در ولایت زابل یکنفر سارق با استفاده از تاریکی شب جنیتر برق را بسرقت برده که درنتیجه از طرف طلاب کرام بالفعل به معیت مسروقه دستگیر گردید چون جریان بعد از تحقیق بمحکمه رجعت داده شده باوجودیکه سارق مقر بسرقه میباشد مگر به نسبت اینکه اصل مسروقه از طرف محکمه بمالک تفویض و تسلیمی نگردیده سارق راقابل حدندانسته چون درین موضوع از مولوی عبدالغفور نماینده زابل در شورای قندهار و مولوی محمد علی که شخص متدین وعالم نقه بوده معلومات نموده علماء فوق بقضات محکمه تحریر داشته که در همچو مسائل دقیق به نسبت کثرت کتب و کثرت علماء ازدارالافتاء قندهار معلومات مطالبه شود تا در مورد مسئله سرقه از جمیع وجوه تفصیلات بدهند چه قضات محترم محکمه طلاب کرام ازاعوان محکمه محسوب نمیکند۔بناء مراتب عرض گردید البته در مورد سرقت بروت کتب معتبر مفصلا موضوع راتحت غور و مداقه قرارگرفته وازنتایج او هرچه زودتر مقام ولایت زابل را مسبوق و مطلع فرمائید؟ الحاج مولوی عبدالحکیم (شرعی) والی زابل ﴾

**جواب**: لپاره د جاری کولو د حدّ د سرقې پر نورو شروطو سر بیره یو دا شرط هم دی چه دغه مسروقه مال به د دعوی څخه د مالک تر مخه مالک ته نه وی سپارل سوی۔او دا شرط هم دی چه مالک به دعوی د مال په محکمه کی کوی او طلب د خپل مال به کوی بیا به یی اثبات په اقرار یا شاهدانو کوی۔او که چیری مالک محکمی ته رانسی او دعوی ونکی د خپل مال یوازی د سارق په اقرار یا په شاهدی د شاهدانو حد نسی جاری کیدلای حتی که سارق حکومت و نیسی او شاهدان شاهدی ادا کړی چه د فلانی مال یی غلا کړی دی او فلانی غائب وی حاضر نه وی په دی صورت کی هم حد نسی جاری کیدلای ۔او که چیری مال د مالک ته سپارل سوی وی وروسته حاضریده د مالک و محکمی ته او طلب کول د جاری کولو د حد هم صحت نه لری۔ولی مال چه و ده ته وسپارل سو نو بیا دی دعوی نسی کولای د مال او مراد د مالک څخه په دی ځای کی مسروق منه دی.

من سرق سرقة وردّها على المالک قبل الارتفاع الى الحاکم لم يقطع (الفتاوی الهندية صـ۱۸۴ج۲) (الدرالمختار وردالمحتار صـ۲۲۹ج۳) (فتح القدير صـ۱۶۲ج۵) (البحرالرائق صـ۶۳ج۵) (الفقه الاسلامی صـ۱۲۶ج۶)

قوله (وطلب المسروق منه شرط القطع) ای وطلبه المال فلا قطع بدونه لان الخصومة شرط لظهورها أطلقه فشمل ما اذا أقر او أقيمت عليه البينة لاحتمال ان يقرله بالملک فيسقط القطع فلا بد من حضوره عند الاداء والقطع لتنتفی تلک الشبهة وبما ذکرناه ظهران مافی التبيين معزيا الى البدائع من انه اذا أقر انه سرق من فلان الغائب قطع استحسانا ولا ينتظر حضور الغائب وتصديقه فانما هو رواية عن ابی يوسف وليست هذه عبارة البدائع فان عبارته قال ابو حنيفة ومحمد الدعوی فی الاقرار شرط حتی لو اقرالسارق انه سرق مال فلان الغائب لم يقطع مالم يحضر المسروق منه ويخاصم عندهما وقال ابو يوسف الدعوی فی الاقرار ليست بشرط الی آخره (البحرالرائق صـ۶۲ج۵) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار صـ۲۲۷ج۳) (فتح القدير صـ۱۵۸ج۵) ولا يقطع السارق الّا ان يحضر المسروق منه فيطالب بالسرقة وقال ابو يوسف رحمة الله تعالی عليه اقطعه والصحيح ظاهر الرواية کذافی زاد الفقهاء (الفتاوی الهندية صـ۱۸۳ج۲) ومنها يَخُصُّ اَرْبَابَ الْاَمْوَالِ وَالْحُقُوقِ وهو الخصومة والدعوی ممن له يد صحيحة حتی لوشهدوا انه سرق من فلان الغائب لم تقبل شهادتهم مالم يحضر المسروق منه ويخاصم لما ذکرنا ان کون المسروق ملکًا لغير السارق شرط لکون الفعل سرقة ولا يظهر ذالک الّا بالخصومة فاذالم توجد الخصومة لم تقبل شهادتهم ولکن يحبس السارق لانّ اخبارهم أورث تهمة ويجوز الحبس بالتهمة لما روی ان رسول الله ﷺ حبس رجلا بالتهمة (بدائع الصنائع صـ۸۱ج۷) فقد صرح بانه لا يملک طلب القطع الاان يقال انه لا يملک طلب القطع مجردا عن طلب المال والظاهر ان الشرط انما هو طلب المال ويشترط حضرته عند القطع لا

طلبه القطع اذهو حق الله تعالى ﷻ فلا يتوقف على طلب العبد ﴿البحرالرائق صـ۶۳ج ۵﴾ ﴿ردالمحتار صـ۲۲۸ج ۳﴾.

نو د دې ټولو عبارتو څخه دا معلومه سوه چه مسروق منه ته که مال رسيدلی وو تر دعوی او طلب د مخه نو بيا حد نه جاري کيږي. او که محکمی ته راغلی او طلب د مال يی وکړی او اثبات د دعوی يی وکړی نو بيا حد جاري کيدلای سی په دی شرط چه په وخت کی د اجراء د حد به هم مسروق منه حاضر وی.

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

**که څوک دکان واخلي پيسی ورکړي تسليم ئې کړي پربل چائې خرڅ کړي بياهغه پښيمانه سي بياکولای سي چې دی هم له اول مالک سره پښيمانه سي**

(**اول سوال**) سعيد احمد (۶۸) زره رياله د عبدالرحمن نامی قرض داره وؤ.

(**دوهم سوال**) دغه قرضداره چی سعيد احمد نوميږی خپل دوه دکانه ئی په دوه نيم سوه لکه په بيعه د سرقلفی ورکړل.

(**دريم سوال**) عبدالرحمن خپل اته شپيته زره رياله په کلدارو ئی تسعير کړی سعيد احمد نامی خپلی افغانی په کالدارو واړولی په دی وخت کی د سيد احمد نامی تقريبًا (۱۴) زره کالداری ورغلی چی عبدالرحمن ورکړی.

(**څلورم سوال**) عبدالرحمن نامی خپل دکانونه د تسليمی د خط سره واخيستل تقريبًا دری مياشتی بعد دوکانونه ئی پر بل چا خرڅ کړل په هر علت چی وه هغه سړی دکانونه بيرته عبدالرحمن ته پريښودل. پسله دی عبدالرحمن دکانونه و خپل اول مالک سعيد احمد ته په رضا د جانبينو ورمسترد کړل عبدالرحمن ادعا د خپلو پيسو وکړه اوس تقريبًا دوه دری کاله تير سوی دي اوس عبدالرحمن نامی د اته شپيته زره رياله مستحق دی او که د کالدارو چی ريال په تبادله سوی دی او که د هغه افغانيو چی دوه نيم سوه لکه دي چه هغه دوکانونه ئی په رانيولی وه؟

﴿المستفتی آغا محمد﴾

**جواب**: عبدالرحمن نامی نه د اته شپیته زره ریاله مستحق دی نه د کالدارو نه د افغانیو بلکه هغه دو کانو نه د ده کیږی او په هغو کی ده ته خپل قرض رسیدلی دی دی نسی کولای چه دکانونه سعید احمد ته ورمسترد کړی البته که بیع وکړی د دغه دکانو د سید احمد سره (نوی بیع) نو صحت لری .او دا اقالة ځکه صحت نلری چه عبدالرحمن دا دکانونه پر دریم سړی خرڅ کړیدی او د ده د ملک څه وتلی دي نو د دی وروسته حق د اقالی قطعًا نه لری لکه خیارعیب چه په بیع سره د مبیعی باطلیږی او دا قانون د فقهاؤو دی چه هرشی چه خیارعیب باطلوی نو اقاله هم باطلوی .خیار عیب په بیع سره د مبیعی باطلیدی نو اقالة هم په بیع د مبیعی باطلیږی.

وزادصاحب المنح اذا باع المشتری المبیع من آخر ثم تقایلا ثم اطلع علی عیب کان فی یدالبائع فاراد ان یرده علی البایع لیس له ذلک لانه بیع فی حقه کانه اشتراه من المشتری منه الخ (مجمع الانهر صـ۷۲ج۲) وهکذافی (شرح المجلة للاتاسی صـ۷۲ج۲) مایمنع الرد بالعیب یمنع الاقالة (فتح القدیر صـ۱۲۱ج۶) وهکذافی (ردالمحتار صـ۱۶۷ج۴) (ویمنع صحتها هلاک المبیع) ولوحکما کاباق (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۱۶۷ج۴) وهکذافی (مجمع النهر صـ۷۳ج۲)

او بیع د مبیعی په هلاک حکمی کی داخل دی لکه چه وایي:
فلا تصح بعد هلاکه ولوحکما علی الظاهر بان باعه ثم شراه الخ (الدرالمختار) قوله (بان باعه ثم شراه) من صورالهلاک حکما لان تبدل الملک کتبدل العین ولذا یمتنع بذلک رده بالعیب والرجوع فی الهبة (ردالمحتار صـ۱۸۶ج۴).

بسم الله الرحمن الرحيم

## كه پردې صغيره نجلۍ دخپلې لور په نوم په نكاح چاته وركړي اوبيانجلۍ غټه سي انكار كوي اوپلار هم اقرار وكړي چې مادروغ ويل زما لور نده څه حكم لري؟

**سوال**: رياست محترم دارالافتاء السلام عليكم ورحمة الله وبركاته.

اسامی فاضل نام علیه نسیمه گل نامه ادعائ دختری نموده وبرای محمد اکبر نام بولایت ابوت درزمان خوردی به نکاح داده است موضوع در محاکم ثلاثة نظر به ادعاء واقرار فاضل نام به مفاد محمداکبر انجام شد وموضوع بمحکمه اختصاصی راجع شددر محکمه اختصاصی فاضل نام اقرار کرده است، که نسیمه گل دخترم نیست وزیارت شهزاده گان هرات دریافت، ازطرف مجنون ملنگ زیارت برای زوجه ام ملکه نامه داده شده است ملکه نامه نیز مدعی است که مسمات نسیمه گل دختر محمد فاضل نیست، ومحمد فاضل در محکمه اختصاصی اظهار مینمایند که من ومحمداکبر موافقه نموده بودم که برایم زن جوان بگیرند ومن فاضل بالای نسیمه گل ادعائ ابوت مینمائم تا هردو صاحب زن جوان شویم، حال از ترس خدا وروز محشر اظهار میداریم که نسیمه گل دخترم نیست همه کارها بدروغ کرده ایم، هر مجازاتیکه شریعت لازم میداند برایم تعین مجازات شوم، وموضوع در کمیسون محکمه اختصاصی راجع به اظهارات قبلی محمد فاضل طوری فیصله میگردد که در مقابل محمد فاضل نام شخص دیگری ادعای ابوت نکرده، محمد فاضل پدر نسیمه گل شمرده شده باز هم حکم به مفاد محمداکبر صورت گرفته درحالیکه محمد فاضل از انکار وترک دعوی کرده است ومجازات برای خود خواهان است از جانب دیگرمقام أمارت اسلامی برای روشن شدن موضوع هیئت خاص بمصارف گزاف بولایت هرات زیارت شهزاده گان اعزام کرده مجنون ملنگ ومردم آنجا اظهارات داده اند که نسیمه گل واقعًا دزیارت شهزادگان دریافت وبرای ملکه نامه داده شده است، همجوار نیز جریان را واضح کرده است نسیمه گل بندی است محمد اکبر آزاد ملکه ونسیمه گل مکررًا عارضین خواهان آزادی هستند بنابرآن ریاست دارالافتاء جامعًا فتوی دهند باوجود انکار وترک دعوی فاضل نام نسیمه گل زوجه محمد اکبر است ویا ازاد ومحمداکبر خواهان تسلیمی زن یعنی نسیمه گل است

مراتب بشما ارقام شد تا بعد از فتوی کامل شما در مورد تجویز اتخاذ گردد۔ ونیز واضح فرمایند که ترک دعوی محمد فاضل در محکمه انحصاصی قابل اعتبار بوده دیانه راجع به مجازات انها چه اقدام شود ؟

**جــواب** : طبق تصریحات فقهاء کرام اینجا دو حکم است یک حکم قضائی ودیگر حکم دیانتی حکم قضائی درین مسئله اینست که فاضل نام که یکبار ادعاء پدرت ونسب نسیمه گل کرده است ادعاء او صحیح است زیراکه در مقابل او دیگر کس ادعاء نکرده است ونسب نسیمه گل از اوثابت است واو ولی نکاح نسیمه گل میباشد ورجوع محمد فاضل از ادعاء او درباره نسب صحیح نمیشود وباید قاضی به نسیمه گل بگوید که نفس خودرا به محمداکبر تسلیم نماید وتزویج نسیمه گل در حالت صغر با محمداکبر زواج صحیح میباشد حکم دیانتی اینست که محمدفاضل پدر او حقیقةً نمیباشد وقضاء قاضی درین بارهٔ اثبات نسب او درحقیقت نمیکند زیراکه قضاء قاضی درنسب ظاهراً نافذ است اما باطنا نافذ نیست بالاجماع پس او ولی نکاح نسیمه گل در حالت صغر نمیباشد وتا وقتیکه که رضاء کامل نسیمه گل حاصل شده نباشد نکاح او با محمداکبر یا دیگر کس صحیح نمیشود واگر چه قاضی اورا به محمداکبر تسلیم نماید اما در حقیقت نسیمه گل بر محمداکبر حرام میباشد زیراکه نکاح قبلی صحیح نشده است و به نکاح دیگر نسیمه گل راضی نیست پس اولی وانسب اینست که یک عالم دین به حکمة وموعظة حسنة محمداکبر را قانع کند و این حکم دیانتی را با و برساند وازعذاب خدا وروز قیامت وخطر عظیم این امر اورا خبرساند تا ترک دعوی نکاح نسیمه گل بکند.

ويثبت نسبه من واحد بمجرد دعواه ولو غير الملتقط (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۳۴۳ج۳) (الفتاوى الهندية صـ۲۸۶ج۲) اثارالنسب...... ترتب عليه جميع نتائج القرابة فيمنع الزواج في الدرجات الممنوعة و تستحق به نفقة القرابة ويستحق به الارث (الفقه الاسلامي صـ۶۸۹ج۷) فاذا استوفى الاقرار بالبنوة او الابوة هذه الشروط صح و ثبت به نسب المقرله من المقر و ترتب عليه الارث الشرعي و اذاصح الاقرار لا يملك المقر الرجوع فيه بعدئذ لان النسب اذا ثبت لا يبطل بالرجوع (الفقه الاسلامي صـ۷۲۶۷ج۱۰ط جديد) وينفذ ظاهر الان القاضي يأمر المرأة بقوله لها سلمي نفسك لهذالرجل لانه زوجك و تلزم

نفـقة تـلک المـرأة علی ذلـک الرجـل ﴿ درر الحکـام صـ٦٥٩ج ٤ ﴾ کـذلک لو ادعی رجـل علـی امـرأة بانهـا زوجتـه المنـکوحـة واثبت دعـواه بشـهود زور و استحصل حـکما علیها بالزوجیة فـلا یحل للرجل الاستمتاع بتلک المرأة کما انه لا یحل للزوجـة تـمکینـه مـن ذلـک ﴿ درر الحکـام صـ٦٦١ج ٤ ﴾ کـذلک النـسب لا ینفـذ الحکـم باطنـا بالاجمـاع ﴿ درر الحکـام صــ٦٦٠ج ٤ ﴾ و ﴿ رد المحتـار صـ٣٧١ج ٤ ﴾ المراد بالنفاذ ظاهرا ان یسلم القاضی المرأة الی الرجل و یقول سلمی نفسک الیه فانه زوجک و یقضی بالنفقة و القسم و بالنفاذ باطنـا ان یحل له و طؤها و یحل لهـا التمکیـن فیمـا بینهـا و بیـن الله تعـالی ﷻ ﴿ رد المحتـار صــ٣٧٠ج ٤ ﴾ و ﴿ درر الحکام شرح غرر الاحکام صـ٤٠٩ج ٢ ﴾ ولو استأذنها فی معین فردت ثم زوجها منه فسکتت صح فی الاصح بخلاف مالو بلغها فردت ثم قالت رضیت لم یجز لبطلانه بالرد الخ ﴿ رد المحتار صـ٣٢٥ج ٢ ﴾ لان نفاذ التزویج کان موقوفا علی الاجازة ﴿ رد المحتار صـ٣٢٥ج ٢ ﴾ و لا ینفذ للملتقط علیه نکاح و بیع الخ الدر المختار قوله و لا ینفذ الخ لانه یعتمد الولایة من القرابة و الملک و السلطنة ولا وجود لو احد منها نهر ﴿ رد المحتار صـ٣٤٧ج ٣ ﴾

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## کوم مالونه چې له لوټمارانو څخه ونيول سي خپلو مالکانو ته ورکول کيږي کنه؟

**سوال**: و حضورته د محترم رئيس صاحب دارالافتاء السلام عليکم ورحمة الله وبرکاتهٔ.

محترما: عرض دا دی چه په تاريخ ۱۳۷۶/۱/۰۱۱ محترم جناب عاليقدر امير المؤمنين صاحب دغه د ترياکو موضوع تاسو ته سپارلی وه څکه چه په دغه تاريخ موږ ته د گمرک رئيس ليکلی راکړی دي چه ستاسو موضوع په دارالافتاء پوری اړه لری نو هيله کوم چه دغه کار چه تاسو اول هم فتوی زمونږ د حقداری او استحقاق په هکله صادره کړي وه نو بايد چه زمونږ حق را تسليم کړی مونږ بيچارگان يو ډير مشکلات مه راکوی؟

**(حاجی اختر محمد)**

**جواب**: حکم د هغو مالو چه قطاع الطريق او بغاة او غاصبانو د خلقو څخه په ظلم او غصب اخستی وی وروسته د اهل عدلو په لاس ورسی دا دی که چيری مالکان د دغه مالو معلوم سی په شاهدانو ـ يا قسم سره مالکانو ته به تسليميږی او که ئی مالکان معلوم نسوه نو بيت المال ته به داخليږی چونکه ترياک هم مال متقوم دی بيع او شراء يی صحيح ده په دواء کی يی استعمال ډير دی حتی که يو سړی يی په خوراک عادی وي او په نه خوړلو يی هلاکيږی نو خوراک ئی ورته واجب دی لکن تدريجًا به يی کموی نو لهذا د دوی حکم هم هغه دی چه تير سو خپلو مالکانو ته دی و سپارل سی کله چه د هغه ملکيت ثابت او مستند وی.

و اماما سألت عنه يا أمير المؤمنين مما تصيبه و لاتک فی الامصار مع اللصوص اذا اخذوا من المال و المتاع و السلاح و غير ذلک فما اصبت معهم من شئ فتقدم الی و لاتک فی ان يصير الی رجل من اهل الامانة و الصلاح فيصيره فی موضع حريز فان جاء له طالب و اقام بذلک بينة شهودًا لا بأس بهم قومًا من اهل التجارة معروفين رد عليه متاعه واشهد عليه وضمنه المتاع او قيمته ان جاء مستحق له و ان لم يأت له طالب بيع المتاع والسلاح و صير ثمنه و المال الذی اصيب معهم الی بيت المال آه (کتاب الخراج صـ۱۸۳) (وصح بيع غير الخمر)

ممـا مـر و مفـاده صـحة بيـع الحشـيـشة والافيـون (الـدرالمختـار بهـامش ردالمحتار صـ۳۲۳ج ۵) سئل ابـن حـجر الـمكي عـمن ابتلي بـاكـل نحـو الافيـون و صـاران لم يـاكـل منـه هـلک فـاجاب ان علـم ذلک قطعـا حـل لـه بـل وجـب..... و يجب عليه التدريج في تنـقيصه شيئا فشيئا (ردالمحتـار صـ۳۲۸ج ۵)

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## قتل عمد اوقتل خطا په قرينو ثابتيږي کنه؟

**سـوال**: د ولايـت کنـدهار مرکـزي دارالافتـاء د رئـيس صـاحب حـضور تـه، الـسلام عليکم ورحمةالله.

وبعد: محترمه زما شراف الديـن ولد نظر محمّد ولد دراني زوی د سراج الديـن پنامـه تـقريبًا ۱۷ کلن د عبدالرؤف ولد محمد ظريف ولد باز محمد له طرفه په قـتل رسيد لی دی.

عرض دا دی: مذکور عبدالرؤف نامي زما زوی ته وويل چه زما سره غـره تـه ولاړ سـه ښکار ته هغه انکار وکړی ده ور ته وويل چه که نه را سره ځي وژنم دی بيا ئی د کلاشنکوف د رائی په مرمی دري ځايه زما زوی ويشتلی دی د نژدی څخه اول تـک ئـی پـر کـړيدی بتـه گوتـه ور څخه وريده دوهم تک ئي پر پنډۍ پر کړيدی دريم تک ئی پر پـښتی پـر کـړيدی اوس مـذکور قاتل وائی چه ما سراج الدين په خطا کی ويـشتلی دی.نو آيا داسـی قـتل تـه پـه شريعت کی قـتل عمد ويل کيږی چه زه د قصاص حق پيدا کـړم او کـه قـتل خطـا ورتـه ويـل کيـږی چـه زه د ديت حقداره سم، نو لطفًا تاسو و مونږ ته شرعی فتوی راکړی چه زه د قـصاص حق پـر مـذکور لـرم کنه حالانکه عبدالروف په درو سرو تکانو خپل اقرار کړی دی چه دري ځايـه مـی ويـشتلی دی؟

(شراف الديـن ولد نظر محمد)

**جواب**: که چیری واقعه دغسی پیښه وی لکه مستفتی چه لیکلی دی او دغه قاتل یوه پلا دغه مقتول په وژلو تهدید کړی وي او بیا ئی ټوپک باندی د نږدی ځایه څه دری(۳) ټکه ویشتلی وي او دری سره ټکان مبنتی وی په مقتول کی نو دا قرینه قاطعة د قتل عمد ده او قتل خطاء نسی کیدلای که د مستفتی بیان ټوله مطابق وي د واقع سره.

اما العمد فما تعمد ضربه بسلاح او مایجری مجری السلاح فی تفریق الاجزاء کمحدد الخشب (الفتاوی الهندیة صـ۲ج۶) فی المنتقی عن محمد رحمة الله تعالی علیه اذا تعمدت شیئا من انسان فاصبت شیئا آخر منه سوی ما تعمد ته فهو عمد محض و ان اصبت غیره یعنی غیر ذلک الانسان فهو خطأ قال هشام تفسیر هذا رجل تعمد ان یضرب ید رجل فاخطأ و اصاب عنق ذلک الرجل فا بان رأسه و قتله فهو عمد وفیه القود (الفتاوی الهندیة صـ۳ج۶) المحدد هو کل آلة جارحة او طاعنة لها مورفی البدن ای تفرق اجزاء الجسد مثل الاسلحة الناریة الحدیثة المختلفة ..... ویکاد یکون هناک اتفاق بین الفقهاء علی ان القتل بالمحدد هو قتل عمد موجب للقصاص الخ (الفقه الاسلامی صـ۵۶۲۹ج۷ ط جدید).

ولم یقل ان یتعمد قتله لما سیذکره الشارح قریبًا انه لواراد یدرجل فاصاب عنقه فهو عمد ولو عنق غیره فخطا ولذا قال فی المجتبی ان قصد القتل لیس بشرط لکونه عمدًا والیه اشارالشارح بقوله فی ای موضع من جسده (ردالمحتار صـ۳۷۵ج۵) کذلک القصد فی القتل یثبت بالاعمال التی تصدرمن القاتل کاستعماله الالات الجارحة وضرب المقتول بها عدة ضربات مثلا (دررالحکام صـ۶۹ج۱) احد اسباب الحکم القرنیة القاطعة (المجلة المـ۱۷۴۰) یحکم بالظاهر فیما یتعسر الاطلاع علی حقیقتة (المجلة المـ۶۸)

والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دامارت مقام ته دشرعي احکامو دعملي کولو پیشنهاد

ولوړ حضور ته د عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله تعالی السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته ستاسو د پوره صحت او عافیت او د دواړو جهانو د کاملی کامیابی په هیله و بعد عرض دا دی څرنگه چه د دارالافتاء د علماؤ وظیفه دا ده چه خپلی شرعی فتوی گانی صادروی او خلقو ته ئی ورکوی لکن بعضی ریاستونو استفتاء کړی وی او شرعی فتوی گانی تکراراً وراستولې سوی دی لکن بیا هم هغوی د هغه فتوا گانو عملی کولو ته حاضر نه دی چه د مثال په ډول لانډی جزئیات لیکو:

( **اول** ): د ښاروالی ریاست ته مو دکاندارانو ته د نرخ ورکولو په هکله تکراراً فتواگانی ورکړی دي چه دغه نرخ ورکول حرام دی په حدیث شریف کی منعه ځنی سوي ده حضرت نبی ﷺ ظلم ورته ویلی دی لکن بیا هم په راډیو کی اعلانونه کوی او دکاندارانو ته نرخونه ورکوي .

( **دوهم** ): د امربالمعروف ریاست ته مو څو واره فتوا گانی ورکړي دي چه دغه د ټیپو او د هغو د پیتو ماتول حرام دي بلکه باید دغه د ساز پیتی په خپلو مقناطیسی آلاتو باندی خرابی او صافی سی او خالی پیتی باید خلقو ته بیرته ورکړای سی خپله د امر بالمعروف و زیر صاحب ته هم دغه فتوی ورکړه لکن دوی دا دلیل وایی چه د مولوی ثاقب صاحب په وقت کی مونږ ته د ماتولو فتوی راکړه سوی ده مونږ هغه عملی کوو او بس او حال دا پیته چه صافه سی او خالی سی هم ساز د مابین څه ولاړی او هم مال د ضائع کیدلو وساتل سو .

( **دریم** ): د امر بالمعروف ریاست ته مو تکراراً فتوی ورکړی ده چه تلاشی کول د پاره د منکراتو پیداکولو حرام قطعی دی په آیة شریف کی( وَلَا تَجَسَّسُوْا ) راغلی او همدا راز په ډیرو احادیثو کی د بخاری شریف او صحاح ستة قطعی منعه ځنی سوی ده لکن بیا هم مونږ وینو چه ځای پر ځای د خلقو په جیبونو کی او په موټرانو کی د ساز د پیتو د پاره تلاشی کیږی ، او همدا راز هغه خلق چه د سروریښتان ئی غټ وي او په انگریزی ډول جوړ سوي هم

نه وی په بازار کی نیول کیږی د خدای ﷻ مخلوق پر راټول او پر خاندي چه دا د مسلمانانو پر عزت تیری کول دی او حرام قطعی دی او دا کارونه مونږ پخپله په سترګو لیدلی دی.
او همدا راز نوری ډیری جزئیاتی دی چه د شریعت مقدس سره ډیر تو پیر لري مونږ فتواګانی ورکړی دی د دوی د غوښتنو او پوښتنو سره سم لکن دوی کله وایی چه دا زمونږ قانون دی کله وایی دا زمونږ د لائحی سره سم نه دی چه په نتیجه کی هغوی دارالافتاء د خپلو کارونو په مخ کی خنډ بولي او حسد ورسره کوي.
نو که امیرالمؤمنین داسی یو مکتوب صادر کړی ریاستونو ته چه د دارالافتاء فتوی ګانی عملی سی او د شرعی احکامو سره مطابق اجراءات وسی یا مونږ ته دا اجازه راکول سی چه په دغسی مواردو کی د امارت مقام ته اطلاع ورکړو نو د یوی خوابه ستاسو ډیره لویه پیرزوینه او مهربانی وی او د بلی خوا به د شرعی احکامو و عملی کولو ته نوره هم لاره اواره سی. باید یاده کړو چه هر څوک چه د دارالافتاء پر دلائلو یا احکامو اعتراض لری مونږ د هغوی سره قناعت کولو او قناعت ورکولو ته حاضر او اماده یو او دا خپل یو افتخار بولو.
والسلام.

بسم الله الرحمن الرحیم

## دکمونست حکومت لخوا دتوزیع سویو اوخرڅ سویو مځکو حکم

**سوال** : د کندهار د دارالفتاء محترم ریاست ته اسلام علیکم ورحمةالله و برکاتهٔ.

وبعد : محترما د سردار د عزیزخان د امان الله خان د زوی چه مقابل لوری یي سرمعلم لعل خان د دوست محمد زوی او دهلمند د ښاروالی اوسیدونکی دي پر یوه نمره د تعمیر پر ځمکه یي سره دعوه ده او موضوع ئی د حقوق د ریاست څخه د هلمند امارتی قضایاؤ ریاست ته د څیړنی لپاره راجع سوی ده د سوابقو لروی موضوع پدي ډول ده.

(۱) په ۱۳۴۸\۹\۲ یو نمبر نمره د هلمند او شملان په جاده کی د هلمند ولایت او د هلمند د لوی ریاست لخوا څخه وسلطان محمد د محمد عمر زوی ته په قمت ۲۱۱۸۷۵۰ افغانی ورکړل سوي ده.

(۲) نوموړی نمره د ذکر سوی سلطان محمد لخوا څخه پر ذکر سوي عزیزالله ۱۳۴۹\۱۰\۱۱ په پنځوس زره افغانی پلورل سویده او عزیزالله نامی په نوموړی نمره کی څلور پیاده خانی اعمار کړي او یو ناظرئی پکښی اوسیدلی دي.

(۳) نوموړی نمره په ۱۳۵۷\۷\۲۸ د کمونیست حکومت لخوا څخه په (۲۷) نمبر تصویب هغه مری چه ۴۵ فیصد نوي اعمار سوي د اصلی مالکانو څخه مسترد کړی او د وخت د حکومت په سرجمع کی ئی قید کړي دي.

(۴) د ذکر سوي محمد لعل د درخولیت سره په ۱۳۶۰\۵\۱۹ د کمونیست حکومت لخوا څخه نومړي نمره محمد لعل ته توزیع یو ده او فعلا محمد لعل پکښی اوسیږي د فلهذا د هلمند د امارتی قضایاؤ ریاست ضرورت احساسوي چه د شرعت مقدس په چوکاټ کښی یو قاطع او شرعی هدایت راکړي تر څو معلومه سی چه په داسی موضوعاتو کی چه د کمونیست حکومت په وخت کی توزیع او استر دا ده اعتبار وړ او نافذ دي او که ئی تصرفات استر دادات او عطیات د بیت المال ملغا او غیر قابل اعتبار دي چه په دغه باب ښه واضح حکم راکړی ډیر به ښه وي ؟

(الحاج مولوي عبد الحمید چوپان د هلمند د امارتی قضایاؤ رئیس)

**جواب**: هغه مځکې چه حکومت خلقو ته په قيمت ورکړی وي په ۱۳۴۸ سنه کې يا نورې هغه مځکې چه د کمونستي حکومت څه تر مخه خلقو ده حکومت څه رانيولي دي هغه مځکې د هغه خلقو دي او د هغوی شخصي ملکيت دی که ئې ۴۰ فيصده اعمار کړي وي که يې نه وي اعمار کړي هيڅ څوک دا حق نه لري نه کمونيستي حکومت نه اسلامي امارت نه نور خلق چه د دوی څه يې بيرته په زور او جبر واخلي او که يې اخيستي وي نو هم به بيرته اصلي مالکانو ته تسليميږي.

او غاصبانو يا هغه خلقو چه دغه مځکې ئې د کمونستي غاصب حکومت څه په قيمت رانيولي دي که ئې بناء پکښې کړي وه هغوی دي خپله بناء و نړوي او مځکې دي اصلي خلقو ته وسپاري او که اصلي مالک دوی ته د دغه بناء قيمت ورکاوه هم صحيح ده که د بناء په نړولو کې مځکې ته ضرر رسيدی.

لايجوز الحد ان يأخذ مال احد بلاسبب شرعي (المجلة ۹۷) اى لا يحل فى كل الاحوال عمدا او خطاً او نسيانا جدا او لعبان ان يأخذ احد مال احد بوجه لم يشرعه الله تعالى و لم يجه لان حقوق العباد محترمة (أتاسي صـ۲۶۴ج۱) فمن تناول مال احد با حدى هذه الطريق فهو ظالم غاصب يجب عليه رده قائما او مثله او قيمته هالكاً (اتاسي صـ۲۶۵ج۱) فاذا حاز الشخص مالابطريق مشروع أصبح مختصا به و اختصاصه به يمكنه من الانتفاع به و التصرف فيه الا اذا وجد مانع شرعي يمنع من ذلك كالجنون الخ (الفقه الاسلامى صـ۵۷ج۴) انكان المغصوب ارضا و كان الغاصب انشأ عليها بناءً او غرس فيها اشجار ايؤمر الغاصب بقلعهما و انكان القلع مضرا بالارض فللمغصوب منه ان يعطى قيمة البناء اوالغرس مستحق القلع و يتملكه (المجلة ۹۰۶) اعلم ان المتون قاطبة الا الدرراطلقت القول بان الغاصب يؤمر بالقلع وردالارض فارغة لمالكها (شرح المجلة للاتاسي صـ۴۴۱ج۳)

والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دچاپه مځکه کې چې دبل لښتی تیر سوی وي

## بیا خرابه سی لښتي ولا ددې خرابه ویالي دنیمی مځکې دعوه کولای سي کنه؟

**سوال** : از طرف امان الله عرض اینکه یک نفر که زمیـن شان زیر زمیـن من بود و مرور آب شان در زمیـن من بود بعد از مرور وقت جوئی سابق خراب گشته و من آب آن از طریق دیگر راه دادم و خود شان قناعت نموده و بعد زمیـن خود مثالا با همراه زمیـن طرف شرقی مایان خاک بدلی نموده حالاً از جهت مرور آب سابق دعوی نصف آن زمیـن جوئی سابق نموده آیا شرعا حق دارد یا خیر ؟

**جواب** : دغه مدّعی چه د نیمی مځکی د سابقه ولی دعوه کوی یا به یی په یو شرعی وجه دعوه کوي لکه دا چه دغه مځکه مونږ په شراکت رانیولی ده یا یو چا دواړو ته بخښلی ده یا یو بله شرعی طریقه نو باید دغه مدعی د خپلی دعوی اثبات وکړی نو به شراکت ثابت سی یا به یی په دي وجه دعوه کوي چه په دغه مځکه کی پخوا زما د مځکی د پاره اوبه راتلی نو اوبه ځو زما وي فلهذا مځکه یی هم زما ده او بل دلیل نه ولری نو دا شرعی وجه نده او نه پدي طریقه سره استملاک را تلای سی.

ان اسباب او مصادر الملكية التّامة في الشريعةً اربعة هي الاستيلاء على المباح و العقود والخلفية و التولد من الشئى المملوك ( الفقه الاسلامى صـ۵۰۱ج ۵ ) العقود النـاقلة للملكية العقـود كـالبيع و الهبة و الوصـية و نحوهـا من اهم مصادر الملكيـة و اعمهـا و اكثرهـا و قوعـا فـى الحيـاة المدنيـة ( الفقـه الاسلامى صـ۵۰۹ج ۵ ) لايجوز لاحـد ان يأخـذ مـال احـد بـلاسبب شرعى ( المجلة صـ۹۷ ) اى لا يحل فى كل الاحوال عمدًا او خطأ او نسيانا جدًا او لعبًا ان يأخذ احـدٌ مال احـد بوجه لم يشرعه الله تعالى و لم يبحه ( شرح المجلة للاتاسى صـ۲۶۴ج ۱ ) قالت المجلـة بـلاسـبب شـرعى احـترازاً عـن وجـود سـبب شـرعى لـلاخـذ فيجـوز كـالمعاوضة المالية فى البيع يحل لاحد المتعا قدين اخذ الثمن و للاخر اخذ

المبيع و كالاجارة ...... و كذا التمليكات و الكفالة و الحوالة وكل ما ورد فيه الجواز الشرعي (شرح المجلة للاتاسي صـ۲۶۶ج۱)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دمسجدونو، هديرو وغيره په اړه لس مهيمې پوښتنې اوجوابونه

**سوال**: د دارالافتاء محترمو علماؤو د دغو څو ليکلو مسائلو په هکله شرعي فتوی ورکړي.

( **اوله پوښتنه** ): مسجد ضرار کوم مسجد ته ويل کيږی او په څومره اندازه به وي ؟

( **دوهمه پوښتنه** ): کوم مسجد چه معطل شی د نوی مسجد د جوړيدو په وجه زوړ مسجد تنگ وي يا ته شوی مسجد څه حکم لري بايد کومه استفاده ځنی وکړله سی او که يا د ظروفو او د عين ذاته د مسجد څخه ؟

( **دريمه پوښتنه** ): کومه مځکه چه وقف شوی وي او صرف وقف ئی تعين ونه لري او تعين ئی په داسی شان سره وي د تکيی په نامه د فلانکی اغا په نامه وقف ده او هلته د ميلی لپاره چه پخوا کار ځينی اخستل کيږی او اوس يو تعداد خلگو خو د سرانه په خپل سر او يا بعضو د حکومت له خوا پر هغه ځای دکانونه جوړ کړی دی او خپل مصرفونه ئی پر کړی دي نو کوم وخت چه د اوقافو اداره فعاله شوه نو غواړی چه د دارالافتاء د فتوا سره سم د هغو عوايد په بانگ کښی د امانت په توگه کښيږدي په هغه ځای مصرف شی که ضرورت وي او يا د بل مسجد لپاره تری کار ځنی واخستل شی نو د نوموړی دکانو معلوماتِ مونږ ته راکړی چه کرايه ځينی واخستل شی او په هغه خپل مستحقه لار کارځينی واخستل شی او که نوموړی دکانونه خراب شی چه حتی په هر دوکان تقريبه ۱۰۰۰ زرلکه افغانی مصرف شوی په پاخه طور ؟

( **څلورمه پوښتنه** ): داسې بعضې امامان شته چه په پخوانيو حکومتو کښې ئې يعنې ۱۳۵۷ څخه بيا ۱۳۷۰ هجري شمسي کال پورې ئې د مشراو يا دا جير په توګه وظيفه اجرا کړې وي ايا د دوی امامت څرنګه دی يعنې امامان به وی او که معزول کيږی ؟

( **پنځمه پوښتنه** ): بعضې داسې امامان چه د کنز او قدوری امامان دي او اکثر خلک چه بيا خلقيان وی د دوی په امامت خوښ وي او د اميرالمؤمنين هم داغسې امر دی چه امامت بايد د خلګو په خوښه وی په دی حصه کښې مونږ ته معلومات راکړی ؟

( **شپږمه پوښتنه** ): داسې ځمکې چه د املاکو په دفاترو کښې د قبرستان په نامه وی هغه محدوده اندازه خلکو اشغال کړې وي يعنې سرايونه ئې پر جوړ کړي وي ايا هغه سرايونه دفعةً خراب شي او که د اديرې د رارسيدلو تر وخته پورې معطل شي او يو محدوده اندازه کرايه پرې ولګيږي او که يا ؟

( **اوومه پوښتنه** ): بعضې اديرې دی چه په دفاترو کښې قيديت نه لری خلک ورنږدې کيږی قبرونه خرابوی او هلته ابادی پرې جوړوی و داغه اديرې ته حريم په کومه اندازه ورکولای شو منع ئې کولای شو او که يا ؟

(**اتمه پوښتنه**): داسې اديرې شته چه اثارئ له منځه تللی وی په ښکاره توګه نو پر دغه ځای د مدرسې يا مسجد جوړيدل څه حکم لری ؟

(**نهمه پوښتنه** ): اهل تشيع د مساجد و د جوړولو درخواستې کوي چه مسجدونه جوړ کړو په دی حصه کښې معلومات غواړو چه څه وکړو ؟

(**لسمه پوښتنه** ): د ګرشګ په ولسوالی کی يوه تکيه د داؤد اغا په نامه وقف ده د ګرشک مسؤلين وائی چه موږ محبس پکښې جوړوو جواز لري او کنه ؟

( الحاج ملا طالب اغا مسؤل حج او قاف ولايت هلمند )

**د اول سوال جواب**: که څلور شيان په يو مسجد کی جمع سی نو هغه ته مسجد ضرار ويل کيږی (۱) د مسلمانانو جماعت ته ضرر سول (۲) د کفر حمايت کول (۳) په مسلمانانو کی تفرقه اچول (۴) د خدای ﷻ او رسول ﷺ پر خلاف جنګ کوونکو ته کومک ورکول د دغسی مسجد نړول ضرور دي او لمونځ پکښې ناجائز دي او هغه مسجد چه په فاسد نيت جوړ سوی

وي او پورتنی ۴ شرطه پکښې جمعه نوی هغه ته مسجد ضرار نه ويل کيږي حکم يې د صحيح او شرعی مسجد دی که څه هم په آخرت کی يې جوړوونکی ته أجر او ثواب نسته او د ۲ مسجدو په مابين کی شرعی فاصله نده متعينه په داسی صورت کې چه په قوم کی اختلاف پيښ سی او د اختلاف رفع کول ممکن نوی يو مسجد هم نيمی کيدلای سی او دوی حصی کيدلای سی چه هره حصه به جلا مؤذن او امام ولري.

( والذين اتخدوا مسجدا ضرارا وكفرا وتفريقا بين المؤمنين وارصاد المن حارب الله ورسوله من قبل ) ( الاية سورة التوبة ۱۰۷ پاره ۱۱ ).

مسجد ضرار کی تعریف خود قرآن مجید میں چار قیدوں کی ساتھ مذکور ہیں ( امدادا لمفتین ص ــ ۸۰۸ ) ( عزیزالفتاوی ص ــ ۶۰۹ ) بغض وعناد کی وجہ سے بنائی ہوئی مسجد ضرار نہیں ..... اس مسجد کی بنانی والوں کو مسجد بنائی کا ثواب نہ ملیں گا بلکہ گناہ گار ہونگی لیکن یہ جگہ مسجد شرعی ہوگئی اس کی تمام احکام مثل دیگر مساجد ہوگئی الخ ( امدادا لمفتي ـن ص ـ ۸۰۸ ).

اهل المحلة قسموا المسجد و ضربوا فيه حائطا ولكل منهم امام عليحدة و مؤذنهم واحد لا بأس به والاولى انيكون لكل طائفة مؤذن . كما يجوز لاهل المحلة ان يجعلوا المسجد الواحد مسجدين فلهم ان يجعلوا المسجدين واحد الاقامة الجماعة ( البحر الرائق صـ ۲۵۰ ج ۵ ).

**د دوهم سوال جواب:** پاته سوی مسجد دأبد د پاره د قيامت تر ورځی حکم د مسجد لري سوی له مسجد څه نوره استفاده نسی څنی کيدلای او همدا رنګه انقاض يعنی اموال د مسجد به په داغه مسجد کی پاته کيږی حتی چه نقل کول يې بل مسجد ته هم نه دی جائز.

ولو خرب ماحوله واستغنى عنه يبقى مسجدا عند الامام و الثانى ابدا الى قيام الساعة . وبه يفتى ( الدرالمختار ) قوله عند الامام و الثانى فلا يعود ميراثا و لايجوز نقله و نقل ماله الى مسجد آخر سواء كانو ايصلون فيه اولا وهو الفتوى ( حاوى القدسى ) و اكثر المشايخ عليه مجتبى وهو الاوجه فتح ( ردالمحتار صـ ۴۰۶ ج ۳ ) هكذا فى ( البحر الرائق صـ ۲۵۱ ج ۵ ) ( التتارخانية صـ ۸۴۶ ج ۵ ).

**د دریم سوال جواب**: په وقفي ځمکه کې چه هر چا دکانونه جوړ کړي وي د متولي بې له اجازې او نیت د وقف یې نوي پکښې کړي نو دغه دکانونه د جوړوونکي ملکیت بلل کیږي او جوړوونکي ته به امر کیږي چه فوراً دوکانونه ونړوي او هغه شیان چه جوړوونکي مصرف کړي وي هغه دې یوسي او وقفي ځمکه دې فارغه کړي او عواید د وقف دوه ۲ رقمه دي یو هغه عوائد دی چه د دکانو د جوړولو په وجه حاصل سوي دي یو هغه مفروضه او ذهني عوائد دي یعني څونه مدة چه غاصب تیره کړیده د هغونه مدې کرایه یعني اجرة مثل دی، اول قسم عوائد د غاصب او دکان جوړوونکي دي او دوهم قسم عوائدو ته به حساب کیږي او د غاصب څه به اخستل کیږي او په داغه وقفي ځای به مصرفیږي.

الوجه الخامس أن یبنی أحد غیر المتولي ابنیة او یغرس اشجارافی عرصة الوقف مصرحا بانها لنفسه او مطلقا ذلک ای لم یذکر کونها لنفسه او للوقف فتکون الابنیة و الاشجار ملکا لذلک الشخص (دررالحکام صـ۵۸۱ج۲) اما اذا کانت (ای الارض الموقوفة المغصوبة التی بنی فیها) وقفا فیؤمر بالقلع والرد مطلقا اتفاقا کما صرح به فی مجمع الانهر لان الارض لایجوز تملکها (اتاسی صـ۴۴۲ج۳) وهکذافی (دررالحکام صـ۵۷۶ج۲) لو سکن واحد فی دارآخر مدة بدون عقد اجارة لا تلزمه الاجرة لکن ان کانت تلک الدار وقفا او مال صغیر لزمه أجرة مثل المدة التی سکنها فی کل حال ای سواء کان ثمة تأویل ملک او عقد اولم یکن (المجلة المـ۵۹۶) ولا فرق فیما اذاکان الوقف موقوفا للسکنی اولالاستغلال او لغیرهما کالمسجد فقد افتی العلامة المقدسی فی مسجد تعدی علیه رجل وجعله بیت قهوة بلزوم اجر مثله مدة شغله کذافی الخیریة والحامدیة (سلیم باز صـ۳۱۹).

**د څلورم او پنځم سوال جواب**: د امام عزل په ۳ وجهو سره کیدلای (۱) فسق د امام یعني چه په ښکاره دول یو فاسق او فاجر سړی وي (۲) عدم أهلیة یعني چه دغه د إمامت یعني

لمونځ ورکولو وظیفه په صحیح او شرعی طریقه سره سر ته نسی رسولای(۳) دا چه د محل خلق تر ده ډیر حق داره وي په دغه وظیفه د إمامت سره ، حق داری نه په معنی د کثرة فقراو احتیاج ده بلکه په معنی د ښه علم او تقوی او داسی نورو فضائلو ده کچیری دغه(۳) وجهی په یو چاکی نوی نو هغه د امامت څه نسی معزول کیدلای او کچیری د محل خلق د امام څه ناراضه وي نو که دغه ناراضی د امام د فسق یا عدم اهلیة یا یو بل شرعی عذر په وجه وي نو د إمام إمامت مکروه تحریمی دی او که شرعی عذر نوی نو بیا پروانلری که څه هم ډیر خلق ناراضه وي.

مطلب لا یصح عزل صاحب وظیفة بلا جنحة و عدم اهلیة (ردالمحتار صـ۴۲۳ج ۳) رجل امّ قوما وهم له کارهون فانکان الکراهة لفساد فیه او لانهم أحق بالامامة منه کره له ذلک و انکان هو احق بالامامة لا یکره لان الجاهل و الفاسق یکره العالم و الصالح (فتاوی قاضیخان بهامش الهندیة صـ۹۲ج۱) هکذافی حاشیة (الطحطاوی علی مراقی الفلاح صـ۲۴۴) قال الحلبی و ینبغی انتکون الکراهة تحریمیة لخبر ابی داؤد ثلاثة لا یقبل الله تعالی ﷺ منهم صلاة و عدمنهم من تقدم قوما و هم له کارهون (حاشیة الطحطاوی علی مراقی الفلاح صـ۲۴۴) قال فی شرح المشکوة لعله محمول علی الاکثر من العلماء اذا وجدوا والافلا عبرة لکثرة الجاهلین (حاشیة الطحطاوی علی مراقی الفلاح صـ۲۴۴) و فی البحر تحت قوله وکره امامة الاعرابی و العبدو الفاسق و المبتدع الخ ..... قال الرملی ذکر الحلبی فی شرح منیة المصلی ان کراهة تقدیم الفاسق و المبتدع کراهة التحریم (خیرالفتاوی صـ۳۲۶ج۲).

**د شپږم سوال جواب** : دغه ځمکه چه د قبرستان په نامه قیدیت لري باید معلومات ئی وسی کچیری وقف وي د ادیری لپاره باید د وقف د ساحی څه فورًا سرایونه و نړول سی لکه څنګه چه د دریم سوال په جواب کی تیره سوه او که د یو چا مملوکه وي د خپل مالک سره ئی باید مشوره وسی.

**د اووم سوال جواب**: د ادیری لپاره د حریم اندازه کتابونو نده ذکر کړې بلکه هر څونه ځکه چه وقفی وي هغه باید ادیری ته په پوره ډول فارغه سی او په حدودو کی چه د هرڅا ملکی ځکه وه هغه په خپله ځکه کی د پوره تصرف کولو حق لري. لایجوز لاحد ان یتصرف فی ملک غیره بلا اذنه (المجلة الم۹۶).

**د اتم سوال جواب**: داسی ادیری چه د قبرونو لپاره وقف سوی وي او بیا د قبرونو اثار له منځه تللی وي او د مړو هډوکی خاوری سوي وي نو په داسی مقبره کی مسجد جوړول جائز دی.

قال ابن القاسم لو ان مقبرة من مقابر المسلمین عفت فبنی فیها مسجدا لم أر بذلک بأسا و ذلک لان المقابر وقف من اوقاف المسلمین لدفن موتاهم لایجوز لاحد ان یملکها فاذا درست و استغنی عن الدفن فیها جاز صرفها الی المسجد لان المسجد ایضًا وقف من اوقاف المسلمین لا یجوز تملیکه لاحد فمعناهما علی هذا واحد آه ـ عینی شرح بخاری (امدادالمفتین صـ۷۸۶) (احسن الفتاوی صـ۴۰۹ج ۶) (امدادالفتاوی صـ۵۷۹ج ۲).

**د نهم سوال جواب**: دولتی ځکه شیعه گانو ته د ورکولو لپاره د مسجد جوړولو د امیرالمؤمنین تر هدایت پوري اړه لري په دي هلکه د هغه څۀ هدایت و غواړی. التصرف علی الرعیة منوط بالمصلحة (المجلة الم۵۸).

**د لسم سوال جواب**: دا عمل یعنی محبس جوړول په دغه تکیه کی ناجائز عمل دی هغه مصرف چه د دغه وقف لپاره معلوم سوی دی هلته به مصرف کیږي پس له ترمیم څه د دغه تکیی چه مراد څنی هغه اغا صاحب دی چه ځکه د هغه په نامه وقف سوی ده.

فانکان الوقف معینا علی شئ یصرف الیه بعد عمارة البناء کذافی الحاوي القدسی (الفتاوی الهندیة صـ۳۶۸ج ۲) هکذافی (مجمع الانهر صـ۷۴۲ج ۱).

( نوټ ): د وقفي اموالو سره ډیر زیات احتیاط پکار دی او ډیر زیات باید اهتمام په وسی ولی د وقف مال د یتیم د مال سره په حکم کی مساوي دی.

ثم ان ارض الیتیم فی حکم أرض الوقف کما ذکره فی الجوهرة وافتی به صاحب البحر و المصنف ( ردالمحتار ص۳۹۷ ج ۳ ط بیروت ) والله تعالی ﷻ اعلم.

( نـوټ ): د زیات وضاحت لپاره باید ووایو چه یو انقاض د مسجد دی بل آلات د مسجد دي انقاض د مسجد لکه خاوری خښتی لرگی گادر او داسی نور. حکم یی دا دی چه دغه شیان حکم د مسجد لري د أبد لپاره به په داغه مسجد کی وي نقل ئی بل مسجد ته هم ندی جائز او آلات د مسجد لکه څراغ، گروپ، فنکه، غالی، بوریا، فرش او داسی نور. حکم یی دا دی چه هر کله مسجد یا د هغه شاوخوا خراب سی او خلق بل مسجد بناء کی او د دغه مسجد څه استغناء واشي نو دغه شیان او آلات بیرته ملکیت گرځی او شخصی استفاده څنی کیدلای سی بناء پر مفتی به قول.

ولو خرب ماحوله واستغنی عنه یبقی مسجدا عند الامام والثانی ابدا الی قیام الساعة و به یفتی ( الدرالمختار ) قال الزیلعی و علی هذا حصیر المسجد و حشیشه اذا استغنی عنهما یرجع الی مالکه عند محمد و عند ابی یوسف ینقل الی مسجد آخر .... و به علم ان الفتوی علی قول محمد فی آلات المسجد و علی قول ابی یوسف فی تأبید المسجد آه و المراد بالات المسجد نحو القندیل و الحصیر بخلاف انقاضه لما قدمنا عنه قریبا من ان الفتوی علی ان المسجد لا یعود میراثا ولایجوز نقله و نقل ماله الی مسجد آخر ( ردالمحتار ص۳۷۱ ج ۳ ط بیروت ) هکذا فی ( الفقه الاسلامی ص۲۲۰ ج ۸ ) و ( مجمع الانهر ص۷۴۸ ج ۱ ) انقاضه من حجر و طوب و خشب ( الفقه الاسلامی ص۲۲۰ ج ۸ )

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## که فضولي دچا دکان خرڅ کړي اصلي مالک خبر سي سکوت وکړي وخت تیر سي ددکان قیمت لوړ سي بیرته فسخ کولای سي ، اوسکوت اجازه بلل کیږي کنه؟

**سوال** : که چیری زید د عمر دکان خرڅ کړی په کندهار کښې په سل لکه افغانی په دغه تاریخ کښی ۱/۱/۱۳۷۴ هـ ش په داسی حال کښې چه عمر خپله حاضر نه وي او نه ئي زید وکیل وي یعنی فضولی وي او وروسته له یوه کاله یا څو میاشتو په دي سره عالم شی چه زما دکان زید خرڅ کړی دی پر علم سربیره ئی نه د بیعی اجازه وکړه او نه ئی فسخه د بیعی وکړه او هیڅ نوع مانع هم موجود نه وو یعنی مانع د دی چه عمر و له مشتری څخه بیره کوله که چیری دی بیعه فسخه کړی نو مشتری به عمر و هلاک کړی او د اجازة صورة دا دی چه د اجازة کولو څخه د عمرو بیعی لره هم مانع موجود نه وو یعنی په دغه بیعه کښی د عمرو هیڅ نوعه نقصان نه وو نو کله چه ده نه اجازة د بیع و کړی او نه ئی فسخه و کړه نو که چیری بعد له علمه څخه د عمرو چه په ۱۳۷۴/۵/۱ تاریخ د ده علم پر راغلی وو د دکان پر خرڅولو باندي نو بعد العلم عمرو ساکت پاته وو سره د عدم مانع تر دغه تاریخه ۱۳۷۴/۵/۱ پوری او وروسته ئی قیمة د دوکان پنځه سوه لکه افغانیو ته ورسیدی مثلاً یعنی قیمة ثانیه ئی په ثانی تاریخ کی پورته شو تر اول تاریخ نو آیا عمرو کولاي شی چه په ثانی تاریخ کی بیعه فسخه کړی دی ئی ځکه فسخه کوي چه د دوکان قیمة دری ۳ چنده سوی په دوهم تاریخ کی او سکوت د فسخ چه عمرو په اول تاریخ کی کړی وو هغه دلالة پر اجازه د ده بیعی لره کوي که یا ؟

**جواب** : بیع د فضولی موقوف ده پر اجازه د مالک که هغه اجازه وکړه بیع صحیح ده کی یی اجازه نه وکړه بیع نه ده صحیح او سکوت د مالک اجازه نه بلل کیږی او اجازه عامه ده که قولی وي او که فعلی وي مثلاً که اصلی مالک د فضولی تحسین او آفرین ووایه یا یی ثمن طلب کی او قبول یی کی یا ئی ثمن و فضولی یا بل چا ته هبه کی یا ئی قباله ورکړه یائی اقرار خط یعنی بیع خط امضاء کی داټول اجازة بلل کیږی ، او که داټول نه وه او مالک خالص سکوت مختار کړی وو نو دا سکوت ته اجازه نه ویل کیږي.

البیع الموقوف یفید الحکم عند الاجازة ( المجلة المـ۳۷۷ ) والاجازة تکون قولا و فعلاً فالقول کقول المالک اجزت او احسنت او اصبت و کطلبه الثمن من المشتری و هبته منه ....... و الفعل کاخذ الثمن او اخذ صک به جامع الفصولین و اما سکوت المالک عند بیع الفضولی فلا یعد اجازة و قبولا ( شرح المجلة سلیم باز صـ۲۱۱ ) لا ینسب الی ساکت قول یعنی انه لا یقال لساکت انه قال کذا ( المجلة المـ۶۷ ) فلو رأی اجنبیا یبیع ماله فسکت لا یعد سکوته اجازة او توکیلا ( شرح المجلة سلیم باز صـ۴۷ ) هکذافی ( الفتاوی البزازیة بهامش الهندیة صـ۴۸۹ج۴ ) هکذافی ( شرح المجلة للاتاسی صـ۱۸۲ج۱ )

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

**كه په روژه خبر نه وي سهارئي**
**وخوري بيا خبرشي اوخوله بنده كړي كفاره ده كه قضاء؟**

**سوال** : د روژی په اول سهار یو کس چه د روژی په اعلان خبر نه وؤ سهار ئی چاوي وځنبلي بیا یوه کوچنی خبر را وړی چه روژه ده او د کوچنی خبره سخریهٔ چا ونه منله او وروسته هم یو گلاس چائی نوري و خوړل سولي چه بیا د لویانو د خولی خبر راغلی نو ئي روژه کړه ، اوس ځان یوه کوم چه کفاره باندي سته او کنه سته که وي نو د ښځی کفاره به څنگه وي ؟
( المستفتی حفیظ الله )

**جواب** : په دغه صورة کی چه مستفتی ذکر کړیدی قضاء د دغي ورځی لازمه ده او کفارة پری نه ده لازمه ، ځکه چه دلته شبهه د عدم رمضان سته او کفاره په شبهه سره ساقطیږی او بل دا چه د اوله سره نیت د روژی نه دی راغلی او کفاره هلته لازمیږی چه صائم وي او خپله صیامه فاسده کی عمدا.

وهـذه الكفـارة تنـدرئ بالـشبهات لانهـا الحقـت بالعقوبـات باعتبار ان معنـى العقوبـة فيهـا اغلـب بـدليل عـدم وجوبهـا علـى المعـذور والخطئ ( البحر الرائق صـ۲۶۵ج۲ ) بل العلة ان الكفارة لا تجب الاعلى شخص افطر بعد ان كان صائما وهنـا لـم يوجد الصيام من اصله ( طحطاوی على الدرالمختار صـ۴۵۴ج۱ ) يجب باتفاق الفقهاء القضاء على من افطر يوما او اكثر من رمضان بعذر..... او بغير عذر كترك النية عمداً او سهواً ( الفقه الاسلامی صـ۶۷۹ج۲ ) ومن اصبح غيرنا وللصوم فاكل لا كفارة عليه ( امدادالفتاوی صـ۱۳۲ج۲ )

او پـه عيـن همدغـسې واقعـه کې چـه مـستفتي ذکـر کړيـده علمـاء حکـم کـوي پـه وجوب د قضاء او وجوب دلتـه پـه معنې د فرضية دي يعنې قضاء يې فـرض ده ( فتـاوی دارالعلوم ديوبند صـ۳۹۳ج۶ـ صـ۴۲۱ج۶ )

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## که عسکر دامير په امر دچا مال په زور وسوځي ضمان پر امير ده که پر عسکر؟

**سوال**: چه می فرمایند علماء دین ومفتیان شرع مبین اندرین مسئله که در سال ۱۳۷۱ بامر تورن علاء الدین خان بمنطقهٔ ولسوالی شهرک ولایت غور یکمقدار تریاک از صاحبان تریاک اخذ شده وبعداً بمحضر عام مردم همان تریاک ها سوختانده شده است وعکس گیری شده از سوختاندن آنها آیا بما مورین وعسکرهای تحت امر علاء الدین خان تورن است یا خیر؟

**جواب**: این صورت صورت اکراه است واکراه دو قسم است اکراه تام، واکراه ناقص اکراه تام آن است که مکره بالفتح را قدرة واختیار باقی نباشد زیراکه باو تهدید قتل یا اتلاف بعض اعضاء یا اتلاف جمیع مال داده شده باشد واکراه ناقص آن است که قدرة واختیار مکره بالفتح را باقی باشد زیراکه اورا تهدیدی سهل وآسان داده شده باشد مثل تهدید بضرب یسیر یا قید کردن یا اتلاف بعض مال یا الحاق ظلم مثل منع ترقی درکار یا اخذ نمودن وظیفه ازو، پس اکراه براتلاف مال غیر اگر اکراه تام بود ضمان بر مکرِه بالکسر بود واگر اکراه ناقص بود ضمان بر مکرَه بود بالفتح وشرط اکراه

قرار ذیل میباشد، (۱) مکرہ بالکسر باید کہ قادر باشد بر تعذب وتہدید مکرہ بالفتح سلطان باشد یا غیر سلطان (۲) مکرہ بالفتح اگر غالب ظن او وقوع وعید از جانب مکرہ بود اکراہ صحیح باشد (۳) وعیدی کہ از جانب مکرہ صادر شدہ قابل تحمل نباشد مثل قتل واتلاف عضو (۴) وعید مکرہ باید کہ عاجل بود نہ آجل (۵) اکراہ باید کہ بر غیر حق باشد واگر اکراہ بر حق باشد اکراہ نبود۔ وباید تذکر دادہ شود کہ اکراہ در حضور مکرہ میباشد واگر مکرہ غائب بود اکراہ نمیباشد پس اگر در اتلاف این افیون شروط مذکورہ موجودہ باشد وعلاء الدین در وقت اخذ مال مذکور موجود باشد ضمان بر مکرہ است بالکسر واِلاضمان بر آخذین مال ومباشرین این اتلاف میباشد.

الاكراه نوعان ملجئ او كامل و غير ملجئ او ناقص (الفقه الاسلامى صـ۲۱۳ج۴) و مثله فى (بدائع الصنائع صـ۱۷۵ج۷) وشرطه قدرة المكره على ايقاع ما هدّدبه سلطانًا او لصًّا وخوف المكره ايقاعه فى الحال وكون الشئ المكره به متلفا نفسا او عضوًا الخ وكون المكره ممتنعا عما اكره عليه قبله لحقه او لحق آخر او لحق الشرع (متن الدرالمختار بهامش ردالمختار صـ۸۹ج۵) و يدل عليه مافى (بدائع الصنائع صـ۱۷۶ج۷) و مثله فى (الفتاوى الهندية صـ۳۵ج۵) و اما شرطه فان يكون الاكراه من السلطان عند ابى حنيفة رحمة الله تعالى عليه و عندهما اذا جاء من غير السلطان ما يجئ من السلطان فهو اكراه صحيح شرعا كذافى النهاية و عليه الفتوى فان غاب المكره عن بصر المكره يزول الاكراه (الفتاوى الهندية صـ۳۵ج۵) و مثله فى (بدائع الصنائع صـ۱۷۶ج۷) الاكراه يثبت حكمه اذا حصل ممن يقدر على ايقاع ماتوعد به سلطانا كان او غيره و ان غاب المكره عن نظر من اكرهه يزول الاكراه ذكره قاضى خان (مجمع الضمانات صـ۲۰۴) وفيه المكره على الاخذ و الدفع انمايبيعه مادام حاضرا عنده المكره والالم يحل لزوال القدرة و الالجاء بالبعد منه و بهذا تبين انهّ لاعذر لاعوان الظملة فى الاخذ عند غيبة الامير او رسوله فليحفظ قوله مادام حاضرا عنده المكره۔قال فى الهندية عن

المبسوط فان كان ارسله ليفعل فخاف ان يقتله ان ظفر به ان لم يفعل لم يحل الا انيكون رسول الآمر معه على ان يرده عليه ان لم يفعل ولو لم يفعل حتى قتل كان في سعة ان شاء الله تعالى ولو هدّده بالحبس او القيد لم يسعه الاقدام آه قوله لزوال القدرة والالجاء بالبعد لكن يخاف عوده و به لايتحقق الاكراه بزازية ﴿الدرالمختار و ردالمحتار ص۹۸ج۵﴾ و مثله فى ﴿شرح المجلة للاتاسى ص۵۶۲ج۳﴾.

والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## له رود څخه په مشين اوبه پورته کول جواز لري کنه؟

**سوال** : د دارالافتاء محترم عالى مقام ته السلام عليكم ورحمة الله وبركاتهُ.

څرنګه چه د پنجوائى ابتدائيه شرعى محكمى په ۱۴۲۱/۱۱۳/۱ ق د ارغنداب په رود كې د نوي پيدا شوى مسئلې په اړه استفا كړی وه ، چه يو تعداد خلګو د دغه رودته (مشينان او واټرپمپونه ) د ابو د پورته كيدو لپاره ايښى دي او بل يو تعداد خلګ د دغه واټر پمپو او اوبو د پورته كيدو مخالفت كوي . چه خداى ﷻ مكره حق تلفى ونه شى ، د پنجوائى ابتدائيه شرعى محكمى دغه د عام رود څخه د اوبو د پورته كيدو موضوع د ځواب او حل په منظور تاسو ته در وليږله چه اوس هره ورځ په لس هاؤ اشخاص محكمى ته حاضريږي .او د دغه موضوع ځواب غواړي ، نو اوس چه يوه مياشت تيريږي ، نو ستاسو د لوړ حضور څخه احترامانه هيله كوو چه د دغه موضوع شرعى مسئله چه د عام رود څخه عام خلګ اوبه پورته كولاى سى كنه ؟ ﴿الحاج مولوى شاه محمد د قضا رئيس﴾

**جواب** : محترمه كه چيرى دغه د واټرپمپو خاوندانو د پخوا څخه دغه واټرپمپونه ايښى دي او خپلي مځكي يې پخوا هم په واټرپمپ اوبه ولې نو داخلق نسى منعه كيدلاى ځكه چه د چينو اوبه چه رود ته را ولويږى د رود اوبه د مباحاتو څخه دى او كه دا واټرپمپونه نوي ايښوول سوى او هغه نورو خلقو ته ضرر فاحش رسوي نو بيا دى منعه سى او په هغه طريقه چه پخوائى استفاده كوله اجازه دي وركول سى د نوو طريقو او نوو ماشين الاتو اجازه نسته كه ضرر وو د خلقو چه دا خبره د لاندي عبارتو څخه په وضاحت معلو ميږي.

سئل فی نهر کبیر ینبع من سفح جبل عظیم یمرّ فی واد قدیم یسمی ذلک النهر بالعاصی یشرب منه اراضٍ و بساتین و مزارع و قری تحوی خلقا کثیرا لیس لتلک الاراضی والقری شربٌ من غیر هذالنهر..... فهل اذا اراد احد من اهل تلک الاراضی ان یحدث فی جانب من ذلک النهر سدا یسکر النهر لتمکن بذلک من نصب دولاب یأخذ به الماء الی ارضه یجوز له ذلک..... اولیس له ذلک ویمنع عنه شرعاأفتونا ماجورین الجواب لایخفی علی احدان حال هذاالنهرلایخلومن احدامرین اماانیکون مشترکا اشتراکا خاصا..... و اما انیکون مشترکا اشتراکا عاما بین جمیع الناس فیمتنع احداث ذلک ایضاً ﴿ تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ٢١٩ج٢ ﴾ و عن ابی یوسف رحمة الله تعالی انه سئل عن نهر مرو وهو نهر عظیم..... فاحیا رجل ارضا میتة لم یکن لها شرب من هذا النهر فکری لها نهرا من فوق مرو فی موضع لایملکه احد فساق الماء الیها من ذلک النهر العظیم قال انکان هذاالنهر الحادث یضر باهل مرو ضررا بینا فی مائهم لیس له ذلک و یمنعه السطان عن ذلک وکذا لکل واحد ان یمنعه لان ماء النهر العظیم حق العامة و لکل واحد من العامة دفع الضررو انکان ذلک لا یضر باهل مرو فله ان یفعل ذلک و لا یمنع لان الماء فی الوادی العظیم علی اصل الاباحة لایصیر حقا للبعض مالم یدخل فی المقاسم ﴿ الفتاوی الهندیة صـ٣٩٧ج ٥ ﴾ هکذافی ﴿ تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ٢١٩ج٢ ﴾ لکل احد ان یسقی اراضیه من الانهر الغیر المملوکة وله ان یشق جد ولا ومجری لسقی اراضیه و لانشاء طاحون لکن یشترط عدم المضرة بالاخرین فلذلک اذا افاضَ الماء و اضر بالخلق او انقطعت میاه النهر بالکلیة او انعدم سیر الفلک فیمنع ﴿ المجلة المـ١٢٦٥ ﴾ و قید اذا انقطعت المیاه بالکلیة الوارد فی هذه المادة لیس احترازیا..... فاذا حصل من ذلک ضرر فاحش لاهل المدینة فیمنع والافلا ﴿ دررالحکام صـ٢٧٠ج ٣ ﴾ و سئل ابو یوسف رحمة الله تعالی ایضاً

عن رجل جعل له امير خراسان شربا من النهر الاعظم لم يكن له ذلک فيما مضی او کان له شرب کوتين فزاد له مثل ذلک واقطعه اياه و جعل مفتحه فی ارض يملکه او فی ارض لا يملکه قال انکان ذلک يضر بالعامة لم يجز و يجوز اذا لم يضر کما لا يجوز للامام ان يأخذ شرب احدهم و يعطی غيره «الفتاوی الخانية بهامش الهندية صـ۲۱۰ج ۳» و ليس قطع الماء بالکلية قيد احترازيا اذ يکفی وقوع الضرر...... و فی الانقروی عن البزازية طاحونة علی نهر اراد آخر ان يضع فوقها طاحونة اخری و بسبب وضعها يقل ماء الطاحونة القديمة و يختل دورانها فلصاحبها ان يمنع الثاني و انکان ينقص غلة الاولی بنصب الثانية ليس للاول ان يمنع الثاني کالتاجر اذا اتخذ في جنب تاجر آخر حانوتا بمثل تجارة الاول فکسدت تجارة الاول باتخاذه ليس له المنع «شرح المجلة سليم باز صـ۶۸۳»

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## عشر پر مؤجر(اجاره کونکی) ده که پر مستاجر(اصلي مالک)؟

**سوال**: د سيدعلی د محمد اخلاص زوی د هلمند د ولايت د ګرشک د ولسوالی د قلعه ګزد آخندزاده خيلو د کلي اوسيدونکی د عرض پانه، و حضور ته د جناب فضيلت مآب محترم رئيس صاحب شورای مرکزی علماء د دارالافتاء امارت اسلامی افغانستان، السلام عليکم ورحمةالله.

محترما: ما د قلعه ګزد آخندزاده خيلو په کلي کی د ګرشک د ولسوالی د هلمند د ولايت مربوط د حاجی امرالدين د ملاعبدالله آخند زوی د هغه کلي اوسيدونکی څخه يو اندازه مځکه د يو فصل لپاره په دوه نيم خرواره غنمو، او دوه منه ترياکو باندي په اجاره رانيولی وه، خو په هغه اوله ورځ مو د دغی مځکی عشر پر خپل مالک باندي کښيښود، او زمونږ د وطن عام عرف او اصطلاح هم دغه ده چه په اجاره کی عشر پر مالک شرط وی او دغه نود

اجاره داران هم که چیری عشر پخپله ورکړی ټوله تاوانی کیږی ، خو اوس د هغه ځای د عشر مسئولینو زما څخه عشر په زور او جبر واخیست ، په داسی حال کی چه مونږ څه حاصلات چه مو اخیستی وؤ ، هغه مو و مالک د مځکې ته ورکړه ، او مونږ ته هیڅ شی پاته نه سو ، او ما د دغه عشر پیسی د بل چا څخه په مزدوری پیدا کړی او زما څخه دغه زما د مزدروی پیسی د عشر په نامه را څخه واخیستی ، ما د هغه ولایت د یوه جید عالم څخه ځو شرعی مسئلی په دغه باره کی راوړی دی ، چه ستاسی فضیلت مآب و لوړ حضور ته احترامًا د ملا حظی لپاره وړاندی کیږی ، نو که په دغه باره کی مونږ ته فتوی راکړل سی چه آیا زما مظلوم څخه دغه عشر مطابق د احکام فقه حنفی شرعی محمدی ﷺ سره سم اخیستل شوي دي که خیر ، که مطابق د شریعت مسئلی او فتوی راکول سی ډیره مهربانی به مو وي.

(المستفتی سیدعلی)

**جواب** : په دغسی صورت کی لکه مستفتی چه لیکلي دي عشر یوازی پر اصلی مالک د مځکی دي نه پر إجارة دار ولی دا صورت د إجاری دی په أجرة کاملة سره او په أجرة کامله کښی فتوی پر قول د إمام صاحب ده چه عشر پر مؤجر دی یعنی پر اصلی مالک دی.

زکوة الارض علی المؤجر . . . . . وخالفه الصاحبان فقالوا الزکوة علی المستأجر (الفقه الاسلامی صـ۸۲۰ج۲) هکذافی (ردالمحتار صـ۶۰ج۲) فان امکن اخذ الاجرة کاملة یفتی بقول الامام والافبقولهما لما یلزم علیه من الضرر الواضح الذی لایقول به احد والله اعلم (تنقیح الفتاوی الحامدیة صـ۱۰ج۱) هکذافی (ردالمحتار صـ۶۰ج۲) و (امدادالفتاوی صـ۵۸ج۲)

والله تعالی اعلم ﷻ.

بسم الله الرحمن الرحيم

**په مرور زمان کي کوم عذرونه داعتبار وړ دي؟شاهدان قوي دي که اسناد؟**

**سوال** : د دارالافتاء محترم رياست ته اسلام عليکم ورحمةالله وبرکاتهُ.

محترما : ما ته د موضوع دغه ځاى مشکل دى چه ۳۸ کاله کيږى چه دغه مځکه د حاجى معاشق په ذواليد کى ده او امير المومنين أمرکړى چه د ښځى حقوق بايد تلف نه شى نو ما ته دا خبره واضحه کړى چه زه ئى ورکړم او که نه او بله خبره دا ده چه حاجى معاشق د دې مځکى اسناد نه لرى او عرفى شاهدانو د ښځو پر ملکيت باندى شاهدى اداء کړه او حاجى معاشق شاهدان تير کړل خو په شريعت کى ورته اعتبار نه ؤ ؟

(الحاج حافظ شاکرالله قاضى محکمه إبتدائية شاه ولى کوټ)

**جواب** : که چيرى مدة د مرورالزمان واقعًا تيره سوى وي او په دي مدة کى بل هيڅ عذر نه وى پيښ سوى پرته له دې چه ښځه ووايى زه د قريبانو د خوف له وجې د کوره نسوم و تلاى او قاضى ته د دغې خبرې صدق معلوم سې نو په دې صورة کى دغه مرورالزمان مانع د دوى د دعوى نسى کيدلاى دا د اميرالمؤمنين د هغه فرمان د ځلوزمى مادي تفصيل وؤ چه د ښځو د حقوقو په هکله صادر سوى دى او تاسو چه په خپله استفتاء کى ليکلي دي چه د دي موضوع (۳۸ ) کاله کيږى نو مونږ ته دانه ده معلومه چه د انقلاب کلونه تاسو څنى ايستلى دي کنه چه په دي مورد کى هم فکر کول ضرورى دي که په دې هکله د اميرالمؤمنين فرمان صادر سوى وي هغه بايد تعقيب سى او کله چه په يو موضوع کى شاهدان تير سى او قاضى يى قبول کړى نو بيا د اسنادو و وجود او عدم ته بايد اعتبار ورنکړل سى ولي د شاهدانو اعتبار په شريعت کى ډير دي تر اسنادو .

اذا اثبت المدعى دعواه بالبينة حكم الحاكم بذلک (المجلة المـ۱۸۱۸)

اي اذاشهدالشهود وجرت تزكيتهم سرا وعلنا فظهر انهم عدول ومقبولو الشهادة حكم القاضي بذلک (دررالحكام صـ۶۴۵ج۴)

والله تعالیٰ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

**که پلار تقسیم وکړي ماینې اولونې له حقه وباسي بیا مړ سي هغه تقسیم معتبر ده که نه؟**

**سوال**: عرض د طرفه د حیات الله ولد امین الله ولد سردار محمد سکونت ناحیه ۵ ښاروالی محترمًا: عرض دا دی چه زمونږ پلار امین الله چه ژوندی وو سرای ئی پر لسو زامنو راوویشی او مندي او خوندي یعنی خپلی زوجی او لونی ئی ده حقه ایستلي لکن تقسیم ئی ونکړی اوس مونږ غواړو چه خپل ویش وکړو او پلار مو هم وفات کړیدی آیا مونږ کولای سو چه سرای پر لسو زامنو وویشو او که مندی او خوندی هم حق را سره لري تاسی علماء محترم مونږ ته شرعی فیصله را کړی ؟

**جواب**: یو سړی چه ژوندی وي او خپل مال تقسیموي پر ورثه یا غیر ورثه باندي دا معنی ده هبی لری ځکه تقسیم د ترکة په حیات کی د مورث صحة نه لرَي او هبّه په قبض سره تامیږی یعنی که موهوب له هغه هبه سوی مال قبض نکړی نو دا هبة جائزه نه ده فلهذا ستاسو د پلار کړی تقسیم هیڅ اعتبار نه لری بلکه ده نوی سره څه به تاسو خپل تقسیم د میراث د قانون مطابق کوئ هر څونه حصه چه په میراث کی هر چا ته رسید له هغونه حصه به هغه ته ورکوئ مندي او خوندي ستاسو هم حق پکښی لری هغو ته بهَ هم خپلی حصصی د شریعت مقدس د حکم سره برابر ورکوئ.

( وتتم الهبة بالقبض الكامل ) فيشترط القبض قبل الموت ( ردالمحتار ص۵۶۹ج۴ ) و منها انيكون الموهوب مقبوضا حتى لا يثبت الملک للموهوب له قبل القبض ( الفتاوى الهندية ص۳۷۴ج۴ ) هكذافي ( الفقه الاسلامي ص۱۹ج۵ ) .
او که موهوب له هغه هبه سوی مال قبض کړی او تسلیم کړی ئی وي نو دا هبه جائزه او صحیح ده بیانو هغه ده پلار تقسیم معتبر دی نوی تقسیم صحت نه لری او د تسلمیی او نه تسلمیی په باره کی دی محکمه پوره معلومات وکړی او بیا دی د تیر و عبارتو مطابق فیصله وکړی

والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

**دباوړۍ او واټرپمپ په مځکه کي عشرده نصف عشر؟، په هنجه کي عشرسته کنه!**

**سوال**: و محترم حضورته دریاست د دارالافتاء.

( ١ ): هغه باغونه او مځکی چه په فعلی شرائطو کی د کال په عمومی برخه کی د باوړی په ذریعه آبیاری کیږی ځنی عالمانو عشر پکښی لازم ګڼلی دي نصف عشر ته اعتبار نه ورکوي ؟

( ٢ ): د شمالی ولایاتو په غرونو کی د هنګ په نامه دنباتاتو څخه شیره تر لاسه کیږی هلته هم اختلاف موجود دي ، چه په دغه شیره کی څۀ شی د عشر نسته چه د حبوباتو څخه خالی دي ، د دوارو مادو په هکله شرعی فتویٰ ته انتظار کیږي ؟

**نوټ**: ځنی اشخاص د ویالو څخه په ماشین اوبه راپورته کوي. او کله کله ئی د رود څخه چه ورته نږدې وي د ماشین پذریعه اوبه راکاږی.

﴿ریاست عشروزکاة﴾

**د اول سوال جواب**: هغه مځکی چه د باوړی په اوبو اوبیږي په هغه کی نصف عشر دی.

اتفق الفقهاء علی ان العشر یجب فیما سقی بغیر مؤنة ( مشقة ) کالذی یشرب من السماء ( الامطار ) و ما یشرب بعروقه و هو الذی یشرب من ماء قریب منه ویجب نصف العشر فیما سقی بالمؤن کالدوالی ( النواعیر ) النواضح و الدلیل لهم قول النبی ﷺ المتقدم ( فیما سقت السماء و العیون او کان عثریا العشر و ما سقی بالنضح نصف العشر ) و انعقد الاجماع علی ذلک ( الفقه الاسلامی صـ١٨٩٢ج ٣ ط جدید ) ( ردالمحتار صـ٥٥ج ٢ ) ( احسن الفتاویٰ صـ٣٥٥ج ۴ ) و لوسقی سیحا وبالة اعتبر الغالب ( الدرالختار ) قوله اعتبر الغالب ای اکثر السنة ( ردالمحتار صـ٥٥ج ٢ ).

**د دوهم سوال جواب**: که چیری دغه (انجه) د هغه شیانو څخه وي چه د مځکی په قبضه کولو کی مقصود نه وی یعنی دومره مهم نه وي چه خلق خاص د دغه لپاره د مځکی استغلال کوي نو عشر نسته پکښی.

ولا یجب العشر فی التبن ولا فی الحطب والحشیش والقنب والصنوبر والقصب الفارسی ولا فی سعف النخل..... ولایجب العشر فیما کان من الادویة کالموز والهلیلجة ولا فی الکندرو الصمغ (فتاوی قاضیخان بهامش الفتاوی الهندیة صـ۲۷۶ج۱) یجب العشر فی عسل..... الافیما لا یقصد به استغلال الارضّ نحو حطب و قصب فارسی و حشیش و تبن و سعف و صمغ..... وادویة کحلبة و شو نیز حتی لواشغل ارضه بها یجب العشر (الدرالمختار) قوله فیما لا یقصد..... . وان المدار علی القصد حتی لو قصد به ذلک وجب العشر کما صرح به بعده (ردالمحتار صـ۵۵ج۲) هکذافی (الفقه الاسلامی صـ۸۰۲ج۲).

**د دریم سوال جواب**: که چیری دوی د دغه ویالی څهٔ بغیر له ماشینه استفاده نکوله یوازی په ماشین باندی دغه مځکه او بیده نو نصف عشر لازمیږی لکه د اول سوال په جواب کی چه تیره شوه او که دواړه رقمه استفاده څنی کیدله نو که غالبه استفاده په ماشین وه نصف عشر دی او که غالبه بی ماشینه وه نو عشر دی لکه چه تیره شوه.

والله تعالیٰﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دپاره زکاة

**سوال** : د دارالافتاء محترم رياست ته السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته.
محترما : د فارم نوروزی د غنمو حاصلات د زراعت وریاست ته انتقال او زکاة ئی ورکول سوی دی اوس د پروړو د زکاة په هکله مونږ معلومات نه لرو چه په څه طریقه یی ورکړو هیله من یو د پاره د زکات په هکله معلومات راکړی چه په کومه طريقه يعنی په څه ډول یی ورکړو ؟

(ملاعبدالغنی اخند د زراعت رئيس)

**جواب** : په پروړ کی زکاة یعنی عشر نسته مګر هغه وقت که د مځکی په کرلو کی دغه پروړ مقصود ګرځیدلی وو او علامه د مقصود والی د پروړ دغه ده چه مځکی تر رسیدلو د غنمو وریبل سی چه په دي وقت کی نو عشر لازمیږی.

ولايجب العشر فی التين ولافی الحطب و الحشيش الخ (فتاوی قاضيخان بهامش الهندية صـ۲۷۶ج۱) هکذافی (الدرالمختار بهامش الطحطاوی صـ۴۱۸ج۱) (الفتاوی الانقروية صـ۱۰ج۱) وانما لم يجب فی التبن لانه غير مقصود بزراعة الحب غيرانه لو قصله قبل انعقاد الحب وجب العشر فيه لانه صار هو المقصود (فتح القدير صـ۱۹۰ج۲) هکذافی (ردالمحتار صـ۵۵ج۲)

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## په زکات امامت جواز لري کنه؟

**سوال** : بمقام ریاست دارالافتاء السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهُ.
وبعد : فنحن نستفتی منکم وهی مایتروج فی افغانستان و بالخصوص فی و لایتي غور والهلمند ان العلماء یأمون الناس بمقابلة العشر والزکوة۔ اتجوز زکوتهم و عشرهم ام لا؟
ایجوزللامام اخذالزکوة والعشر بمقابلة امامته ام لا؟ وفی بعض الاوقات یصرحون بها ویقولون انی امتُ لکم بشرط أن تعطونَی عشرکم مکملاً۔ وفی بعض الاوقات لا یقولون مصرحاً بل یئمهم وهم یعطونه۔ افرق بین التصریح و عدم التصریح ام لا؟

**جواب** : یشترط فی العشر والزکاة ان یکونا خالصین لوجه الله تعالی لا یکون فیهما شائبة الاجرة والاغراض الدنیویة فکل واحد من العشر والزکاة اذا اعطی للامام بمقابلة امامته لا یبرء ذمة المعطی ولا یصح زکوته ولا عشره لانه صارحینئذ اجرة الامامة ولم یبق خالصا لله تعالی و ایضًا یشترط فی الامام (غیرالعامل) انیکون فقیرا او مسکینا و غالب ائمة المساجد فی زماننا لیسوا کذلک فمن اعطی الزکاة او العشر للامام المسکین ناظرا الی مسکنته و فقره فقط ولم ینو الاجرة اصلاً بحیث لوکان الامام غنیا لما أعطاه الیه یصح زکاته و عشره و لوکان الامام غنیا او المعطی ناویًا للاجرة لم یصح زکاته و عشره فالاولی ان ینصب الامام بمقابلة أجرة معینة غیر العشر والزکاة و یقول له القوم ان اعطاء الزکاة و العشر هو فی اختیارنا نعطیه لمن نشأ فبعد ذلک ان اعطی الیه الزکاة او العشر لمسکنته و فقره کان صحیحا.
اعلم ان الفقیر شرط فی جمیع الاصناف الاالعامل کما سیجئ (الدرالمنتقی بهامش مجمع الانهر صـ۲۲۰ج۱) (وحاشیة الطحطاوی علی الدرالمختار صـ۴۲۳ج۱) ولا (ای لاتحل) الی غنی یملک قدرنصاب فارغ عن

حاجته الاصلية من ای مال كان (الدرالمختار بهامش الطحطاوی صـ۴۲۷ج۱) (لله تعالى) بيان لاشتراط النية (الدرالختار) قوله بيان لاشتراط النية فانها شرط بالاجماع فی مقاصد العبادات كلها بحر (ردالمحتار صـ۴ج۲) هكذافی (الفتاوی الهندية صـ۱۷۰ج۱) قوله لله تعالى ﷻ لان الزكاة عبادة ولابد فيها من الاخلاص لله تعالى لقوله تعالى وما امروا الاليعبدوا الله مخلصين له الدين (تبيين الحقائق صـ۲۵۲ج۱) ولو نوى الزكاة بما يدفع المعلم الى الخليفة ای الى خلفه ومعاونه ولم يستأجره انكان الخليفة بحال لولم يدفعه يعلم الصبيان ايضًا اجزأه والافلا وكذا مايدفعه الى الخدم من الرجال والنساء فی الاعياد و غيرها بنية الزكاة (الفتاوی الهندية صـ۱۹۰ج۱)

امام کیلئے بعوض امامت زکوۃ دینا جائز نہیں ہیں ولاحیلۃ لجواز ذلک اصلاً (امدادالاحکام ص-۹۶ج۲) امام کو بعوض امامت اس میں سے دینا اور اس کو لینا درست نہیں ہے فقط البتہ اگریہ رقم مشاہرہ کی علاوہ الگ سے محتاج سمجیں کردی جائی اوروہ مستحق زکوۃ ہیں تو درست ہے (فتاوی دارالعلوم دیوبند ص-۲۱۳ج۶ ص-۲۱۲ج۶ ص-۲۷۵ج۶) هكذافی (خیرالفتاوی ص-۳۱۶ج۳) (امدادالمفتین ص-۳۶۱) فتاوی محمودیۃ ص-۳۴۳ج۳) (احسن الفتاوی ص-۲۶۲ج۴)

والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## للمي مځکې چې جاري اوبه نه لري په دې خراج دي که عشر؟

**سوال**: د هرات ولايت رئيس صاحب عشر زمونږ رياست ته راغلی اظهار کوی چه د هرات ولايت هغه مځکی چه اوبه ور رسيږی خراجی دي د هغه ولايت د علماء په فتوی هغه مځکی چه د علف چر په نامه ياديږي للمی کاری چه جاری اوبه نه لری هغه هم آبياری مځکو ته تابع دي يعنی خراجی او املاکی دي حکومت ئی په اجاره ورکوي القصه هغه للمی کاری مځکی چه د هرات خلق ئی خودسرانه کار وکښت پکښی کوي بيغر د اجازی د دولت څخه عشر

پکښې راځي او که ئې په حاصلو کې خراج مقرر دی او که حکومت اجاره څنې واخلي شرعي فتوی ته سترګې په لاریو ؟

مسئول عمومی عشر وزکوة ملاحمید الله اخند

**جـواب** : محترمـه ستاسـو پـه استفتاء کـې دوه ۲ قـسمه مځکـې ذکـر سوي دي يـو علـف چر مځکې او بل للمې کاري مځکې د دواړو مځکو احکام مختلف دي دواړه بايد په يوه رقم حساب نسی د علف چر مځکو حکم دا دی چه نه عشر پکښې سته او نه خراج او نه په إجاره ورکول کیږي دا ځکه چه د علف چر مځکو احیأ هیڅکله نده جائز نه بناء کول باندی جائز دی او نه يـې کـرل جائز دي او د للمـې کـارو مځکو ( یعنـی هغـه مځکـې چه د احیاء څه تر مخه د حکومت یارعیت شخصي مملوکې نه وي او د خلقو د استفادی لپاره نه وي پرېښوول سوی او اوبه نه لری ) حکم دا دی چه که عشري مځکو تـه نزدی وه عـشر پکښې سته او که خراجي مځکو ته نزدی وه خراج پکښې سته او که يو څنګ ته يې عشريه بل څنګ تـه يـې خراجيه وه نو که دغه ابادونکی ئې مسلمان وو دا مځکه عشر يـه ده .او بل حکم يـې دا دی چه که پخوا خلقـو کرلـې وي بيلـه اجـازې د حکومـت نـو اوس يـې حکومـت څنـې اخـستلای سـې او کـه د حکومت په اجازه ئې اباده کړې وي نو د خلقو شخصي ګرځي او د حکومت اجازه دوه قـسمه ۲ ده ( اول ) دا چه اجازه د ملکیت ورکړي یعنـی چه آینده بـې ابادوونکی شخصي مالـک وي( دوهم ) دا چه اجازه د منفعت اخستلو ورکړي فـقط پدې صورت کې يـې مالـک حکومـت دی . او بـل حکـم يـې دا دی چـه حکومـت يـې پـه دوه شکله کې پـه اجاره ورکولای سـې اول دا چه حکومت يي پخپله اباده کړي اودوهم داچه خلقوتـه ئي إجازه د منفعت کړي وي او څو عمر پس بيرته حکومت څنې اخستې وي او خپل په تصرف کښې ئې راوستلی وی.

اذابنـی او غـرس فـی ارضٌ متروکـة لمنـافـع العامة كـالطريق والمرعـی فانـه يـؤمر بـالقلـع فـی كـل حـال ای و لـو كـان القلـع مـضرا بـالارضٌ او كـان قدبنـی او غرس بتأويل ملک اذلبس لبعض العامة او لكلهـم اذا اجتمعـوا ان يحولا هـذه الارضٌ لغيرما وضعت له فی اصل ( شرح المجلة سليم بازصـ۵۰۴ )

ماکان من مرافق اهل بلدة يستعمل مرعى للمواشى و محتطبا لهم او مقبرة لمو تاهم او ملعبا لصغارهم سواء كانت داخل البلدة ام خارجها فيكون حقالهم لا مواتا ( الفقه الاسلامی صـ۵۴۳ج ۵ ) ( الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۳۰۸ج ۵ ) ( سليم باز صـ۶۸۸ ) ولو ان صحراء خارج البلد قريب منها جرزا انقطع ماء او امكنة عظيمة لم يكن ملكا لاحد كان ذلک ارض موات ( فتاوى سراجية صـ۱۳۸ ) والموات هو ما لا يملكه احد ولا ينتفع به من الاراضى لانقطاع الماء عنه او لغلبة الماء عليه و ما اشبه ذلک مما يمنع الزراعة بان غلبت عليه الرمال مثلا ولا يكون مملوكا لمسلم او ذمى ( الفقه الاسلامی صـ۵۴۳ج ۵ ) هكذافى ( ردالمحتار صـ۳۰۶ج ۵ ) ( بدائع الصنائع صـ۲۰۲ج ۶ ) و من احيا ارضا ميتة بغير اذن الامام لا يملكها فى قول ابى حنيفة . و قال صاحباه يملكها ( الفتاوى الهندية صـ۳۸۶ج ۵ ) اذا احيا شخص ارضا من الاراضى الموات بالاذن السلطانى صار مالكالها و ان أذن السلطان او وكيله لشخص باحياء ارض على ان لايكون متملكا بل لمجرد الانتفاع فذلک الشخص يتصرف بتلک الارض كما اذن له لكن لا يكون مالكا لتلک الارض ( المجلة المـ۱۲۷۲ ) قوله ولوا حياه مسلم اعتبر قربه اى قرب ما احياه انكان الى أرض الخراج اقرب كانت خراجية او انكان الى العشر اقرب فعشرية نهر و انكانت بينهما فعشرية مراعاة لجانب المسلم ( ردالمحتار صـ۲۸۴ج ۲ ) هكذافى ( الفتاوى الهندية صـ۳۸۸ج ۵ ) المحيى هو الذى يباشر الاحياء الذى هو من اسباب الاختصاص او التملک ( الفقه الاسلامی صـ۵۵۹ج ۵ ) و قال عامة الفقهاء الثابت بالاحياء هو حق الملكية المطلقة . . . . . وبناء عليه نص الحنفية انه لو ترک المحيى الارض بعدالاحياء و زرعها غيره فالاول احق بها فى الاصح ( الفقه الاسلامی صـ۵۶۳ج ۵ )

والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

**که دهندو مځکه اجاره سي په حاصلوکي ئې عشر سته کنه؟**

**سوال**: محترم مولوی صاحب السلام علیکم.اما بعد: زما عرض دا دی د قضایای امارت لخوا دهندو مځکه ماته په اجاره راکول سوه د هندو د مځکی پوره حصول چه زما حق دی زما پر حصه زکات سته او که نسته زه ستاسو څه خواهش کوم چه شرعی مسئله راکړی.

(حاجی ملانورگل اخند)

**جواب**: هغه مځکه چه اصلی مالک یی هندو یا بل کافر وي په دي شرط چه تغلبی نه وی نو د ده پر مځکه زکات یا عشر نسته بلکه یوازی خراج دی همدارنگه که یو هندو د مسلمان څه عشری مځکه رانیسی عشر نه پر لازمیږی بلکه هندو به خراج ورکوی.

واخذ الخراج من ذمی غیر تغلبی اشتری ارضا عشریة من مسلم وقبضها منه للتنافی (الدرالمختار) قوله للتنافی علة لقوله واخذ الخراج یعنی انما وجب الخراج لا العشر لان فی العشر معنی العبادة والکفرینافیهاح (ردالمحتار ص۵۶ج۲) وکالاسلام فلا تجب علی الکافر لان فیها معنی العبادة (الفقه الاسلامی ص۸۰۲ج۲) هکذافی (مجمع الانهر ص۲۱۷ج۱)

او خراج که چیری موظف وو یعنی سواله حصول څه د مځکی بل شی مقرر وو لکه نقدی پیسی مثلا نو هغه خراج اتفاقا پر هندو کیږي او کچیری خراج مقاسمة وو یعنی د مځکی د حصول څه یو اندازه غوبنتل کیدی.نو به و گورو که چیری دغه مځکه په اجارة کاملة ورکول سوی وه نو دغه خراج به اجاره دار ورکوی او که په اجاره ناقصه ورکول سوی وه نو به یی

هندو یا د هغه وکیل تأدیة کوی او اجارة کاملة دی ته وای چه اجاره دار ته پس له اداکولو د خراج او نورو مصارفو پوره ګټه پاته سی او اجارة ناقصه دي ته وایی چه که اجاره دار خراج ورکی او نور مصارف ادا کړی نو ده ته ګټه نه پاته کیږی

والعشر علی المؤجر کخراج مؤظف و قالا علی المستأجر (الدرالمختار) قوله کخراج مؤظف فانه علی المؤجر اتفاقا..... و اما خراج المقاسمة وهوکون الواجب جزء اشائعا من الخارج کثلث و سدس و نحوهما فعلی الخلاف (ردالمحتار ص۶۰ج۲) فان امکن اخذ الاجرة کاملة یفتی بقول الامام والافبقولهما لما یلزم علیه من الضرر الواضح الذی لا یقول به احد (ردالمحتار ص۶۰ج۲) هکذافی (تنقیح الفتاوی الحامدیة ص۱۰ج۱)

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

**که دسکنی په نیت مځکه رانیسی سرای**
**جوړ نه کړي دغه سړي ته زکاة ورکول روادي کنه؟**

**سوال**: که یو سړی مځکه په نیت د سکنی رانیوله په دې نیت چه سرای به پر جوړوم یا خو به ئی خرڅه کړم یو څه روپی به نوری ورسره جمع کړم بل ځای به مځکه د سرای په رانیسم، سړی د سکون ځای نه لری نه نقدی روپی لری نه د زراعت لپاره ده او د مځکی قیمت ۵۰۰۰۰ کلداری کیږي، دغه سړی زکاة اخستای سی که یا او که غنی بلل کیږي؟

**جواب**: دغه سړی چه مځکه په نیت د خپلی سکنی رانیولی ده که ئی خپل سرای نه درلودی او نه ئی پرته له دغې مځکې څخه او پرته له خپلو ضروریاتو څخه بل نصاب درلودی نو زکوة اخستل ورته جائز دي او که ئی دغه مځکه د ګټې لپاره رانیولې یعنی دا چه په آینده کی به دغه مځکه ګټه وکړی د هغه سره به نوری پیسی یو ځای کړم سرای به را نیسم او د ده او د

عيال نفقه د بلی خوا څه پوره کيدله نو بيا زکوة اخستل ورته جائز نه دی او که يی دګټی نيت نه وو خالی د خپل ځان او کور سکنی يی مطلوب وه نو بيا مانع د زکوة نګرځی.

ولايجوز دفع الزكوة الى من يملك نصابا اىّ مال كان دنانير اودراهم او سوائم او عروضا للتجارة او لغير التجارة فاضلا عن حاجته فى جميع السنة هكذافى الزاهدى و الشرط أن يكون فاضلا عن حاجته الاصلية وهى مسكنه و أثاث مسكنه و ثيابه و خادمه و مركبه و سلاحه ﴿الفتاوى الهندية صـ۱۸۹ج۱﴾ (الفقير) وهو من له ادنى شئ اى دون نصاب او قدر نصاب غير نام مستغرق فى الحاجة (الدرالمختار) قوله مستغرق فى الحاجة اما اذالم يكن محتاجا اليه فتحرم عليه الزكوة ولا تجب عليه ﴿حاشية الطحطاوى على الدرالختار صـ۴۲۳ج۱﴾ ولا الى غنى يملك قدر نصاب فارغ عن حاجته الاصلية من اى مال كان (الدرالمختار) قوله فارغ اما لوكان مستغرقابها حلت قوله من اى مال كان ـ نقدًا او عروض تجارة او سائمة ﴿طحطاوى على الدرالمختار صـ۴۲۷ج۱﴾

قوله من اى مال كان يعنى سواء كان دراهم او دنانير او سوائم او عروضًا للتجارة او غير التجارة لكنه فاضل عن حاجته فى جميع السنة آه ﴿هامش تبيين الحقائق صـ۳۰۲ج۱﴾ وهكذافى ﴿الجوهرة النيرة صـ۱۶۹ج۱﴾ ﴿احسن الفتاوى صـ۳۰۱ج۴﴾

تجارت کی نیت سے خرید کردہ زمین اور مکان اور برائی فروخت تعمیر کردہ مکانات کی موجودہ مالیت پر زکوۃ فرض ہیں ﴿احسن الفتاوی ص۳۰۹ج۴﴾۔ سوال: ایک بیوہ عورت کی پاس ۳۰۔۴۰ بیگہ (زمین کی ایک مقدار) زمین ہیں مگر گرانی وخشک سالی کی وجہ سے اسکی پاس گذارہ کی موافق آمدنی نہیں اگر کوئی رشتہ دار اس کو زکوۃ دیدی تو ادا ہوگی یا نہیں.....

الجواب: اس صورت میں زکوۃ ادا ہو جاوے گی ﴿فتاوی دارالعلوم دیوبند ص۲۶۱ج۶﴾.

٥

بسم الله الرحمن الرحيم

## كه ښځه پر چا ناره وكړه (دازما ميړه ده) دانكاح سوه كه نوی نكاح تړل غواړي؟

**سوال** : يوه ښځه چه كونډه وي د يو څو كسانو په مخ كی پر يو سړی باندي ناره وكړي چه دا سړی زما ميړه دی او بالمقابل هغه سړی په دغی ښځی باندي ناره وكړي چه دا زما مابنه دہ ايا اوس د دوی نكاح په شريعت مقدس كی جواز لري كه څنگه ؟ (مستفتي بادام)

**جواب** : دغه نر او ښځی چه دغه الفاظ ويلی دي د څو كسانو په مخ كی چه دا سړی زما ميړه دی او دا زما مابنه دہ كه د دوی په نيت كی نوی نكاح تړل وي نو صحت لري او كه ئی مطلب دا وي چه پخوا دا سړی زما ميړه وو يا پخوا دا زما مابنه وه او پخوا د دوی په مابين كی نكاح نه وه نو بيا نكاح نه صحيح كيږي په دي الفاظو سره بلكه نوی عقد به كوي.خو كه چيری د دوی مطلب نوی نكاح وي هم بايد محكمی ته ورسی او دانكاح په قاضی سره تأييد كړي لپاره د احتياط.

كما اذا قال هذه امرء تی و قالت هذا زوجي لا ينعقد به لان الاقرار اظهار لما هو ثابت وليس بانشاء و صحح فی الذخيرة ان بالاقرار بمحضر الشهود صح النكاح و جعل انشاء والافلا (مجمع الانهر صـ٣١٨ج١) هكذافی (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ٢٦٥ج٢) (الفتاوی الهندية صـ٢٧٢ج١) وقال فی الفتح قال قاضيخان و ينبغي انيكون الجواب علی التفصيل ان اقرا بعقد ماضٍ ولم يكن بينهما عقد لا يكون نكاحا و ان اقرالرجل انه زوجها و هی انها زوجته يكون نكاحا و يتضمن اقرارهما الانشاء بخلاف اقرارهما بماضٍ لانه كذب (ردالمحتار صـ٢٨٨ج٢) هكذافی (امدادالفتاوی صـ٢٣٤ج٢) كما لو قال هذه امرء تی فقالت نعم لا ينعقد الا ان يقصد انشاء العقد او يقضی به القاضی وهذا دليل علی ان القضاء صحيح فی الختلف عند المشايخ كما فی قهستانی عن المحيط (الدرالمنتقی بهامش مجمع النهر صـ٣١٨ج١) و فی شرح الجصاص الختار انه ينعقد اذا قضی بالنكاح (الفتاوی الهندية صـ٢٧٢ج١)

والله تعالی ﷻ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## دعشر اونصف عشر په اړه چې اکثر السن ذکرکي قمري کال دي که شمسي؟

**سوال** : و حضورته د محترم رئیس دارالافتاء ترټولو مخکښی سلام عرض ومنه وروسته له سلامه.

دا مسئله ستاسو حضور ته وړاندی کوم۔ چه یو باغ لکه انار او انځر چه د ماشین او ولی په اوبو سره ګټه اوبه سوی وي خو اکثر د سنی معتبر دی د عشر او نصف عشر لپاره دا د سنی اطلاق پر هجری قمری باندی کیږی او که پر هجری شمسی سنی باندي کیږی او دا ځان ته یو ټاکلی وخت لری نو د دغه سنی معلومات که راکړل سی ډیره مهربانی به مو وي ؟

**جواب** : محترمه په عشر او نصف عشر کی حولان د حول او تیریدل د پوره کال ضروری ندی او کله چه کال نوی پوره سوی نو پر هغه باندي د شمسی یا قمری سنی تعین او اطلاق نسو کولای او په هغه عبارتونو کی چه اکثر السنة راغلی دي د هغه څه مراد هغه زمانه ده چه د باغ د یوه حاصل او بل حاصل تر مابین تیریږي نه حقیقی قمری یا شمسی سنة او که هغه مراد سی نو بیا ئی د دي عبارت سره تضاد واقع کیږي چه فقهاء وایی په عشر کی حولان د حول نه غواړی.

بلا شرط نصاب راجع للكل و بلاشرط بقاء وحولان حول (الدرالمختار) قوله وحولان حول حتى لو اخرجت الارض مرارا وجب فى كل مرة لا طلاق النصوص عن قيد الحول (ردالمحتار صـ۵۴ج۲) هكذافى (الهداية و فتح القدير صـ۱۹۰ج۲) السنة۔ مقدار قطع الشمس البروج الاثنى عشر وهى السنة الشمسية و تمام اثنتى عشرة دورة القمر و هى السنة القمرية وفى عرف الشرع

کل یوم الی مثله من القابل من الشهُور القمریة و فی العرف العام کل یوم الی مثله القابل من السنة الشمسية الخ ﴿المعجم الوسيط صـ۴۵۶﴾.

**باید ووایو** : چه د فقهی د کتابو څه دا معلومیږي چه مراد او مطلوب کثرة د اوبو دي یعنی که په تیر کال کی ډیري اوبه د ماشین ورته راغلی وي نصف عشر دی او که ډیري اوبه د باران ورته راغلی وي نو پوره عشر دی مراد څنی تعداد د نوبتونو نه دی او اکثر السنة په هغه صورت کی معتبر دی چه په تیرو وقتونو کی په مساوي ډول اوبه سوي وي.

وان سقی باحدهما اکثر من الاخر اعتبر اکثرهما فوجب مقتضاه وسقط حکم الاخر نص علیه احمد و هو قول عطاء و النوزی و ابی حنیفة واحد قولی الشافعی و قال ابن حامد یؤخذ بالقسط..... ووجه الاول ان اعتبار مقدار السقی وعدد مراته وقدرما یشرب فی کل سقیة یشق و لیعذر فکان الحکم للاغلب منهما کالسوم فی الماشیة ﴿المغنی لابن قدامة صـ۱۶۶ج۴﴾ ولو سقی سیحاو بآلة اعتبر الغالب ﴿الدرالمختاربهامش ردالمحتار صـ۵۵ج۲﴾ ﴿هکذافی احسن الفتاوی صـ۳۲۷ج۴﴾.

بسم الله الرحمن الرحيم

**که پلار زامنوته تقسیم ورکړي دوي تصرف هم وکړي دی مړسي له مرګه وروسته ئې لور پیداسي دغه لورئې په مورثه کي حق لري کنه؟**

و حضورته د مرکزی دارالافتاء علماء کرامو السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته و بعد:

**سوال** : زما خپل پلار حاجی زمان خان په خپل ژوند کی و خپلو زامنو ته چه په پوره صحت کامل وو خپل ملک د خپلو زامنو په مابین کی تقسیم کړیدی ، چه په دغه خپل ملک کی د خپلو ورونو ته هیڅ حق نه دی ورکړی او صرف و زامنو ته ئی ورکړیدی کله چه ده خپل تقسیم و زامنو ته ورکړی ، دی دوه کاله خپله ژوندی ؤو او د ده زامنو په دغه تقسیم سوی ملک کي

خپل تصرف کړیدی او دی داسی د صحت خاوند ؤو چه د ده تر مرګ وروسته ۳ میاشتی بعد د ده خپله لور پیدا شویده . چه فعلاً د دغه حاجی زمان خان یوه لور غوښتونکی د مؤرثه حق ده نو زه ستا د مقام څخه هیله کوم چه د رویه د شریعت و مونږ ته معلومات راکړی چه دغه د ده لونی چه د ده حق نه دی خپل په ژوند کی ورکړی ، اوس د حق مستحق ګڼل کیږی او کیا او تر څو نظر په هدایت ستاسی مونږ هغه کار و کړو آینده او زمونږ مشکل حل سی دا به ستاسی لویه و سیله وی ؟

او محترمه فه کاملیة صفحه ۱۸۲کی داسی مسئله ده چه هبه د مشاع وفقیرینو ته صحیح ده ایا دغه مسئله همدارقم په نورو کتابو کی وارده ده او که ترجیح عدم صحت لری ددی خبری معلومات که راکی الله پاک دي اجرونه درکړی.

(ملا داد محمد)

**جواب** : دغه مال چه پلار و زامنو ته پر دغه طَریقه تقسیم کړی دی چه په استفتاء کی ذکر سوی دی دا هبه صحت نه لری بلکه دا هبه د مشاع ده او هبه د مشاع چه په وخت کی د قبض ئی هم تقسیم و نسی صحت نه لری او که پلار دغه مځکه ۱۲ ځایه کړی وای او زامنو ته یی ورکړی وای نو هبه صحیح کیدله ، حاصل دا چه دغه تقسیم سوی باغ او مځکه به بیر ته د میراث په طریقه ټوله وارثانو ته ورکول کیږی که زامن دی او که لونی ، او دا خبره چه هبة د مشاع و فقراء ته صحیح ده مفتی به او صحیح قول دی لکن شرط یی دا دی چه غنی یعنی مالک د نصاب به نه وی پکښی کی نو په هر نمبر څلور کی که غنی نه وو یعنی ټوله فقراء وه هبه ورته صحیح د ه او که یو غنی پکښی کی وو هبه نه ورته صحیح کیږی ، او بله وجه د نه صحت د هبی په استفتاء کی دا هم ده چه په ټولو نمبرو کی صغیرا و بالغ سره ګډ دی ، او که په دغه زامنو کی هر یوه خپله حصه ضائع کړی وه او د لاسه یی ایستلی وی نو مجبور دی چه تاوان به ئي را اخلی او په مال میراث کی به یی شاملوی او پر شرعی طریقه به ئی تقسیموی.

ولو سلمه شائعا لا یملکه فلا ینفذ تصرفه فیه فیضمنه و ینفذ تصرف الواهب (اندرالمختار) و ذکر قبله هبة المشاع فیما یقسم لا تفید الملک عند ابی

حنیفة و فی القهستانی لا تفید الملک و هو المختار کما فی المضمرات و هذ امروی عن ابی حنیفة وهو الصحیح آہ فحیث علمت انہ ظاہر الروایة وانہ نص علیہ محمد ورووہ عن ابیحنیفة ظہر انہ الذی علیہ العمل و ان صرح بان المفتی بہ خلافہ و لا سیما انہ یکون ملکا خبیثا کما یاتی و یکون مضمونا کما علمتہ فلم یجد نفعا للموهوب لہ فاغتنمہ ﴿ردالمحتار صـ۵۱۱ج ۴ بیروت﴾ ھکذافی ﴿الکاملیة صـ۱۸۲ و ۱۷۲﴾ ﴿احسن الفتاوی صـ۲۶۱ج ۷﴾.

راجح اور مفتی بہ قول یہ ہیں کہ ملک ثابت نہیں ہوتی اس لئے رد علی الورثہ واجب ہیں بصورت ہلاک ضمان آئی گا ﴿احسن الفتاوی صـ۲۶۱ج۷﴾.

ولو قال وهبت منکما ھذہ الدا روالموهوب لھما فقیران صحت الھبة بالاجماع تاتارخانیة ﴿ردالمحتار صـ۵۱۴ج ۴ بیروت﴾ ھکذافی ﴿الفتاوی الھندیة صـ۳۷۸ج ۴﴾ ﴿والفتاوی الکاملیة صـ۱۸۶﴾ والصدقة کالھبة بجامع التبرع و حینئذ لا تصح غیر مقبوضة ولا فی مشاع یقسم (الدرالمختار) فانقلت قدم ان الصدقة لفقیرین جائزة..... قلت المراد ھنا من المشاع ان یھب بعضہ لواحد فقط فحینئذ ھو مشاع یحتمل القسمة بخلاف الفقیرین فانہ لا شیوع کما تقدم بحر ﴿ردالمحتار صـ۵۲۲ج ۴ بیروت﴾ ولا تصح فی مشاع یقسم ای یحتمل القسمة کسھم من الدار عند الامام ﴿مجمع الانھر صـ۳۶۷ج ۲﴾ لو وھب لکبیر و صغیر فی عیال الکبیر او لابنیہ صغیر و کبیر لم یجز اتفاقا (الدرالمختار) قولہ فی عیال الکبیر صوابہ فی عیال الواھب کما یدل علیہ کلام البحر قولہ اولا بنیہ الخ عبارة الخانیة وھب دارہ لابنین لہ احدھما صغیر فی عیالہ کانت الھبة فاسدة عند الکل ﴿ردالمحتار صـ۵۱۴ج ۴ بیروت﴾

واللہ تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## دولسوالی په مرکزکي دجمعې لمونځ جواز لري کنه؟

**سوال**: د دامان په ولسوالی کی د جمعی لمونځ جائز دی کنه په نوموړی ولسوالی کی یوه دینی مدرسه ستهٔ چه تقریباً ۱۵۰ نفره طالبان درس وايي او ۲۰ دکانونه لري او دنسجي فبریکی کارکوونکی هم په داغه ځای ارتباط لري؟

(حاجی مولوی غلام حبیب صاحب ریاست امر بالمعروف نهی وعن المنکر)

**جواب**: دولسوالی په مرکزکی چه ولسوال او قاضی وجود ولری نو د جمعی لمونځ کول پکښی جائز دی ولی هرهغه ځای چه هلته د حکومت نائب یا قاضی وي نو هغه حکم د مصر لری.

والمصر عند ابی حنیفة کل موضع ای بلد له مفتی یرجع الیه فی الحوادث و امیر و قاضی فی ظاهر الروية قال قاضیخان و علیه الاعتماد مراقی الفلاح شرح نورالايضاح قوله عند ابی حنیفة صرح به فی التحفة عنه ورواه الحسن عنه فی کتاب الصلاة کذافی غایة البیان وبه اخذ ابویوسف وهو ظاهر المنهب کمافی الهدایة و اختاره الکرخی والقدوری وفی العنایة هوظاهر الروایة و علیه اکثرالفقهاء (طحطاوی علی مراقی الفلاح صـ ۳۳۲) هکذافی (شرح المیدانی علی القدوری المسمی باللباب فی شرح الکتاب صـ۱۰۹ج۱) ثم اختلفوافی تفسیرالمصر اختلافاکثیرا والحدالصحیح ما اختاره صاحب الهدایة انه الذی له امیر وقاضی ینفذ الاحکام ویقیم الحدود وعن محمد ان کل موضع مصره الامام فهو مصر حتی انه لوبعث الی قریة نائبالاقامة الحدودوالقصاص تصیر مصرافاذا عزله تلحق بالقری (غنیة المستملی شرح منیة المصلی مجتبائی صـ۵۱۱).

والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## په مسجدکي ناستو خلګو ته سلام اچول څه حکم لري؟

**سوال** : د دارالافتاء رياست محترم رئيس صاحب السلام عليکم ورحمة الله وبر کاتـــه.
سلام ويل په مسجد کی څه حکم لری يعنی چه سلام څوک په مسجد کښی وائی سنت دی که مکروه دی که بل حکم لريَ؟ ﴿مستفتی حاجی محمد قاسم﴾

**جواب** : که چيری په مسجد کی ذاکرين ناست وی يا نورکسان وی چی په تسبيح تهليل اخته وی يا وجماعت ته منتظر وی نو د حضرت امام صاحب مبارک (رحمة الله عليه) پر مذهب باندی که يو سړی مسجد ته راسی نو د ده د پاره سلام ويل مکروه دی ځکه چه د ده د سلام په وجه بعضي کسانو ته په شغل او حضورکی خلل واقع کيږی او که بيا هم يو څوک سلام ووايي نو پر دغه کسانو ئی جواب نه واجبيږی.

السلام تحية الزائرين والذين جلسوا فی المسجد للقراءة و التسبيح اولانتظار الصلاة ماجلسوا فيه لدخول الزائرين عليهم فليس هذا آوان السلام فلايسلم عليهم ولهذاقالوا لو سلم عليهم الداخل وسعهم ان لايجيبوه كذافی القنية يكره السلام عند قراءة القرآن جهراً وكذاعند مذاكرة العلم و عند الاذان و الاقامة والصحيح انه لايردفی هذه المواضع ايضاً كذافی الغياثية ﴿الفتاوی الهندية صـ ۳۲۵ ج ۵﴾ فيكره السلام علی مشتغل بذكر الله تعالیٰ بای وجه كان رحمتی ﴿ردالمحتار صـ ۴۶۵ ج ۱﴾ ومفاده ان كل محل لايشرع فيه السلام لايجب ردهُ وفی شرع الشرعة صرح الفقهاء بعدم وجوب الردفی بعض المواضع القاضی اذاسلم عليه الخصمان .... والجالسين فی المسجد لتسبيح او قراءة وذكر حال التذكير ﴿ردالمحتار صـ ۴۵۷ ج ۱﴾ وهكذافی ﴿فتح الباری شرح صحيح البخاری صـ ۱۷ ج ۱۱﴾ و ﴿الفقه السلامی صـ ۵۷۸ ج ۳﴾ و ايضًا حكم بكراهة السلام فی المسجد فی ﴿امدادالفتاوی صـ ۲۷۸ ج ۴﴾ ﴿واحسن الفتاوی صـ ۱۳۶-۸۹۰﴾ والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دصغیري په نکاح کي ایجاب اوقبول ، شاهدان او ولي توب شرط دي

**سوال** : زه بی بی مینا داسی وایم کله چه زما پلار مړسو نوزه او زما مور پا تـه شوو نو زما مور داسی بیان کوی چه په هغه وخت کی زما یو تر بور میلمستیا جوړه کړه خلق یی را ټول کړل او ته په هغه وخت کښی د ۲ کا لو وی نو دغه تر بور خلقو ته وویل چه دامور یی زما د یوه زوی ښځه ده او دا انجلی زما د دا یل زوی ښځه ده خوزه چه کله په ښه او بد پوه شوی یم دا وایم چه زه دا سړی نه کوم او زما تربور دا دعوه کوي چه زما د زوی ښځه ئی خو نه ایجاب او قبول شوی دی او نه شا هدان سته نو اوس ما ته فیصله را کړی ؟

**جواب** : که چیري د دغه ښځې او سړی په ما بین کښی رشتیا هم نکاح نه وی سوی او د شا هدا نو په حضور کي ایجاب او قبول نه وی سوی نو دا ښځه د دغه سړی نه کیږي او په دي خبره چه پلار ویلی دي چه دا ښځه زما د دغه زوی ده دا ښځه د دغه سړی نه گرځي او که چیری ایجاب او قبول سوی وي او نکاح تړله سوی وي او دغه نکاح د ښځي د کوچني والی په وخت کی غیرله پلار او نیکه څخه بل چا تړلی وي او په وخت کی د بلوغ دغې ښځې ویلی وي چه دغه میړه نه کوم نو هم نکاح فسخ کیدلای سی او له دي وروسته که دغه ښځه دغه سړی غواړي یا ئی بل څوک غواړی د دي رضاء پکښی شرط ده که دا نا راضه او نا خوښه وي هیڅ څوک ئی نکاح ته نسی مجبوره کولای او همدا رنگه د هرې ښځې د نکاح د پاره د هغې رضاء شرط ده .

فـالایجـاب والقبـول رکـن بـالاتفـاق لان بهمـا یـرتبط احـد العـاقـدین بـالاخروالرضا شرط ورکـن الزواج عنـد الحنـفیة الایجاب و القبول فقـط ﴿ الفقـه الاسلامی صـ ۳۶ ج ۷ ﴾ هـكذافی ﴿ البحر الرائـق صـ ۱۱۰ ج ۳ ﴾ ﴿ ردالمحتـار صـ ۲۸۵ ج ۲ ﴾ وان زوجها غیر الاب والجد فلكل واحـد منـهمـا الخیـا راذابلـغ ان شـاء اقـام علی النـكـاح وان شـاء فـسخ ﴿ الهدایـة صـ ۲۹۷ ج ۲ ﴾ ﴿ الهنـدیـة ۲۸۵ ج ۱ ﴾ قوله لا تجبـر بكر بـالغة علی النـكاح ـ ای لا ینـفذ عقـد الولی علیهـا بغیـر رضـا هـا عنـد نـا ﴿ البحر الرائق صـ ۱۱۰ ج ۳ ﴾ هـكذافی ﴿ ردالمحتـار صـ ۳۲۴ ج ۲ ﴾ و ﴿ فتـاوی دارالعلوم دیوبنـد صـ ۷۳ ج ۸ ﴾ و ﴿ ۷۳ ج ۸ ﴾ والله تعالی ﷻ اعلم .

بسم الله الرحمن الرحيم

## دمتهم قرائن، توقيف، جرم او وهلو حکم

**سوال** : د دارالافتاء رئيس صاحب السلام عليکم و رحمة الله وبرکاته، هيله ده چه د لاندې څو جرمو په باره کښې په اولومراحلو کښې يعني تر دوسيې د مخه معلومات راکړئ:
اول: په څرنگه او کومو قرائنو څوک متهم بلل کيږي؟
دوهم: که څوک متهم شي کوم وخت او څونه تو قيفيږي؟
درييم: کوم مجرم په کوم وخت او څونه د وهلو اجازه شته چه جرمونه ئې په دې ډول دي،
قتل،زنا، لواطت، سرقت قطاع الطريقی ،جنگ،قمار، اختلاص، رشوت، او اختطاف.
موضوع مو ستاسو محترم حضورته پيشنهاد کړه تر څو مونږ ته شرعی معلومات راکړې چې مشکل مو په شرعی طريقه باندې حل او فصل شي.
(قومندانی امنيه و جنائي مديريت مولوی عبد الغفور مديرجنائي )

**داول سوال جواب** : هغه قرائنې چه سبب د غالب ظن گرځې هغه د يو چا د متهمو لو د پاره کفايت کوي خو شرط يې دادی چه ظن غالب فائده کې خالی د احتمالاتو د جملی څخه به نوی چه د دې ډيرا مثال په شريعت مقدس کښې موجود دی
وفی معين الحکام قال بعض العلماء علی الناظران يلحظ الاما رات والعلامات اذتعارضت فما ترجح منها قضی بجانب الترجيح وهو قوة التهمة ولاخلاف فی الحکم بها ...... والامارات ماخوذة من الشريعة قال الله تعالی ﴿وجاء وا علی قميصه بدم کذب﴾ ..... فاستدل بذلک علی کذبهم وقال متی کان الذئب حليما ياکل يوسف ولايخرج قميصه (اتاسی صـ۳۹۰ ج۱) امااذا کانت القرينة غير قطعية ولکنها ظنية اغلبية کالقرائن العرفية اوالمستنبطة من وقائع الدعوی و تصرفات الاطراف المتخاصمين فانها تعد ليلامر جحالجانب احد الخصوم متی اقتنع بها القاضی ولم يوجد دليل سواها اولم يثبت خلافها بطريق اقوی (الفقه الاسلامی صـ۶۱۲۸ ج ۸ ط جديد) و قد نصب الله سبحانه علی الحق الموجودو المشروع علامات وامارات تدل عليه و تبينه ونصب علی الايمان و النفاق علامات وادلة و اعتبر النبی صلی الله

علیه وسلم واصحابه بعده العلامات فی الاحکام وجعلوها مبینة لها کما اعتبر العلامات فی اللقطة وجعل صفة الواصف لها آیة وعلامة علی صدقه و انهاله و جعل الصحابة الحبل علامة وآیة علی الزنا (الفقه الاسلامی صـ۶۱۲۹ ج۸ ط جدید).

**د دوهم سوال جواب** : متهم شخص درې حالته لري یابه په خپل کلي کی په ښه سړی والی تقوي بی ازاری مشهور وی او خلقو او کلیوالو به په د غه او صافو پیژندلی وي یا به مستور او مجهول الحال وي خپل همسایګانو او کلي خلقو ته د ده په هکله معلومات نوی یا به په فسق و فجور بی تقوایی ازار یا داسی نوروا وصافو مشهوره وي په اول صورت کي په خالي تهمت سره بی له ثبوته د دغه سړی بندي کول او تعزیرول او تو هینول جوازنلري او د بعضی علماء پر قول یوازی قسم ورته ایښوولای سی او بعضی علماء لاداهم وایی چه هر چاچه پر دغه سړی تهمت لګولی وي هغه تهمت ویونکی بایډ تعزیرسی او په دوهم صورت کی که متهم وو په یو ګناه کبیره سره لکه سرقة او داسی نور چه بندګی حقوق یی تلف کړی وي بندي کول یی جائز دي د یو ځوشپودپاره تر څو چه حقیقت یی معلومیږي خود شپو تعین په امیر پوری اړه لري او په دریم صورت کی یی وهل هم جائز دي لکن نه د هر چالپاره بلکه د بعضی علماء پر مذهب یوازی د والي حق دی او بعضی کسان وایی چه والي او قاضي دواړه حق لري نو معلومه سوه چه هر طالب او هر ماموریت او اطاق والا هیڅ حق د یو چا د وهلو نلري.

وقال الذی علیه جمهورالفقهاء فی المتهم بسرقة ونحوها ان ینظر فاما انیکون معروفا بالبر لم تجز مطالبته ولاعقوبته وهل یحلف قولان ومنهم من قال یعزرمتهمه واما إنیکون مجهول الحال فیحبس حتی یکشف امره قیل شهرا وقیل باجتها دولی الامر وانکان معروفا بالفجور فقالت طائفة یضربه الوالی او القاضی و قالت طایفة یضربه الوالی دون القاضی ومنهم من قال لایضر به و قدثبت فی الصحیح ان النبی صلی الله علیه وسلم امر الزبیربن العوام ان یمس بعض المعاهدین بالعذاب لما کتم اخباره بالمال الذی کان صلی الله علیه وسلم قدعاهدهم علیه وقال این کنز حی بن اخطب..... فمسه الزبیر بشئ من العذاب فدلهم علی المال و هو الذی یسع الناس وعلیه العمل الخ و تمامه فی

المـنـح ﴿ردالمحتـارصـ ۲۱۴ ج ۳﴾ ویقـوم بـالتعزیرولی الامـر اونـائبـه ویکـون التعزیراما بالضرب او بالحبس او بالتوبیخ ونحوها بحسب مایراه ولی الامر... .. قـال جماعـة من الفقهـاء بمشروعیة الحبس بـدلیل ان النبی صلی الله علیه وسلم حـبس رجلافـي تهمـة ثـم خلـی عنـه وهـذاهوالحبس الاحتیـاطی ﴿الفقه الاسلامی صـ ۵۵۹۲ ج ۷ ط جدید﴾.

**د دریم سوال جواب :** که پر متهم شخص باندي جرم ثابت سی پـه شرعی ثبوت سره او هغه جرم موجب د حدوي لکه سرقة زنا و غیره نو پـر هغـه بایـد شرعی حد تطبیق سی دوهلو اجازه یی نسته او هغـه جرمونـه چه شرعی حد پکښی نوي بلکـه موجب د تعزیروي یا خو شرعی حد پکښی وي لکن جرم یی ثابت نوي په شرعی طریقه بلکه متهم وي او دغه جرم سبب د خلقو د حقوقو تلفولووي لکه رشوت اختطاف غصب سرقة قبل الثبوت او داسی نور د دي کسانو وهل داقرارکولو په غرض جائز دی په دي شرط کـه متهم پـه فسق او فجوریا پدغسی جرمونو کولو مشهوره وو او کـه دغـه جرم سبب دخلقو دحقوقو تلفولو نوو نوو هل یی د اقرار کولو لپاره قطعًا ندي جائز لکن د تعزیرولو او ادب ورکولو پـه خـاطر جائز دي که هغه سړی فاجر او فاسق وو خو دغه وهل به په شرعی طریقه وي یعنی لکه پـه دُرّه او هغـه بـه هم تر ۳۹ دری نه بالا کوي لکن داخبره یادول ضروري ده چه د وهلو حق بغیرلـه هغـه کسانوڅه چه امیرالمومنین اجازه ورته کړی وي بل چا ته که قومندان دی که یو بـل رئیس یا مسئول یا مامور دی هیڅ چاتـه جواز نلري نـه ئـی بندیکول نـه توهینـول جواز لـري او هغـه کسان چه امیرالمؤمنین اجازه ورته کړی ده هغه بـه هم پـه شرعی طریقـه وهـل کوي غیر شرعی طریقی لکه په کیبل وهل برق ورکول یاداچه جرم یی لږ او وهل یی شدید وي داټول غیر جائز دي او په دي باید پوه سو چه په ورځ داخرة به زمونږ سره داسی محاسبة کیږي چه په توبـه کښلو سره هم دهغه مسئولیته نشو خلاصیدای ولي حقوق العباد په توبه نه ساقطیږي غیر لـه عفوی څه د مظلوم.

ان عقوبات الحـدودو القـصاصّ مقـدرة مقـدمافی الـشرع للجـرائم الموجبة لهـا ولیس للقاضی تقدیر العقوبة ﴿الفقـه الاسـلامی۵۲۸۱ ج ۷ ط جدیـد﴾ الفـرق بـین الحدو التعزیران الحد مقدروالتعزیر مفوضّ الی رءی الامـام ﴿ردالمحتـار صـ۱۹۴ ج ۳

) الذی علیه جمهور الفقهاء فی المتهم بسرقة و نحوها ان ینظر الخ الی اخرمامر ( ردالمحتار صـ۲۱۴ج ۳ ) وعن الحسن یحل ضربه حتی یقر مالم یظهر العظم . . . . و ینبغی التعویل علیه فی زماننا لغلبة الفساد ویحمل مافی التجنیس علی زمانهم ( الدرالمختار صـ۲۱۴ج ۳ ) لان الحبس للتهمة مشروع وکذا تعزیر المتهم بحر ( الدرالمختار بهامش ردالمحتار ۲۹۱ج ۴ ) باب التعزیر . . . . هو تادیب دون الحد اکثره تسعة وثلاثون سوطا ( الدرالمختار صـ۱۹۴ج ۳ ) التعزیر للامام التعزیر کالحد ودمنوط بالامام ولیس لاحد حق التعزیر الاثلاثة الاب والسید والزوج ( الفقه الاسلامی صـ ۶۰۶ج ۷ ط جدید ) ویقوم بالتعزیر ولی الامر اونائبه ویکون التعزیر اما بالضرب او بالتوبیخ ( الفقه الاسلامی صـ ۵۵۹۲ج ۷ ط جدید ) یکون التعزیر علی قدرالجنایة وعلی قدر مراتب الجانی بحسب اجتهاد الحاکم اما بالتغلیظ فی القول الخ ( الفقه الاسلامی صـ۵۶۰۰ ج ۷ ط جدید ) ولیس للقاضی اصلاسلطة فی التجریم والعقاب کیفماشاء وانما هو مقید فی حکمه باوامر الشرع و قیوده وقواعده ویستانس بتصنیف الفقهاء للعقوبات ( الفقه الاسلامی صـ ۵۳۳۸ج ۷ ط جدید ) فانکان التعزیر حقا خالصا للانسان او الغالب فیه حقه کالشتم والسب والموائبة والضرب بغیر حق والتزویر . . . . فلا یسقط بالتوبة ( الفقه الاسلامی ۵۵۲۸ ج ۷ ط جدید ) قالو الکل مسلم اقامة التعزیر حال مباشرة المعصیة واما بعد المباشرة فلیس ذلک لغیر الحاکم ( الفتاوی الهندیة صـ۱۶۷ج ۲ ) .

**نوټ** : دلته دوې خبرې ډیرې ضروری دي چه جدّی باید په ذهن کښې وساتل سی ، اول داچه شریعت پردی حریص نه دی چه پر ډیرو خلقو حدود جاری سی لکه د ډیرو خلقو په ذهن کی چه دی خبرې ځای نیولی دی بلکه شریعت حکم کړی دی چه هغه جرمونه چه حق الله پکښې تلف سوی وي دعامو خلقو لپاره د هغوی ستر کول ثواب لري او داچه بعضی استخباراتی شعبی علیحده نفر موظف کوي د پاره د زنا کاره پیدا کولو ساز ږغولو او همداراز نورې ګناهانی او په هغوی

پسی تتبع او تجسس کوي دا پخپله یو عظیمه ګناه او خطاءده حتیٰ شرعی حکم دادی که یو غل اقرارد خپلي غلاوکی او شاهدان نوي باندي تیرسوي او دستی وتښتیږي نو دی بیانه نیول کیږي او نفر دي نه پسی ځی او همدا راز چه پر چا حد لازم شی د خپل اقرارپه وجه امام ته مستحبه ده چه تلقین د رجوع ورته وکړي او ډیره لږ شبهه مانع د حد جاري کولو ګرځی خو متاسفانه چه مونږ وینو چه په یو ادنی شبهه او تهمة یو سړی وهل کیږي چه اقرار د زنا وکړي یا اقرار د لواطت وکړي یا داسی نور چه دا یو ناروا کار دی نو اصلي طریقه داده چه یو سړی په یو جرم متهم سی د یو قرینی په خاطر یا دیوه شاهد عدل په خاطر یا د دوو مستور الحالو د شهادة په خاطر یا صحیح شاهدان د ده پر جرم باندي په شرعی طریقه شاهدي اداکي یا دی خپله اقرار وکړی بیا یی ګرفتار کول جائز دي او وهل ئ په شرعی طریقه جائز دي که یی د خلقو پر مال یا نفس تعرض کړی وو مونږ وینو چه بعضي کسان تو هینیږي بندیان کیږي او حال دا چه شرعا مجرم نوي لکه دا چه د سرپر غټو ویښتانو بندیان سوي وي یا نور هغه شیان چه دلته یی ذکر کول مناسب ندي، د خلقو اموال او ځانونه په شریعت مقدس کی دونه محترم او معزز دي چه نه امیر المومنین ته اجازه سته نه نورو کسانو ته چه پر هغو یو ادني تعرض وکړي که طالب وي که غیر طالب یو چاته په سپکه کتل په دي وجهه چه دا طالب ندی دا خپله یو ګناه ده

**دوهمه دا ده** : چه د زور او د وهلو اقرار په شریعت کښی غیر معتبر دی یو څوک چه د وهلو په زور اقرار وکړي نو دا اقرار بی اعتباره دی نه حد پر مرتب کیږي نه تعزیر البته که یو څوک پس له وهلو په داسی حالت کی چه زور او اکره نوي پر هغه اقرار پاته سی او رجوع ونکړي نو بیا اعتبار لري او که یی رجوع وکړه رجوع یی هم اعتبار لري.

ومع ذلک فلا یعزب عن البال ان الاسلام حریص کل الحریص علی الایقام الحد الاحیث یتبین علی وجه الیقین ثبوت ارتکاب الجرم وذلک بتشدده فی وسائل الاثبات ثم انه بعد ئذ یدرء الحد بالشبهات کل هذا تفادیا التوقیع الحدود (الفقه الاسلامی ص ۱۷ ج ۶ ط جدید) وعن دخیر ابی الهیثم کاتب عقبة بن عامر قال قلت لعقبة بن عامر ان لنا جیرانا یشربون الخمر وانا داع لهم الشرط لیاخذوهم قال لاتفعل وعظهم

وھد دھم قال انی نھیتھم فلم ینتھوا وانا داع لھم الشرط لیاخذوھم فقال عقبة ویحک لاتفعل فانی سمعت رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم یقول من ستر عورۃ فکانما استحیا موءودۃ فی قبرھا رواہ ابوداود والنسائی الخ .... وعن یزیدبن نعیم ان ماعزا اتی النبیصلی اللہ علیہ وسلم فاقر عندہ اربع مرات فامر برجمہ وقال لھزال لو سترتہ بثوبک کان خیرالک رواہ ابوداود..... وسبب قول النبیصلی اللہ علیہ وسلم لھزال لو سترتہ بثوبک کان خیرالک مارواہ ابوداود وغیرہ عن محمد بن المنکدران ھزالا امر ماعزا ان یاتی النبی صلی اللہ علیہ وسلم ((الترغیب والترھیب صـ۲۳۸ج ۳)) یا معشرمن اسلم بلسانہ ولم یدخل الایمان قلبہ لا توذوالمسلمین ولا تعیروھم ولاتطلبو اعثراتھم الحدیث .... وعن معاویۃ رضی اللہ عنہ قال سمعت رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم یقول انک ان اتبعت عورات المسلمین افسدتھم او کدت تفسدھم ..... عن النبی صلی اللہ علیہ وسلم قال ان الامیراذا ابتغی الریبۃ فی الناس افسدھم ((الترغیب والترھیب صـ۲۴۰ج ۳)) ویخلی سبیلہ ان رجع عن اقرارہ قبل الحد او فی وسطہ .... وکذاعن سائر الحدود الخالصۃ للہ کحد شرب وسرقۃ وان ضمن المال(الدرالختار بھامش ردالحتار۱۴۴ج ۳ط بیروت) وندب تلقینہ الرجوع بلعلک قبلت اولمست او وطئت بشبھۃ لحدیث ماعز ((الدرالمختاربھامش ردالمحتار صـ۱۴۵ج ۳ بیروت)) ذکروافی کتاب الکفالۃ ان التھمۃ تثبت بشھادۃ مستورین او واحد عدل ((ردالمحتار صـ۱۸۷ج ۳ بیروت)) بحسب امرئ من الشران یحقراخاہ المسلم کل المسلم علی المسلم حرام دمہ وعرضہ ومالہ رواہ مسلم وغیرہ ((الترغیب والترھیب صـ۶۱۰ج ۳)) فی التاتارخانیہ عن التجریداکرہ بضرب او حبس حتی یقربحد او قصاص فھو باطل فان خلاہ ثم اخذہ فاقربہ اقرارامستقبلا اخذ بہ ((ردالمحتار صـ۸۸ج ۵ط بیروت)) ھکذافی ((الفتاوی الھندیۃ صـ۵۱ج ۵)) ولایصح اقرارالمستکرہ او المتھم الذی یضرب لیقرفی الاموال والجنایات الموجبۃ لحد او قصاص ویلغی ولایترتب علیہ اثر ((الفقہ الاسلامی صـ۳۸۷ج ۶)) واللہ تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## دوړو جرمونو پلټل داسلام له نظره

**سوال**: د مرکزي شورې او دارالافتاء محترم رئيس صاحب السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته وبعد: تاسو دشورې او تمیز علماء په ګډه د لاندي څو موضوعاتو په هکله معلومات راکړئ:

اول: د سروز د پیتو اوریدل بیا عام شوي دي حتیٰ د طالبانو په موټرانو کی هم اوریدل کیږي د دې جرم مخنیوی باید په څه طریقه وسی ټیپ او پیتی باید ماتي سی کنه؟

په موټرانو او کوټو کښې تلاشي باید وسی کنه؟

او امیر ته ترکوم حده صلاحیت پکښې سته د شرقلیل لپاره خیر کثیر مختاره کولای شی کنه؟

مونږ چه تجربه لرو چه که تلاشي پسې ونکړل سی نو په اکثره موټرانو کښې به طالبان او عام خلګ سروز اوري اثرات به ئې داوي چه یو خو به اکثره خلګ دګناه مرتکب وي او بل به په دې کار د تحریک نوردیندار خلګ مایوسه او د تحریک څخه به په نفرت کی سی د اختلاف او بې اعتمادی سبب هم ګرځي او دوهم دښاروالیو لخوا په بعضی شیانو کښې خلګو ته نرخ ورکول سوي دي چه په دې کښې هم د غبن مخنیوی او د خلګو سهولت مطلب دی؟

(امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد)

**داول سوال جواب**: ټیپونه رادیوګاني اوټیپوپیتي داهغه الات دي چه ښه او جائزه استفاده هم ځني کیدای سي لکه خبرونه وعظ اسلامي او نعتیه شعرونه او غلطه استفاده هم ځني کیداسي لکه سروز او زمونږ په دغه موجوده جامعه کښې هم دواړه قسمه استفاده ځني کیږي نو پر دي شیانو باندي د لهو او لعب دالاتو حکم نسي کیدای او نه ئې دماتولو اجازه ورکول کیږي او د سروزپیتی هم که پخپلو مقناطیسی الاتو باندي خالي سی او سروز ځني ایسته سی او صافي سی نو قابلیت د دې لري چه نور جائز مضامین پکښې ثبت سی نو ماتول ئې جائز نه دي ځکه چه اموال د خلقو ډیر محترم دي تو له سعیه باید په کاروا چول شي چه څوک ورباندي بیځایه تعرض ونکړي که څه هم ډیرلږ شی وي او که چیري دغه الات د

لهو او لعب و بولو نو بیعه او شراء به ئې حرامه سي او قراءت او وعظ پکښې ویل او ځني نور شیان به ټول حرام سي ځکه چه سبب د توهین د مقدساتو ګرځي نو ښه طریقه داده چه څوک د سروز پر او رید و باندي و لیدل سي ټیپ او رادیو دي نه ماتیږي بلکه په یو بله نوعه دي تعزیر ورکړل سی او هغه د سروز پیته دي نه ماتیږي بلکه پاکه دي شي په اهن ربا سره او سروز دي ځني ایسته کړل سي او خالي پیته دي خپل مالک ته ورکول سی هغه الات چه استعمال یی مطلق حرام دي هغه الات دي چه د تلهی د پاره وي او صحیح استعمال یی نسی کیدلای یا نه کیږي عادة چه دا شرط په ټیپ او رادیو او پیته کي موجود نه دی.

آلات الملاهی والمعازف المطربة بلاغناء التی تمحضت للهو وبنیت لاجله ولیس لها غرضٌ صحیح سوی اللهو وهی تطرب بلا غناء ایضًا کالمزمار والطنبور فخرج منه الدف وأمثاله فقد اجمعت طوائف المسلمین سلفا وخلفا .... ان استعمالها حرام بایة نیة کان وبای غرضٌ کان (احکام القرآن للتهانوی صـ۲۲۷ج ۳) ان فی الآلات تفصیلا فماکان منها موضوعا للهو وکان مطربا من دون الغناء فاستعماله حرام مطلقا وماکان یستعمل فی الطرب واللهو تارة وفی الاعلان والاعلام اخری فیجوز استعماله فی النکاح وامثاله (احکام القرآن للتهانوی صـ۲۳۰ج ۳) او حضرت مولانا محمد شفیع صاحب صراحةً ویلي دي چه ریډیو او ټیپ د آلاتو څه د لهو ولعب نه دي (آلات جدیدة صـ۱۷ـ۲۰۶) اقول وهذا یفید ان آلة اللهو لیست محرمة لعینها بل لقصد اللهو منها اما من سامعها او من المشتغل بها وبه تشعر الاضافة الاتری ان ضرب تلک الالة بعینها حلٌ تارةً وحرم اخری باختلاف النیة و الامور بمقاصدها (ردالمحتار صـ۲۲۳ج ۵ط بیروت) ونقول ان قبح الملاهی لو کان لعینها لما ارتفع عن طبل السحور والغزو وجرس الساعة لاسیما فی المساجد فاذن هو لغیرها (امدادالفتاوی بتفصیل کامل فیه صـ۲۵۱ج ۴).

**د دوهم سوال جواب** : تلاشي کول د پاره د پيټو پيدا کولو يا نورو منکراتو پيدا کولو لپاره په موټرانو کي يا په کوټو او کورو کښي تجسس بولي په شريعت کښي او دا تجسس حرام دی په قران کريم او احاديثو کښي ډيره سخته منع څني سويده چه څني دلائل ئې دادي:
﴿ ولاتجسسوا ولايغتب بعضكم بعضا الاية سورة الحجر آية ١٢ پاره ٢٦ ﴾ ولاتبحثوا عن عورات المسلمين ومعايبهم وتستكشفو اعماستروه ..... اخرج ابوداود وابن المنذر وابن مردويه عن ابى برزة الاسلمى قال خطبنا رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال يامعشر من آمن بلسانه ولم يدخل الايمان قلبه لاتتبعوا عورات المسلمين فان من تتبع عورات المسلمين فضحه الله تعالى فى قعر بيته ....
واخرج ابوداود وجماعة عن زيد بن وهب قلنا لابن مسعود هل لك فى الوليد بن عقبة بن معيط تقطر لحيته خمراً فقال ابن مسعود قد نهينا من التجسس فان ظهر لنا شئ اخذ نابه ﴿ روح المعانى صـ١٥٧ج ٢٦ ﴾ وعن جبرائيل قال يامحمد لوكانت عبادتنا على وجه الارض لعملنا ثلاث خصال سقى الماء للمسلمين واعانة اصحاب العيال وستر الذنوب على المسلمين ﴿ روح البيان صـ٨٦ج٩ ﴾
وعن ابن عمر قال صعد رسول الله صلى الله عليه وسلم المنبر فنادى بصوت رفيع فقال يامعشر من اسلم بلسانه ولم يفض الايمان الى قلبه لاتؤذوا المسلمين ولاتعيروهم ولاتتبعوا عوراتهم فانه من يتبع عورة اخيه المسلم يتبع الله عورته ومن يتبع الله عورته يفضحه ولو فى جوف رحله رواه الترمذى ﴿ مشكوة شريف ٤٢٧ ﴾
وروى عن ابى سعيد الخدرى رضى الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لايرى مؤمن من اخيه عورة فيسترها عليه الاادخله الله بها الجنة ﴿ الترغيب والترهيب صـ٢٣٨ج ٣ ﴾ ومعنى الاية خذواماظهر ولاتتبعو اعورات المسلمين اى لايبحث احدكم عن عيب اخيه حتىٰ يطلع عليه بعد ان ستره الله ﴿ احكام القرآن للتهانوى صـ٢٨٥ج ٤ ﴾ وليس الامر بالمعروف البحث والتنقير والتجسس واقتحام الدور بالظنون بل ان عثر على منكر غيره جهده هذاكلام امام الحرمين وقال اقضى القضاة الماوردى ليس للمحتسب ان يبحث عمالم يظهر من المحرمات فان غلب على الظن استسراء قوم بها لامارة وأثارظهرت فذلك ضربان احدهما انيكون ذلك فى انتهاك حرمة يفوت استدراكها مثل ان يخبره من يثق بصدقه ان رجلاخلابرجل ليقتله او بامرءة ليزنى بها فيجوزله فى مثل هذاالحال ان يتجسس ويقدم على الكشف ..... الضرب الثانى ماقصرعن هذه

الرتبة فلايجوز التجسس عليه ولاكشف الاستار عنه (شرح النووي على صحيح المسلم صـ۵۲ج۱) الشرط الثالث ان يكون المنكر ظاهر اللمحتسب فكل من ستر معصية فی داره وغلق بابه لايجوزان يتجسس عليه وقد نهى الله تعالى عنه ..... فلايجوز الدخول عليه بغير اذنه لتعرف المعصية الا ان يظهر فی الدار ظهورا يعرفه من هو خارج الدار كاصوات المزامير و الاوتار اذا ارتفعت بحيث جاوز ذلک حيطان الدار (احياء العلوم صـ۳۲۵ج۲) فلاينبغی ان يسترق السمع على دار غيره ليسمع صوت الاوتار ولاان يستنشق ليدرک رائحة الخمر ولاان يمس مافی ثوب ليعرف شكل المزمار ولا ان يستخبر من جيرانه ليخبروه بما يجری فی داره نعم لو اخبره عدلان ابتداء من غير استخبار فله اذ ذاک ان يدخل داره (احياء العلوم صـ۳۲۹ج۲).

**د دريم سوال جواب**: نه يوازي سلطان بلکه هرڅوک کولای سی چه د شرقليل په عوض خير کثير مختاره کی بلکه حتماً ئی بايد مختاره کی لکن دغه تجسس ته هيڅ کله شرقليل نشی ويل کيدلای بلکه دايو شرعظيم دی ځکه چه د کبائرو ګناهونو څه دی حرمت ئی قطعی دی لکه د تيرو احاديثو مبارکانو څخه چه په وضاحت معلومه سوه او ده په مقابل کی هر خير خير قليل دی او امر د سلطان بايد حتماً د شريعت سره موافق وي که موافق نوي نو په معصيت کی اطاعت کول دامير حرام دی.

ثم ان وجوب الطاعة لهم (اي اولی الامر) ماداموا على الحق فلايجب طاعتهم فيما خالف الشرع فقد اخرج ابن ابی شيبة عن علی كرم الله وجهه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لاطاعة لبشر فی معصية الله تعالى (روح المعانی صـ۶۶ج۵) هكذا فی (الفقه الاسلامی صـ۷۰۴ج۶).

**د څلورم سوال جواب**: دا خبره چه که تجسس نه وسی نو ډير خلق به په منكراتو اخته سی د دي دليل نشی ګرځيدلای چه تجسس دي جائز سی ولي د حکومت دا وظيفه نده چه منکرت که پټ وي که لږ د مابين څه به يی وړي او نه د الله ﷻ اراده داسی ده چه په مځکه کی دي معصيت نوی بلکه د حکومت دا وظيفه ده چه څوک به په ښکاره او په علانية ډول منکرات نه کوي د پټو ګناهونو مسئول حکومت ندی او په حديث شريف کي په وضاحت سره راغلی دی

چه امیر که تجسس شروع کړي خلق به نور زیات فاسد سی یا به فساد ته وهڅول سی اصلاح به نسی.

ولو لم تذنبو الجاء الله بخلق جدید کی یذنبو افیغفر لهم الحدیث (ترمذی شریف صـ۷۹ ج ۲) وعن معاویة رضی الله عنه قال سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول انک ان اتبعت عورات المسلمین افسدتهم اوکدت تفسدهم (الترغیب والترهیب صـ۲۴۰ ج ۳) عن ابی امامة عن النبی صلی الله علیه وسلم ان الامیر اذا ابتغی الریبة فی الناس افسدهم ((احکام القران صـ۲۸۵ ج ۴).

**دپنځم سوال جواب**: نرخ ورکول د کاندارانو ته هم ناروا عمل دی د حضرت ﷺ څه خلقو مطالبه وکړه چه نرخ تعین کړی نو ده منع وکړه او وي ویل چه نرخ ایښوونکی الله تعالی جل جلاله دی او همدارنګه ټولو فقهاؤ منعه کړیده او ویلي ئی دي چه حاکم دي نرخ نه تعینوي په یو صورت کي بیا فقهاؤ اجازه کړیده هغه دادی چه کچیري خلقو یوشی د خپل نرخ څه په دوه چنده قیمت ورکاوه یعني د یو شي قیمت په بازار کی یولک افغانی وي او خلق یې په دوه لکه افغانی خرڅوي په دي صورت کښي جواز فقهاؤ لیکلی دی او که د دوه چنده څخه لږ کم وو بیا اجازه نسته.

عن انس رضی الله عنه قال قال الناس یا رسول الله غلا السعر فسعر لنا فقال ان الله هو المسعر القابض الباسط الرزاق وانی لارجو ان القی الله ولیس احد منکم یطالبنی بمظلمة فی دم ولامال واسناده علی شرط مسلم وصححه ابن حبان والترمذی (ردالمحتار صـ۲۸۳ ج ۵) وبناء علیه الاصل عدم التسعیر ولایسعر حاکم علی الناس وهذامتفق علیه بین الفقهاء (الفقه الاسلامی صـ۵۸۸ ج ۳) ولاینبغی للسلطان ان یسعر علی الناس الا ان یتعدی ارباب الطعام تعدیا فاحشا فی القیمة فلا بأس بذلک بمشورة اهل الخبرة به (الاختیار لتعلیل المختار صـ۱۶۱ ج ۴) هکذافی (تبیین الحقائق صـ۲۸ ج ۶) (والهدایة صـ۴۶۹ ج ۴) (وبدائع الصنائع صـ۱۲۹ ج ۵) (وحاشیة الطحطاوی علی الدرالمختار صـ۲۰۱ ج ۴) (وردالمحتار صـ۲۸۳ ج ۵) (واللباب صـ۱۶۷ ج ۴) (والبحر الرائق صـ۲۰۲ ج ۴) قوله ویتعدون عن القیمة تعدیا فاحشا۔ بان یبیعو اقفیزا بمائة وهو یشتری بخمسین (العنایة علی الهدایة بهامش فتح القدیر صـ۴۹۲ ج ۷) هکذافی (الطحطاوی علی الدرالمختار صـ۲۰۱ ج ۴) والله تعالی ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دښځو حقوق اوددې جرم دمرتکبینو دسزاء په اړه (۷)پوښتنې اوجوابونه

**سوال** : وحضورته د محترم ریاست دارالافتاء السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته .د لاندي ځو مسائلو په هکله پوښتنه کوم هیله ده جواب ئی راکړي ؟

(۱) ښځه خو په دین مقدس کی خپل حق لري په میراث کی نو که یو څوک د دغه ښځي حقوق نه ورکوي او دهغه ښځي حق په میراث کی خپل ځان ته گرځوی نو ددغه سړی به څه جزا وي او څه باید ورسره وسی ؟

(۲) په صلح کی ښځه ورکول څه حکم لري حال دا چه ددغسی ښځو بیا په خپلو کوروکی ډیر بد حال وي او ټول ئې په دی نوم یا دوی چه دا ښځه په بدي کی راغلی ده ، او ددغسی صلح کوونکو سره باید څه وسی ؟

(۳) هغه ښځې چه کونډې سی ایا هغه دخپل اختیار دي کنه دي او که ئي یو څوک ودي ته مجبوره کوي چه حتماً به دمتوفی خاوند وروریابل قریب په نکاح کوي که دښځی رضا وي که نه وي دا جائزه ده او کنه او د داسی خلگو به څه جزا وي ؟

(۴) هغه ښځی چه خلگو د دوی د میراث یانور حقوق غصب کړی وي او دوی په خپلو کورو نوکی ناستی وي او دپلرونو یا مړونو یا وړونو یا نورو اقرباؤ له بیری او خوف څه د کورو نسی راوتلای اونه د عوه کولای سی ، نو ایا داخبره د دوی په حق کی عذر دی کنه او د دوی په حق کی مرورالزمان اعتبارلري کنه ؟

(۵) بعضی خلک د ښځو په ورکولو کی د ښځی د خاوند صلاحیت او تقوی په نظر کی نه ساتي یوازی د هغه دنیا داری او پیسی په نظر کی ساتي نوداڅه حکم لري ؟

(۶) بعضی خلق ښځی په لږ یا ډیر مهر ورکوي لکن دغه مهر ئی پلاریا وړونه اخلي دځان د پاره او ښځی ته ئی نه ورکوي نو دغه اخیستل ئی جواز لري کنه او دا ښځی خپل حق بللی کیږي کنه ؟

(۷) په عقد کې د نکاح ایا د ښځې رضاء اعتبار لري او شرط ده کنه بعضې ښځې خپل قریبان ورکې او د ښځې او میړه ترمابین د سن او سال په وجه یا په نورو وجوهو سره ډیر زیات تفاوت وي او ښځې په رضانه وی د پلار یا ورور یا نورو اقرباؤ د طرفه جبراً په نکاح ورکول کیږي؟

**داول سوال جواب**: دغه سړی چه خپل لور یا خور یا نورو ښځو ته په میراث کې حق نه ورکوي دغه سړی ظالم او غاصب دی او فاعل د ګناه کبیره دی په شریعت مقدس کې ښځې خپل حقوق لري په میراث کې هیڅ څوک نشي کولای چه دغه حقوق ځنې وګرځوي او که دغسې یو څوک قاضی ته یا نورو مسئولینو ته معرفی شی باید د سخت تهدید او شدید تعزیر سره ئې مخامخ کې څو چه د نور خلقو د پاره عبرت سی.

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ: وللنساء نصيب مما ترك الوالدان والاقربون مما قل منه او كثر نصيبا مفروضا ( سورة النساء آية ۷ ) وايراد حكمهن على الاستقلال..... للاعتناء كما قال شيخ الاسلام بأمرهن والايذان باصالتهن في استحقاق الارث والاشارة من اول الامر الى تفاوت مابين نصيبي الفريقين والمبالغة في ابطال حكم الجاهلية فانهم ماكانو ايورثون النساء والاطفال ويقولون انما يرث من يحارب ويذب عن الحوزة وللرد عليهم نزلت هذه الاية كما قال ابن جبير وغيره ( روح المعاني ص۲۱۰ ج۴ ) هكذا في ( التفسيرات الاحمدية ص۲۲۶ ) ( والتفسير المظهري ص۱۸ ج۲-۲ ).

**دوهم سوال جواب**: دغه صلح په حقیقت کې صلح نده او نه په شریعت کې دي ته صلح ویل کیږي او نه دغسې صلح جواز لري ځکه چه د مصالح علیه شرط دادی چه مال به وي او ښځه چه حره وي مال نده نو صلح پر ښځه باندي هیڅ صحت نلري ځکه چه مونږ وینو چه د ښځو سره بیا په هغه کور کې ډیره ظالمانه او خلاف د شرع شریفې رویه کیږي نو دغسې صلح ظلم دی او اعانة او کومک کول دی د ظلم سره او ظالم مسلط کول دی پر مظلوم باندي چه هیڅ یو کتاب او یو قول د هغه په جواز سره قائل ندی نو د دغسې صلحې څه باید جداً

ممانعت وسی او که چا پخوا دغسی صلح کړی وي پر هغه نه لازمه ده او نه ورته جائز ده چه دغه ښځی په لاس ورکی او قصاص هم ساقط دي.

یشترط فی بدل الصلح الذی یتم علیه العقد شروط هی مایلی -۱- انیکون المصالح علیه مالا .... فمالایصلح عوضا فی البیوع لایصلح بدل الصلح ( الفقه الاسلامی صـ۳۰۰ ج ۵ ) هکذافی ( بدائع الصنائع صـ۴۲ ج ۶ ) ( مجمع الضمانات صـ۳۹۰ ) باب فی المظالم والغصب وقول الله عزوج ( ولا تحسبن الله غافلا عما یعمل الظالمون انمانؤخرهم لیوم تشخص فیه الابصار مهطعین مقنعی رؤوسهم ) رافعی رؤوسهم الخ ..... باب قول الله تعالی الالعنة الله علی الظالمین ..... بابٌ لایظلم المسلم المسلم ولایسلمه حدثنا .... ان رسول الله ﷺ قال المسلم اخو المسلم لایظلمه ولایسلمه الحدیث ( بخاری شریف صـ۳۳۰ ج ۱ ).
وروی عن أوس بن شرحبیل أحد بنی اشجع رضی الله عنه انه سمع رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول من مشی مع ظالم لیعینه وهو یعلم انه ظالم فقد خرج من الاسلام ( الترغیب والترهیب صـ۱۹۹ ج ۳ ) ماترشد الیه الایات الکریمة ۱ تحریم الاعتداء علی النساء بالظلم والاستبداد ووجوب الاحسان الیهن وصحبتهن بالمعروف ( روائع البیان ۴۶۰ ج ۱ ).

**د دریم سوال جواب** : هغه ښځی چه کونډی سی هغه د کامل اختیار درلودونکي دي هیڅ څوک نسی کولای چه جبرآ یی نکاح ته مجبوره کړی بلکه د ښځی خپله خوښه او رضاء ده که نکاح کوی که ئی نکوي که ئی د متوفی په اقارب کی سړی خوښ وي او په نکاح کوی یی یا په نورو بیگانه خلقو کی او که څوک دا خبره یعنی د کونډی وتل د کوره ځان ته عار یا شرم بولي نو دی حتماً باید خپله عقیده اصلاح کړي ولي د داسی عقیدي سره چه شرعی امر ځان ته شرم بولي دایمان خطره ورسره سته او یو څوک چه کونډی ښځی ته مرکه وکړی نو هغه ښځه به خا مخا په خپل خوښه او رضاء بغیر له اکراه څه لساني اقرار کوي چه زما خوښه ده سکوت د دي په حق کی اقرار ندی او که دغسی لساني اقرار ونکړی نکاح یی صحت نلري.

یاأیها الذین امنو الایحل لکم ان ترثو النساء کرها الآیة (سورة النساء أیة۱۹) ای تأخذوهن کمایؤ خذ المیراث وتز وجوهن کارهات او مکرهات (تفسیر المظهری ص۴۹ج ۲ـ۲) هکذافی (روح المعانی ص۲۴۱ج ۴) ان النبی صلی الله علیه وسلم قال لا تنکح الایم حتی تستأ مر ولا تنکح البکر حتی تستأذن الحدیث (بخاری شریف ص۷۷۱ج ۲) باب اذا زوج ابنته وهی کارهة فنکاحه مر دود حدثنا اسماعیل ..... عن خنساء بنت خدام الانصاریة ان أباها زوجّها وهی ثیب فکرهت ذلک فاتت رسول الله صلی الله علیه وسلم فرّدَنکاحها (بخاری شریف ص۷۷۱ج ۲) هکذافی (مشکوة المصابیح ص۲۷۰) اماان کانت المرأة ثیبا فر ضا ها لا یکون الابالقول الصریح للحدیث السابق الثیب تعرب عن نفسها ای تفصح عن رأیها وعمافی ضمیر ها من رضا او منع ولا یکتفی منها بالصمت لان الاصل ان لاینسب الی ساکت قول (الفقه الاسلامی ص۲۱۳ج ۷).

**دخلورم سوال جواب** : څرنګه چه په دي معاشره کی د ښځو سره زیات ظلم کیږي چه نه ښځی خپل د نکاح اختیار لري نه د خپل مهر نه خپل د میراث حق ور رسیږي نه دکوره وتلاي سی او د ښځی تګ ومحکمی ته اودعوه کول خو بالکل ورته ممکن ندي فلهذ اهغه کسان چه د دوی میراث یاولورنه ورکوي او بیا د همدغه غاصبانو دخوف له وجهی دکوره نسی وتلای نو په دي صورت کی خوخصم دمتغلبینو څه دی او که نورو خلقو د دوی حقوق غصب کړی وي او دغه ښځی دخپلو اقرباؤ د خوف له وجهی دعوه نوي کړي او نه ئی په دي وقت کی د مرورالزمان داسی څوک پیدا کړي وي چه هغه د دي په وکالت د دي دعوه سرته ورسوي نو داهم یو عذر دي ولي بناء د عذر پر عدم وصول ده وقاضی او محکمی ته دقاضی او محکمی د وصول څه چه هرشی په واقعی توګه مانع سی هغه عذر بلل کیږي او مفتی ته پکار دی چه په واقعو کی تأمل او تفکر وکړي او داسی فتوی ورکړي چه د ظلم مخنیوی وسی نه داچه ظلم ته لارهواره سی اوداسی ډیر ایتونه چه دښځو میراث دحصوپه باره کی راغلی دی اوله ډیره

وخته بی عمله پاته دی داده قران بی احترامی ده چه ده پیړیو پیړیو څه زموږ خلق په اخته دی مونږ وینو چه په دي معاشره کی ښځوته په ډیرو ځایو کی میراث نه ورکول کیږي او ایة کریمه وایی ( وللنساء نصیب مما ترک الوالدان والاقربون مماقل منه او کثر نصیبا مفروضا ) او ښځو ته مهر نه ورکول کیږي بلکه د مهر څه یی پلار یا نور اقرباء شخصی استفاده کوي او اية کریمه راځی.

( وآتوا النساء صدقاتهن نحلة ) او د دي نور اموال خلق په ظلم او جبر اخلي او دا دبیري له وجهی دعوه نسی کولای او آیة کریمه راځی ( لعنة الله علی الظالمین ) نو ځرنګه چی دغه خوف د دي فه حق کښی یو واقعی عذر دی نو مونږ داسی فیصله کوو چه د ښځو په حق کښی خوف د اقرباؤ عذر دی او که ښځی پس له ۳۲ کاله دعوه وکړی او دغه عذر د خوف پیش کړي عذر ئی مقبول دی دعوه ئی مسموع ده قاضی به ئی دعوه اوري او دي ته به خپل حقوق ورکوي د یوي خوا به مظلوم ته خپل حق ورسیږي د بلي خوا به قرآنی احکام عملي سی هر کله چه معاشره اصلاح سوه د هغه وخت مطابق به د حال د تقاضا سره سم فتوی ورکول کیږي.

اما الزمان الذی مر لعذر شرعی کما لو کان المدعی صغیرا او مجنونا او معتوها سواء کان له وصی او لم یکن او کان فی دیار بعیدة مدة سفر او کان خصمه من المتغلبة فلا یعتبر بل یعتبر بدء مرور الزمان من تاریخ زوال العذر و اندفاعه ( المجلة المـ۱۶۶۳ ) وهی فیما لو کان المدعی قاصرا اومجنونا الخ ( سلیم باز صـ۹۹۰ ) لا یسقط الحق بتقادم الزمان ( المجلة المـ۱۶۷۴ ) ویقرب منه مانقله فی الاشباه عن البزازیة من ان المفتی یفتی بما یقع عنده من المصلحة . . . . . فلا بد للمفتی والقاضی بل والمجتهد من معرفة احوال الناس . . . . فقد ظهر لک ان جمود المفتی او القاضی علی ظاهر المنقول مع ترک العرف و القراین الواضحة و الجهل باحوال الناس یلزم منه تضییع حقوق کثیرة وظلم خلق کثیرین ( مجموعة رسائل ابن عابدین صـ۴۷ج۱ ) فالظاهر عندی ان یتأمل فی الوقائع ویلاحظ الحرج والضرورات فیفتی بحسبها جوازا او فسادا (

جامع الفصولین صـ۴۲ج ۱) قیل فی المجلة ککون المدعی صغیرا الخ لانه یو
جد عذررابع حیث اذامنع الزوج زوجته صاحبة الحق من اقامة الدعوی منعا
اکیدا ولم تدع احل ذلک فهذالعذر معدود عذرا شرعیا ولها اقامة الدعوی بعد
زوال المنع ولا تعتبر المدة التی مرت اثناء المنع الا انه یجب ان تثبت منع
الزوج لها (دررالحکام صـ۳۰۸ج ۴).

**دپنځم سوال جواب**: د ښځو د ورکولو په وقت کښې باید د ښځو دخاوند صلاح او تقوی
حتمی په نظر کی ونیول سی داسی نه چه یوازی مال په نظر کی ونیول سی ځکه چه فاسق
سړی د ښځی کفء ندی او همدارنګه امکان لري بلکه غالبه دا ده چه د دغه فاسق سړي په
وجه صالحه ښځه غیر صالحه وګرزی په دي وخت کی به د دوی دګناهونو مسئولیت ودغه
ورکوونکی ته راجع وي

(دیانة) ای تقوی فلیس فاسق کفوءً الصالحة او فاسقة بنت صالح
(الدرالمختاربهامش ردالمحتار صـ۳۴۷ج ۲) عن ابی هریرة عن النبیصلی الله
علیه وسلم قال تنکح المرأة لاربع لما لها ولحسبها وجما لها ولدینها فاظفر
بذات الدین تربت یداک (بخاری شریف صـ۷۶۲ج ۲).

**د شپږم سوال جواب**: مهر او ولور حق د ښځی دی ولي او قریب د ښځی هیڅ حق نه پکښی
لري بلکه ټوله مهر به دغه منکوحی ښځی ته ورکول کیږي بیا دهغی اختیار دی چه هر څه په
کوي هر څوک چه دښځی مهر اخلی او خپله شخصی استفاده څني کوي او خپل ملک یی
بولی بغیر له هبی څه دمنکوحی نو هغه غاصب اوظالم دی او دغه استفاده ورته حرامه ده.

قوله تعالی وآتوالنساء صدقاتهن نحلة ـ قال الکلبی وجماعة هذا خطاب
للاولیاء اخرج ابن ابی حاتم عن أبی صالح قال کان الرجل اذا زوج ابنته أخذ
صداقها دونها فانزل الله تعالی هذه الایة فنهاهم عن ذلک (احکام القرآن
للتهانوی صـ۹۸ج ۲) فتضمنت الایة معانی منها ان المهر لها وهی المستحقة لا
حق للولی فیه (احکام القرآن للتهانوی صـ۱۰۰ج ۲) هکذا فی
(تفسیر المظهری صـ۱۱ج ۲ـ۲) و فیه ـ ولما کان الصداق عطیة من الله تعالی

على النساء صارت فريضة وحقالهن على الازواج ( تفسير مظهری صـ۱۰ج۲ـ۲ ) هكذا في ( عزيز الفتاوی صـ۴۵۰ ) .

**نوټ** : پلار يا بل قريب هيڅ حق نلري او نه دا ورته جائز ده چه د ښځی مهر ميړه ته وروبخښی که لږ وي که ډير وي او ښځه پخپله که عاقلة بالغة وي کولای سی چه خپل مهر وبخښی هر چا ته چه يې خوښه وی او دواده په شپه که ميړه طلب وکی چه ماته مهر هبة که اوښځی هغه هبه کی دغه هبه يی صحت نلري ديانة او همدارنگه که د واده د شپی وروسته د ميړه په اکراه يا جبر سره خپل مهر هبه کړی نو ديانة مهر نه ساقطيږي د ميړه د ذمی څه او نه قضاء ساقطيږي که اکراه ثابته سی.

ومنها جوازهبتها المهر للزوج والاباحة للزوج في أخذه ( احكام القرآن للتهانوی۱۰۰ج۲ ) واجاز مالک هبة الاب مهر ابنته لزوجها و الله تعالى امر ناباعطائها جميع الصداق الاان تطيب نفسها بتركه ولم يشترط الله طيبة نفس الاب . . . . . ويدل على ذلک قوله تعالى ( ولايحل لكم ان تأخذ وامما آتيتمو هن شيئا الاان يخافا الاية ) فمنع ان يأخذ منها شيئا مما اعطاها الابرضاها بالفدية فقد شرط رضا المرأة ولم يفرق مع ذلک بين البكر والثيب ( احكام القرآن للتهانوی صـ۱۰۲ج۲ ) قلت فلايعتبر بهبتها للمهر في ليلة الزفاف ديانة لاسيما اذا وهبت بعد طلب الزوج ذلک فانها ربما تستحی من ردطلبه فتهب المهر له حياء من غير طيبة نفس ( احكام القرآن للتهانوی صـ۱۰۴ج۲ ) لابد في التبرع من طيب قلب المتبرع به . . . . . قال وان إكرهت على هبة المهر او الابراء منه قال يسقط عند الله انتهى اى ديانة وهل يسقط قضاء ان قامت البينة على عدم الاكراه فنعم وان عجزو حلفت على الاكراه لم يسقط قضاء ولا ديانة ( احكام القرآن للتهانوی۱۰۶ج۲ ) .

**د اووم سوال جواب** : ښځه چه بالغه وي که کونډه وي او که پيغله رضاء يی په نکاح کی لازمی ده کچيري د ښځی رضاء او خوښه نوي نکاح يی نه صحيح کيږي او هغه خلق چه خپلی لوڼی يا خوندي ورکوي او د هغه رضاء او خوښه په نظر کی نه ساتی دا دهغوی پر حقونو

تعرض کول دي او دا کار سخت حرام او ناروا دی په بعضی احادیثو شریفو کی راځی هغه ښځی چه دهغوی رضا او بی خوښی ورکول سی نکاح یی مردود ده نو هرڅوک چه خپل لور یا خور یا بله قریبه په نکاح امرکوي او لا باید حتمی مشوره ورسره وکړي که دهغه ښځی خوښه وه اقدام به وکړي او که یی خوښه نوه نو به دا نکاح حتمی پرېږدي.

باب لاینکح الاب وغیره البکر و الثیب الابر ضاها حدثنا معاذبن فضالة ..... ان النبی ﷺ قال لاتنکح الایم حتی تستأ مرو لا تنکح البکر حتی تستأذن قالو ایارسول الله وکیف اذنها قال ان تسکت .... باب اذا زوج ابنته وهی کار هة فنکاحه مردود حد ثنا إسماعیل ..... عن خنساء بنت خذ ام الانصاریة ان اباها زوجها وهی ثیب فکرهت ذلک فاتت رسول اللهصلی الله علیه وسلم فردنکاحها( بخاری شریف صـ۷۷۱ج ۲ ) هکذافی ( مشکوة المصابیح صـ۲۷۰) ولو استأ ذنها فی معین فردت ثم زوجها منه فسکتت صح فی الاصح بخلاف مالو بلغها فردت ثم قال رضیت لم یجز لبطلانه بالردقوله بخلاف مالو بلغها الخ لان نفاذ التزویج کان موقو فا علی الاجازة وقدبطل بالرد دوالردفی الاول کان لإستئذ ان لاللتزوج العارض بعده لکن قال فی الفتح الاوجه عدم الصحة لان ذلک الرد الصریح یضعف کون ذلک السکوت دلالة الرضا آه واقره فی البحر ( ردالمحتار صـ۳۲۵ج۲ ) .

او ډیرو کتابونو دفقه حنفی خصوصًا علماء دیوبند رحمهم الله تعالی دښځی رضاء یو امر لازم او ضروري ګرځولی دی لکه ( ردالمحتار صـ۳۲۴ج۲ ) ( امداد الفتاوی صـ۱۷۴ج۲ ) ( عزیزالفتاوی صـ۴۱۹ ـ ۴۳۰ ـ ۴۳۴ ) ( فتاوی دارالعلوم دیوبند صـ۷۳ج۸ ـ ۵۸ج۸ ـ ۲۲ج۸ ) وغیرها ....

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

## داطلاعاتو اوکلتور ریاست ته یو مهم اعلان سپارل
## وحضورته د محترم رئیس صاحب ریاست اطلاعات وکلتور

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته عرض دا دی څرنګه چه زموږ په دي معاشره کی د ښځو پر شرعی حقوقو ناروا تیری کیږي او دغه ظلم ته بیا داسلام پوښ ور اغوستل کیږي نو موږ د ښځو دحقوقو په باب یو مفصله فتوی جوړ کړه او بیا مولاندی مواد ځنی راخلاصه کړه نو ستاسو محترمینو څه هیله کوو چه دغه مواد دخپلو ټولو نشراتی ذرائعو په واسطه که اخبار ونه دی که رادیوګاني خصوصًا دکابل درادیو له طرفه په مکرر ډول وقت په وقت نشرته وسپاری په فارسی او پښتو ژبه چی مظلومانو ته خپل حق ورسیږي او په غیر شرعی کارونو باندي د شریعت او د مذهب لباس وانه غوستل سی وماأجرکم الاعلی الله الجلیل.

ټولو مسلمانانو ته خبر ورکول کیږي چه لاندي موادو ته جدي متوجه سی او پاملرنه ورته وکړي

**اول** : هره ښځه په میراث کی خپل حق لري او باید خپل حق ورکول سی هر څوک چه حق نه ورکوي هغه ظالم فاسق او فاعل دګناه کبیره دی.

**دوهم**: هغه صلح چه د ښځي په ورکولو باندي وسی هغه صلح ناروا ده ځکه چه د دغسی ښځو سره بیاسخت ظلم کیږي د دغه صلحو څخه باید اجتناب وسی او که پخوا سوي وي نو هم باید دهغه ښځو دورکولو څخه مخنیوی وسی که څه هم قصاص ساقط وي.

**دریم**: کونډی ښځی دخپل خوښی اورضاء دي هیڅ څوک یی نسی مجبوره کولای چه د میړه په اقرباؤ کی به نکاح کوي او هر څوک چه دغسی کوي هغه ظالم او فاسق دی او که دکونډی وتل د کوره څوک شرم او عاربولي د ایمان خطر ورسره سته.

**څلورم**: هغه ښځی چه قریبانو یی میراث یا نور مال غصب کړی وي او دهغه دغه کسانو د بیری د وجهی دکوره نسی وتلای د دغو ښځو په حق کی مرور الزمان نسته ځکه چه عذر دتغلب دخصم موجود دی.

**پنځم**: د ښځو د ورکولو په وقت کی باید دمیړه صلاح او تقوی حتمی په نظرکی ونیول سی نه یوا زی مال جمال نسب یا داسی نور.

**شپږم**: مهر او ولور حق یوازي دښځې دی پلار یا ورور یا بل قریب که په خپل سر دهغه څه شخصي استفاده کوي نو داظلم او غصب او گناه ده.

**اووم**: ښځۀ که پیغله وي که کونډه چه بالغه سی د دي په خوښه او رضاء به په نکاح ورکول کیږي که یی خوښه نوي هغه نکاح نه صحیح کیږي نو اول باید د ښځې سره مشوره وسی بیا په نکاح ورکول سی.

( نوټ ) که دپورته موادو څه متخلفین ونیول سی نو باید مربوطي محکمی ته خبر ورکول سی او د قاضی د طرفه د جدي تهدید او شدید تعزیر سره مخ سی.

بسم الله الرحمن الرحیم

## دسروز دفیتو(کیستو) حکم

**سوال** : محترم مقام دارالافتاء رئیس صاحب ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته احتراما زه د دوراهی د اوطاق مسئول دارنگه عرض لرم چه موږ د یوه نفره څخه ۴۳۰ داني فیتی گیر کړیدي او بعضو نورو خلکو څخه هم دسازو فیتی زمونږ په لاس کي راځی د دغه په مورد کښی مونږ ته هدایت راکړئ چه مونږ په دغه فیتو دساز څرنگه چلند وکړو لویه مهربانی به مووي.

( والسلام ملامحمد ولی اخند د دوراهی مسئول )

**جواب** : محترم مستفتی صاحب هغه د ساز پیتی چه تاسو نیولی دي د آهن ربا یاد نورو وسائلو په واسطة سره د ساز څه پاکی کی او صفایی کی اوخالي پیتی یی خپل مالک ته وسپاری او ورتسلیم یی کړی د دغه پیتو یا تیپ ماتول ډیر سخت ناروادی او داځکه چه پیته پخپله ند ه حرامه هغه ساز چه پکښی کي دی هغه حرام دی نو هر کله چه پیته د ساز څه پاکه سی او خالي پیته وگرزی خپل مالک ته باید تسلیم سی دلته دوی خبری نوري ډیري ضروری دي ( اوله خبره داده ) چه د خلقو په کورونو او موټرانو اوجیبونو کی تلاشی کول دپاره دساز دپیتو پیداکولو یا عکسونو پیداکولو یا نورو منکراتو پیداکولو داهم ډیر سخت ناروا کار دی په ایت شریف کښی منع څنی سویده په ډیرو احادیثو کی او په ډیرو کتابونو کی دفقهی د دغه تلاشی کولو حرام والی راغلی دی که دیو چا په جیب کی پیته ولیدل سی او هغه

وايي چه خالي پيته ده يا نعتونه دي تاسي بايد نور تحقيق ونکړي او په ټيپ يی مه ګوری ولي داهم حرام کاردی او که چيري تاسو بغيرله تلاشی ديو چا په موټر کی ساز واوريدی نو بيا هغه پيته راواخلی او صفايی کی بيرته ئی ورکی ماتول ئی حرام دي (دوهمه خبره داده ) بعضی کسان پيتی ماتوي ټيپ ماتوي او تلاشی کوي دخلقو په موټرانو او جيبونو کی دغه ناروا کارونه کوي او بيا داسی دليل وايی چه مونږ ته مشرانو امر کړی دی خو دي خلقو ته بايد وويل سی هر کله چه مشرپه ګناه سره امروکړي دهغه امر عملي کول حرام دی که چيري يو مشر تاسو امر کړي نعوذبالله چه لمونځ مه کوی نو واضح خبره ده چه د دغه امر منل ناروادی نو دلته هم کچيري مشرانو تاسی ته امر د تلاشی کړی وي د پاره دمنکراتو پيداکولو يا پيتو او ټيپونو ماتولو نو تاسی بايد په ډيراحترام او ادب خپلو مشرانوته دغه شرعی حکم وښياست او که بيا هم هغوی پر خپل صادر کړی امر ټينګار وکړی نو تاسوته بيا د دوی د دغه امر منل حرام دي خو بايد و وايو چه تلاشی کول دپاره د اسلحی (چه غيرشخصی وی) يانورو هغه موادو چه دامنيت دپاره ضرروي داسی تلاشی کول جايز دی بلکه ضروری دی.

يا ايها الذين آمنو إجتنبوا كثيرا من الظن ان بعض الظن إثم ولا تجسسوا الاية (۱۲ج ۲۶سورة الحجرات) ولا تبحثوا عن عورات المسلمين ومعايبهم و تستكشفوا عما ستروه الخ اخرج ابوداود وابن المنذروابن مردويه عن ابی برزة الا سلمی قال خطبنا رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال يا معشر من آمن بلسانه ولم يدخل الايمان قلبه لا تتبعوا عورات المسلمين فان من تتبع عورات المسلمين فضحه الله في قعر بيته وفي رواية البيهقي عن البراء بن عازب انه صلى الله عليه وسلم نادى بذلک حتى اسمع العواتق في الخدرواخرج ابوداود وجماعة عن زيد بن وهب قلنا لابن مسعود هل لک في الوليد بن عقبة بن معيط تقطر لحيته خمرافقال ابن مسعود قد نهينا عن التجسس فان ظهر لنا شئ أخذنا به (تفسير روح المعاني صـ۱۵۷ج ۲۶) وعن ابن عمر قال صعد رسول الله صلى الله عليه وسلم المنبر فنادى بصوت رفيع فقال يا معشر من اسلم بلسانه ولم يفض الايمان الى قلبه لا تؤذوا المسلمين ولا تعير وهم ولا تتبعوا عوراتهم فانه من يتبع عورة اخيه المسلم يتبع الله عورته ومن يتبع الله عورته يفضحه ولو في جوف رحله رواه

الترمذی ( مشکوۃ شریف صـ۴۲۷ ) ومعنـى الآيـة خـذواماظهـر و لاتتبعوا عـورات المسلمين اى لايبحث احد كم عن عيب اخيه حتى يطلع عليه بعد ان ستره الله . . . . عن ابى امامة عن النبى صلى الله عليه وسلم ان الاميرا ذا ابتغى الريبة فى النـاس افسد هـم ( احكـام القـران للتهـانوى۲۸۵ج ۴ ) الشرط الثالث ان يكون المنكر ظاهر اللمحتسب بغير تجسس فكل من ستر معصية فى داره واغلق بابه لايجوزان يتجسس عليه ( احياء العلوم صـ۳۲۵ج ۲ ) .

ٹیپ ریکاڈر مشین ۔ عموماً اس کو مفید کامون مین استعمال کیا جاتاهی کوئی شخص اپنی بدمذاقی سی گا نی بجانی مین بهی استعمال کر لیتاهو تو اس کہ وجہ سی اس مشین کو آلہ لهو ولعب کی حکم مین نهین رکھاجاسکتها ..... اس لئی اس مشین پر تلاوت قرآن اوردوسری مفید مضامین کاپڑهنا جایز هی اور اس مین محفوظ کرانا جائز هی ( آلات جدیده صـ۲۰۷ ) یا ایها الذین آمنو اطیعوا الله واطیعوا الرسول واولی الامر منكم ( الاية صـ۵۹۰ پاره ۵سورة النسـاء ) ثم ان وجوب الطاعة لهم ( اى لاولى الامر ) مادامو اعلى الحق فلا يجب طاعتهم فيما خالف الشرع فقد اخرج ابن ابى شيبة عن على كرم الله تعالى وجهه قال ۔ قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لاطاعة لبشرفى معصية الله تعالى ( روح المعانى صـ۶۶ج ۵ ) على المرء المسلم السمع والطاعة فيما احب واكره الاان يؤ مر بمعصية فان امر بمعصية فلا سمع ولا طاعة ( الفقه الاسلامى صـ۷۰۴ج ۶ ) ولكن لا تجب الطاعة عند ظهور معصية تتنافى مع تعاليم الاسلام القطعية الثابتة لقوله صلى الله عليه وسلم لاطاعة لاحد فى معصية الله انما الطاعة فى المعروف ۔ لا طاعة لمن لم يطع الله ( الفقه الاسلامى صـ۷۰۶ج ۶ ) الوظائف السياسية . . . . . أو لا المحافظة على الامن والنظام العام فى الدولة وقد عبر الماوردى عن ذلک بقوله حماية البيضة ( الوطن ) والذب عن الحريم ( الحرمات ) ليتصرف الناس فى المعايش وينتشر وافى الاسفارآمنين عن تعزير بنفس اومال وهذا مايقوم به الشرطة الان ( الفقه الاسلامى صـ۷۰۰ج ۶ ) .

والله تعالى اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## هغه شيان چې دښې اوبدې استفادې

## دواړو جوګه وي لکه راډيو، ټيپ، تلويزيون پرماتولوئې ضمان سته کنه؟

**سوال** : ښاغلی محترم رئيس صاحب د ارالافتاء السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته ، اما بعد څرنګه چه يوتعداد ټيپ ريکارډونه او فيتی د سروز کشف او دستګير کيږي ايا د دغه ټيپ او فيتو ما تول مونږ ته شرعاً اجازه شته کنه معلومات راکړي او څرنګه چه په بعض کورونو کښې يو تعداد ويډيوګانی او تلويزنونه کشف او ونيول سی ايا د دغو دوه شيانو ماتول مونږ ته روايش لری که يا لطفاً توضيحات راکړی ؟

﴿ مولوی سراج الد ين رئيس او مسئول د امربالمعروف ونهی عن المنکر ﴾

**جواب** : په استفتاء کی دوه قسمه شيان ذکرسوي دي يو ويډيو او تلويزون او دهغوی پيتی دي د دغو شيا نوخخه که څه هم صحيح استفاده ممکنه ده لکن په موجوده عصر کی په فعلی زمانه اوفعلی شرائطو کی زموږدوطن دايوازی عقلی امکان بلل کيږی صحيح استفاده بالکل نه ځنی کيږي نو دا الات د لهوولعب دي د دغه شيانو ماتيده که په اجازه داميرالمؤمنين وي نو دشکه وتلي ضمان نلري او ماتول يی مباح دي بل ټيپونه او راديوګاني او دټيپو پيتی دي دا هغه شيان دي چه هم صحيح استفاده ځنی کيدلاي سی لکه خبرونه قراءت وعظ اسلامی او نعتيه شعرونه يا نور اسلامی مضامين اوريدل او بده استفاده هم ځنی کيدلاي سی لکه د سروزونو او ريدل فلهذا پر دي شيانو باندي حکم د الات د لهوولعب نسو کولای او که چيري داحکم باندي وسی نو بيع او شراء به يی حرامه سی او يو ډيره لويه مسئله به ځنی جوړه سی فلهذا د دغه شيانو ماتول مباح ندي او د سروز پيتی بايد پ مقناطيسی الاتو خرابی او پاکی کړه سی اوصفا او خالي پيتی ورکول سی او غير له ماتيدوڅه يو بل قسم تعزير ورکول سی .

اذاكسر بر بط انسان او طنبوره او دفه او ما اشبه ذلک من الات الملاهي فعلى قولهما لاضمان وعلى قول ابى حنيفة رحمه الله تعالى يجب الضمان وذكر في الجامع الصغير ان على قول ابى حنيفه رحمه الله تعالى يضمن الا اذافعل باذن الامام ﴿الفتاوى الهندية صـ۱۳۱ج ۵﴾ وقال أبوحنيفة ومن كسر المسلم آلة من آلات اللهو والطرب كالطبل والمزمار والدف ونحوها فهو ضامن لا نها اموال لصلاحيتها لما يحل من وجوه الانتفاع لغير اللهو وان استعملت فيما لايحل كالمغنية اذا اعتدى عليها وتضمن قيمة هذه الألات خشبا منحوتا صالحا لغير اللهو اى تضمن قيمتها قبل التصنيع اما الصاحبان فقا لالاتضمن آلات الملاهي لان هذه الاشياء اعدت للمعصية ﴿الفقه الاسلامي صـ۷۱۵ج ۵﴾.

ریڈیو کا استعمال اگرچہ عام حکومتوں اور عوام کی بد مذاقی سے مخرب اخلاق اور غیر مشروع چیزوں میں زیادہ ترکیا جارہا ہے لیکن خبروں اور دوسری مفید اورجائز معلومات کا درجہ بھی اس میں خاص اہمیت رکھتاہیں اس لئے اس کا حکم یہ ہے کہ جائزکاموں میں اسکا استعمال جائز اوناجائز کاموں میں نا جائز ہے اور اس کی صنعت وتجارت مطلقاً جائز ہے بشرطیکہ اپنی نیت جائز کاموں کی ہو اگرچہ خرید نی والا اس کو ناجائز میں استعمال کرے (الات جدیدة ۱۷) ٹیپ ریکارڈر مشین یہ مشین اپنی وضع اور عام استعمال میں کچھ گراموفوں سے مختلف ہے کہ گراموفوں کا استعمال عام طور پر لہو ولعب اوطرب کی مجلسوں مین تفریح طبع کی لئے ہوتاہے اس کی مشین کا یہ حال نہیں بلکہ عموماً اس کو مفید کاموں میں استعمال کیا جاتاہے کوئی شخص اپنی بد مذاقی سےگانے بجانے میں بھی استعمال کر لیتاہو تواس کہ وجہ سے اس مشین کو آلۂ لہو ولعب کی حکم میں نہیں رکھا جا سکتا جیسی کہ گراموفوں کہ عموماً لہو ولعب میں استعمال ہونی کی سبب اس کوالات لہو کی حکم میں سمجھاگیاہے اس لئے اس مشین پر تلاوت قران اور دوسری مفید مضامین کا پرہنا جائز ہے اور اس میں محفوظ کرانا جائز ہے ﴿الات جدیدہ ص۔۲۰۷﴾.

والله تعالیٰ ﷻ اعلم

## بسم الله الرحمن الرحيم

## دسر دوېښتانو حکم

**سوال**: د سر د وریښتانو شرعي او سنت طريقه څنگه ده ، د وریښتانو غتول بغیرله څونو جائز دي کنه اوکه جائز نه وي نو په څه طريقه بايد اصلاح سی ؟

**جواب** : په دې مسئله کښې لاندې خبرې مهمې دي:

**( اوله خبره داده )** د سر دو ویښتانو غټول او بیا څونې کول د شکه وتلي سنت طریقه ده او حضرت مبارک صلی الله علیه وسلم ډیر وخت پخپله دا غه طریقه عملي کړیده او د سر خریل د بعضی علماء په نزد سنت دي او بعضی علماء ئې سنت نه بولي فقط جائز یې بولي او هغه کسان چې یې سنت بولي هغه یې هم د حضرت علی صاحب رضی الله تعالی عنه سنت بولي او د سر کوچنی کول اتفاقاً جائز دي خو د غه سنت د سنن زوائد څخه دي یعنی که څوک څونې پریږدي د سنتو د اتباع په نیت ثواب ورکول کیږي او که یې څوک نکړي عملي یاد سر وریښتان غټ کړي او نه یې کوچنی کوي پر هغه باندي هم هیڅ ملا متیا نسته ولي د غه سنت پر طریقه د عادت وه نه پر طریقه د عبادت.

**( دوهمه خبره داده )** تشبه د کفارو سره حرامه ده لکن د تشبه خبره باید واضحه سی هغه دا چې تشبه کول د کفارو سره په هغه شي کی چه هغه شی د دوی د شعائرو څخه وي یعنی د دوی یو امتیازی علامه وي د غه تشبه حرامه ده نه مطلق تشبه ولي د نفس تشبه څخه ځان ساتل نشی کیدلای کفار موټر کی سپریږي پر چوکی کښیني تلفون کوي نو که دا کارونه مسلمان وکړي هغه ته تشبه نسی ویل کیدلای او که په یو کار کی تشبه راسی لکن یو څه تغیر ورسره وي هم حکم د تشبه نه لري نو د سرو ریښتان چې یو څوک غټ کړي لکن څونې یې نکړې دي ته تشبه په نن عصر کی نه ویل کیږي ولي دا د کفارو امتیازی علامه نه ده پاته سوي بلکه د عامو مسلمانانو رواج ګرځیدلی دی لکه د پاکستان بنګلد یش هندوستان او نورې د نیا مسلمانان چې ټوله د سرو ریښتان غټوي او که بالفرض تشبه هم سی نو که یو څوک خولی پر سر کړي یالنګوټه یا لونګی وتړي نو بیا هم د هغه تشبه څه خلاص سو ولي تغیر پکښی راغلی د هیأت څخه د کفارو.

**( دریمه خبره داده )** په امر بالمعروف او نهی عن المنکر کی باید ډیر احتیاط وسی هغه کار چې اتفاقاً حرام وي یا مکروه تحریمی وي د هغه څخه باید منعه وسی او هغه کار چې اتفاقاً واجب وي یا مؤکد سنت وي په هغه باید امر وسی او په اختلافی امورو او مکروه تنزیهی او سنت غیر مؤکد باید په نن عصر کی کارونه لرئ او هغه امر یا نهی باید په ډیر

حکمت او ډیر حسن خلق وسی نبایده چې د هغه سړی د نورطغیان سبب سی یعنی که یوڅوک امر بالمعروف او نهی عن المنکر وکړي اوشدة وکړي او دا دخلقو د نفرت او نوري ګناه باعث سی نو دغه ټوله ګناه د امربالمعروف او نهی عن المنکرد کارکوونکی په غاړه ده ولې دې د دغه ګناه باعث جوړسو مونږ ټولو بلکه زیاتو خلقو پخپله لیدلي دي هغه خلق چه سرونه ئی غچی سوي دي یا خریل سوي دي په زور هغه د اسلامی تحریک څخه په شدید نفرت کی دي بلکه و علماء او طالبانو ته بنکنځل کوي چې د امفضی و کفرته ده او ډیر زیات خلق له دې وجې په نفرت کي دي اوکه دوی د شدة څخه کارنو وای اخیستی بلکه د دغه خلقو په سرکی بی لار ایستلي وای دخونو په رقم او په ښه اخلاقو نو هم به اصلاح د منکر راغلي وای هم به د خلقو نفرت نه وای هم به یی د خلقو د ګناه مسئولیت نه وای په غاړه او که هغوی بیرته هغه خرا به ولای د هغوی خپل مسئولیت به وای خلاصه دا چی د امربالمعروف د طریقی سمول د ټولو څخه اهم کاردی.

﴿ **د اولي خبري دلائل** ﴾ ان السنة فی شعر الرأس اما الفرق واما الحلق وذکر الطحاوي الحلق سنة ونسب ذلک الی العلماء الثلاثة کذافی التتارخانية يستحب حلق الرءس فی کل جمعة کذافی الغرائب ﴿ردالمحتار صـ۲۸۸ج۵﴾ ﴿الفتاوی الهندية صـ۳۵۷ج۵﴾ (وکان) ای علی رضی الله عنه (يجز) ای يحلق (شعره ﷺ) وبهذا الحديث استدل الطيبی علی سنية حلق الرأس لتقريره صلی الله عليه وسلم ولانه من الخلفاء الراشدين الذين امرنا بمتابعة سنتهم ورد عليه القاری وابن حجر فقالا ان فعله رضی الله عنه اذاکان مخالفا لسنته عليه الصلوة والسلام وبقية الخلفاء يکون رخصة لاسنة ﴿بذل المجهود صـ۱۵۲ج۱﴾ .

سنت دوقسم است سنت عبادت وسنت عادت مطلق لفظ سنت بر قسم اول اطلاق کرده میشود واستحقاق ووعدهٔ ثواب وترغیب بدان بهمین قسم منوط است وقسم ثانی هم خالی از برکت ودلیل محبت بودن نیست لیکن مقصود وجزو دین نباشد واگراین قسم محل امری از مقاصد دین در حق شخصی شود اورا ازان بازداشته شود پس

**د پنځم سوال جواب** : په شرعی بیت المال کی دری خبری ضروری دي اول: عوائد د بیت المال دوهم: جوړول او ترتیبول د بیت المال دریم : مصارف د بیت ا لمال ، (عوا ئد د بیت الما ل ) هغه اموال چه په بیت الما ل کی کښیښول کیدای سی په دي ډول دی (۱) زکوة د مواشی یعنی زکوة السوائم(۲ ) عشر (۳ ) هغه چه عاشرئی د تجارانو څه راجمع کوي هغه تجاران چه مسلمانان وي چه د دي ۳ انواعو تفصیل فقهاؤو مکمل ذ کر کړیدی او دلته حاجت ورته نسته(۴ ) پینځمه حصه د غنیمت(۵) هغه معدنونه او خزانی چه په دولتی مځکه کی پیدا سی یا په غیر دولتی او غیر مملو کة مځکه کی یی حکومت پیدا کړی ،(۶ )پنځمه حصه د هغه معدنو او خزانو چه په غیر مملوکة مځکه کی یی رعیت پیدا کړي او قابل د ویلیدو یا نر میدلو وي په اور سره ، (۷ ) خراج ،(۸ ) جزیة ، (۹ ) هغه چه عاشر یی د اهل ذمة د تجارانو څه اخلي یا ئی د هغه کفارو څه اخلي چه په أمان دار اسلام ته داخل سی ،(۱۰ ) لقطة ، (۱۱ ) میراث دلاوارثه متوفی ،(۱۲ ) هغه نوائب او ضرائب چه پر خلقو په وقت کی د ضرورة او د تیرسوو شرائطو مطابق حواله کیږي.

(فـصل مـا یوضـع فـی بیـت المـال اربعـة انـواع ) الاول زکـوة الـسوائم والعـشور وماأخـذه العاشـر مـن تجـار المـسلمین الـذین یمـرون علیـه. .... والثـانی خمـس الغنـائم والمعـادن والركـاز..... والثالـث الخـراج والجزیـة .... ومـا اخـذه العاشـر مـن المـستامنین وتجار اهـل الذمـة..... والرابـع اللقطـات هكـذافی محـیط السرخـسی ومـا اخـذ مـن تركـة المیت الـذی مـات ولـم یتـرک وارثـا او تـرک زوجـا اوزوجـة ( الفتـاوی الهندیـة صـ۱۹۰ج۱ ) هكـذافی ( بـدائع الـصنائع صـ۶۸ج۲ ) ( وامدادالمفتیـن صـ۱۰۷۳) قـال الحنفیـة والـشافعیة والحنابلـة فـی ارجـح الـروایتین عنـد هـم المعـدن تملـک بملـک الارض لان الارض اذاملكـت ملكـت بجمیـع اجـزاء هـا فانكانـت مملوكـة لـشخص كانـت ملكالـه وانكانـت فـی ارض للدولـة فهـی للدولـة وانكانـت فـی ارض غیـر مملوكـة فهـی للواجـد لانهـا مباحـة تبعـاً لـلأرض واما حـق الدولـة فـی المعـادن ففیـه رأیـان ایـضاً قـال الحنفیة

فــی المعــادن الخمــس لان الرکــاز عنــد هــم یــشمل المعــادن والکنــوز بمقتــضی اللغــة والبــاقی للواجــد نفــسه وذلــک فــی المعــادن الــصلبة القابلــة للطــرق وللــسحب کالــذهب والفــضة والحدیــد و النحــاس والرصــاص ( الفقــه الاســلامی صــ۷۳ج ۴ ) و ( ۵۰۶ صــج ۵ ) و ( ۷۷۵ صــج ۲ ) ( الفــتاوی الهــندیــــة صـــ۱۸۴ج ۱ ) ( وبـــدائع الـــصـــنائع صـــ۶۷ج ۲ ) ( والفتاوی التاتارخانیة صـ۳۳۹ج ۲ ) .

جوړول او ترتیبول د بیت المال: إمام به بیت المال څلور قسمه یعنی څلور بیتی کړی په اوله بیته کی به زکوة عشر او هغه مالونه چه عاشرئی د مسلمانانو تجارانو څخه اخلي جمع کوي یعنی اولی ۳ نوعی د عوائدو ـ او په دوهمه بیته کی به څلورم ، پنځم ، شپږم قسم د عوائدو جمع کوي په دریمه بیته کی به اووم ، اتم نهم قسم جمع کیږي په څلورمه بیته کي به لسم ، یولسم قسم جمع کیږي او دوولسم قسم به هغه ضرورا تو ته صرفیږي چه د هغه لپاره جمع سویدی. فعلی الامام ان یجعل بیت المال اربعة لکل نوع بیتا لان لکل نوع حکما یختص بـه لایشارکه مـال اخـر فیـه ( الفتـاوی الهـندیـة صـ۱۹۱ج۱ ) و ( امدادالمفتین۱۰۷۳ ) .

( مـصارف د بیت المـال ) د اولـی نـوعی مـصارف د مـصارفو سره د زکوة یو شی دی یعنی فقیر مـسکین عامـل مدیون فـی سبیل الله او مـسافرته بـه ورکـول کیـږي او دوهمـه نوعـه بـه یتیمـانو مسکینانو مسافرینو ته ورکول کیږي او دریمه نوعه به پر جنګی مـصارفو پلونه ویالو مساجدو او تنخواه ګانو کی کی مصرفیږي او څلورمه نوعـه بـه پر نفقة او دواد مریضانو او کفنونه د أمواتو او نفقة د لقیط او نورو عاجزانو ته ورکول کیږي چه دغه مضمون په ( الفتاوی الهندیة صـ۱۹۰ج۱ ) ( بدائع الصنائع صـ۶۸ج۲ ) ( امداد المفتین صـ۱۰۷۳ ) ( ردالمحتار صـ۳۰۲ج۳ ) کی راغلی دی کله که یوه بیته د بیت المال څه خالي سوه نو امام کولای سی چه د بلي بیتی څه پیسی په قرض واخلي او د هغه بیتی ضرورت ورته پوره کړی خو کله چه په هغه بیته کی بیرته مال پیدا سی د هغه بیتی قرض به ور اداء کوي مګر نه په هغه صورت کی که د اولي بیتی څه د دریمی بیتی د پاره واخستل سی یا بالعکس او پر فقراء مصرف سی چه په دي صورت کی د قرض بیرته ورکولو ضرورت نسته.

فان يكن في بعضها شئ فللامام ان يستقرض عليه ممافيه مال فان استقرض من بيت مال الصدقة على بيت مال الخراج فاذا اخذ الخراج يقضي المستقرض من الخراج الا انيكون المقاتلة فقراء لان لهم حظا فيها فلا يصير قرضا وان استقرض على بيت مال الصدقات من بيت مال الخراج وصرفه الى الفقراء لا يصير قرضا عليهم ﴿الفتاوى الهندية صـ۱۹۱ج۱﴾ هكذافي ﴿ردالمحتار صـ۳۰۸ج۳﴾

او راتلونکی څو خبری ډيري ضروري دي په مصارفو کـه د بيت المال ﴿اول﴾ امام او دهغه وزيران بلکه حکومتی مسئولينو تـه بايد دومره تنخواه ورکول سی چه د دوی کفايت وکی نه دومره چه هغوی ئی ذخيره کړي او په هره مياشت کی بايد دوی ته خپل حق ورکول سی ولی د بيت المال مالونه مشترک دي مستحقين دونه حق پکښی لري چه د دوی کفاية وکی نه تر دي زيات .

ولا يحل للامام وأعوانه من هذه الاموال الاما يكفيهم وعائلتهم ولا يجعلونها كنوزا ﴿الفتاوى الهندية صـ۱۹۱ج۱﴾ الذى فى الزيلعى هكذا ويجب على الامام ان يتقى الله تعالى ويصرف الى كل مستحق قدر حاجته من غير زيادة فان قصر فى ذلک كان الله تعالى عليه حسيبا آه ﴿ردالمحتار صـ۲۸۲ج۳بيروت﴾

﴿دوهم﴾ په تنخواه ورکولو کی مستحقينو ته ۳ امور بايد لحاظ سی ( اول ) حاجة ( دوهم ) علميت ( دريم ) افضليت يعنی هغه سړی چه ډير محتاج وي هغه ته دي تر غير محتاج زياته تنخواه ورکول سی همداراز د علماؤو د علميت رتبی بايد په لحاظ کی ونيول سی همداراز په نورو مسئولينو کی رتبی بايد ملحوظ سی. وكان عمر ﷺ يعطيهم على قدر الحاجة والفقه والفضل الخ ﴿ردالمحتار صـ۲۸۲ج۳بيروت﴾ ﴿دريم﴾ همداراز مسئولينو او مستحقينو ته بايد دومره قدر تنخواه ورکول سی چه په هغه تنخواه دغه مسئول پوره ګذاره کولای سی او نور احتياج وخلقوته پيدا نکړي لکه د مخکينی عباراتو څه چه معلومه سوه ﴿څلورم﴾ بيت المال هيڅکله بايد په غير شرعی امورو او غير ضروری کارونو او تعميرونو مصرف نسی همداراز د بيت المال په پيسو داسی تعميرات بايد جوړ نسی چه غرض پکښی مقابله وي د نورو مملکتو سره بلکه ټهږ کفايت بايد په هر امر کی

لحاظ سی داسی نه چه د خلقو حقوق ضائع یا بی ځایه مصرف سی. فان قصر الأئمة فی ذلک فوباله علیهم (الفتاوی الهندیة ص۱۹۱ج۱)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

## عشر پر مؤجر که پر مستاجر که پر دواړو ده؟

**سوال**: محترم ریاست دارالافتاء امارت اسلامی افغانستان السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته. زه حاجی محمد یوسف د حاجی محمد افضل زوی ستا سو وحضور ته په عرض رسوم ځرنګه چه زه په شهر کی جایداد (مځکی) لرم اکثره په اجاره ورکوم او د اجاره دار څخه په تدریجی ډول پیسی نقدآ د اجاری تحصیلوم په باره کی د عشر د مؤظف شخص (عاشر) سره ومفاهمی ته نشو رسیدلای او نه پوهیږو چه شرعاً عشر په کوم طرف اړه لري (مؤجر یا مستاجر) عاشر وایی زه د مالک او د اجاره دار د دواړو څخه عشر غواړم نو ستاسی د لوړ حضور څخه په احترام هیله لرم چه مطابق د احکامو د شریعت مونږ ته لیکلي او تحریری فتوی راکړئ چه مطابق ستاسو د هدایت اجراءات وشی. (محمد یوسف)

**جواب**: یو څوک چه خپل شخصی ملک چاته په اجارة ورکړی دا دوه۲ ډوله لري یو دا دی چه اجرة مثل کامل څني واخلی یعنی که دغه اصلي مالک ددغه اخستل سوي اجرة څخه عشر یا خراج ورکړی او بیاهم وده ته کافی منفعت پاته سی چه په دغونه منفعت باندي نور خلق هم په اجاره ورکولو راضی وي په دي صورت کی عشر پر مؤجر دی بل دا دی چه اجرة مثل کامل نه څني اخلي یعنی که مالک ددغه اجرة څخه عشر ورکړی نو ده ته به منفعت یا پاته نسی یا به لږ پاته سی په دي صورت کی عشر پر مستأجر دی.

فی الدرالمختار والعشر علی المؤجر کخراج مؤظف وقالا علی المستأجر کمستعیر مسلم الخ، قلت لکن فی زماننا عامة الاوقاف من القری والمزارع لرضا المستأجر بتحمل غراماتها ومؤنها یستأجرها بدون أجر المثل بحیث لاتفی الاجرة ولااضعافها بالعشر او خراج المقاسمة فلا ینبغی العدول عن الافتاء بقولهما فی ذلک.... فان امکن اخذ الاجرة کاملة یفتی بقول الامام

والافبقولهما لما يلزم عليه من الضرر الواضح الذى لايقول به احد (ردالمحتار صـ۶۰ج ۲) هكذافى (امدادالفتاوى صـ۵۸ج ۲) (واحسن الفتاوى صـ۳۴۷ج۴) (وتنقيح الفتاوى الحامدية صـ۱۰ج ۱)

والله تعالىٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دميراث دعوى ترڅه وخته كيداى سى؟

**سوال**: د مركزي دارالافتاء مكرمو علماء كراموته السلام عليكم ورحمة الله وبركاته څرنگه چه يوه ښځه د پلار د ميراث وارثه سى او بيا ئى دغه ميراث يو څوک غصب كړى تر څو كالو پورى د دې دعوي اوريدل كيږي چه د خپل جايداد دعوي وكړي ؟

**نوټ**: البته و دغې ښځى ته د پلار د مرگ وروسته هغه دغه جايداد د اكا لخوا څخه و دې ته نه دى تسليم سوى او نه ورتقسيم سوي دى ټول عمر د اكا په لاس كښى وو.

**(المستفتى عبدالرزاق)**

**جواب**: د ښځې د ميراث دعوى هم لكه د نورو دعواگانو په شان **۳۶** كاله وقت لري او كه منع سلطانى سوي وه نو **۱۵** كاله وخت لري خو دا هلته كه دغه مدة بى له څه شرعى عذره معطله سوي وه.لكه كوچنى والى يا سفر يا داچه مدعى عليه ظالم او جابر وي او داسى نور لكن د ښځو په هكله يو دا عذر هم دى چه د خپلو اقرباء و د ويرې له وجې نسي وتلاى او په محكمه كى عرض او خپله حق غوښتنه نسي كولاى نو كه يو ښځه دعوى ونه كړي او د دعوى وخت تير سى او بيا دغه عذر پيش كړي محكمه به ئى عذر قبلوي او دعوى به يى اورى چه په دې هكله د اميرالمؤمنين فرمان هم صادر سوى وي.

قال المتأخرون من اهل الفتوى لاتسمع الدعوى بعدست وثلاثين سنة الاانيكون المدعى غائبا او صبيا او مجنونا وليس لهما ولى او المدعى عليه اميراً اجائرا آه (ردالمحتار صـ۳۸۲ج ۴) لو امر السلطان بعدم سماع الدعوى بعد خمسة عشر سنة فسمعها لم ينفذ (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۳۸۰ج۴) اذا تركت دعوى الارث بلا عذر شرعى خمس عشرة سنة فهل لا تسمع ؟
الجواب: لاتسمع الا اذا اعترف الخصم بالحق (ردالمحتار صـ۳۸۱ج ۴) لانه يوجد عذررابع حيث اذا امنع الزوج زوجته صاحبة الحق من اقامة الدعوى منعًا

اکید او لم تدع من أجل ذلک فهذا العذر معدود عذرا شرعیا ولها اقامة الدعوی بعد زوال المنع ولاتعتبر المدة التي مرت اثناء المنع الا انه یجب ان یُثبت منع الزوج لها (علی افندی) ﴿دررالحکام شرح مجلة الاحکام صـ۳۰۸ج۴﴾.

بسم الله الرحمن الرحیم

## پر قبر بیلچه راګرزول، دقبرکیندلو

## سامان ترقبرغورزول اودقبر پرسر دبرلیک درول څنګه دي؟

**﴿اول سوال﴾** د مرکزی دارالافتاء ریاست ته ! عرض لرم هغه داچه میت کله پټ سی یو شخص بیلچه پر قبر باندي شاوخوا راګرزوي او دا وائی چه په دغه عمل سره دغه مخصوصه اندازه مځکه تر پنځه دیرشو کلو پوری د دي میت ملکیت ګرزی ؟

**﴿دوهم﴾** او هغه آلات چه قبر په جوړسوي وي تر قبر ئی اړوي هغه بلي خوا ته ئی غورځوي او دا ووایي چه د حضرت فاروق ﷺ په دور کی د یو چا پیسی په قبر کی لویدلي وي بیا هغه شخص قبر لځاوه د خپل مبلغ لپاره بیا ګرفتار سو نو د هغه وخته څخه دا کار کیږي چه د قبر کندلو آلات تر قبر هغه بلی خوا ته غورځوي چه خلق په خپلو جیبو باندي فکر وکړي ؟

**﴿دریم﴾**: د میت لپاره خلق پرډبره باندي کلمه نوشته کوي د میت ومخته هغه ډبره ودروي که چا دا عمل ونه کړی پر هغه ډیر ملامتیا کیږي ایادغه عمل په شریعت مقدس کی اصل لري کنه؟

﴿عبدالله﴾

**د اول او دوهم سوال جواب** : د دغه اعمالو دجواز یا نه جواز په هکله صراحةً نقل په یو معتمد کتاب کی مونږ ونه لیدی البته دونه به ووایو چه که یو څوک دغه اعمال په یو صحیح نیت کوي نو جائز دی مثلاً بیلچه د قبر پر شاوخوا راګرځوي په دي نیت چه که بعضی حیوانات قبر ته رانژدي سی او دغه د بیلچی اثار ووینی نو د دام له ویري به بیرته ولاړسی ، یا داچی اسباب ټول د قبر هغه طرف ته وغورځوي د اسبابو د یوځای کولو په نیت چه د ورکیدو او پاته کیدو د خطر څخه محفوظ سی او که یی څوک د سنت او ثواب په نیت کوي یا یی لازمه طریقه بولي نو د هغه لپاره مونږ څه اصل په کتابو کی نه دي پیدا کړي.

وامارسم گرداگرد گردیدن یک شخص پس از دفن میت بر قبر او مع زدن۔ بیل برزمین والات حفر قبر از جانب قبلہ بجانب مقابل بر بالائی قبرانداختن پس امور ست کہ از خیر القرون واز عصر ائمہ مذهب نقل ندارند بقی شد سخن درین کہ مقصد صحیحہ داردتابدعت حسنہ شود یا نہ؟ این هم یقیناً معلوم نیست لکن پابندان رسومات بعضی میگویند کہ درزدن۔ بیل امتحان ثبات قبر وهدم اوست ..... وبعضی گویند کہ این فعل برائی تخویف درندگان است کہ برزخمهائی۔ بیل درزمین گمان دام پوشیدن دران میکنند ودور میشوند ودرانداختن الات احضار ومعلومات اسباب خود میکنند تاکہ ازگم شدن محفوظ شوند..... وسوی ازین دیگر وجوه هم بعضی میگویند کہ رفع عذاب است درانداختن الات ودرزدن۔ بیل ضمۂ زمین کہ دراحادیث منقول است بان قدر کہ دراحاطۂ زدن۔ بیل شود منحصر میگردانند لکن تعلق بدل یقطان نمیگیرند چراکہ این رفع عذاب وهر ضمہ ازآنجملہ امورست کہ بدون نقل قوی ازشارع ثابت نمیشود (جرءة الائمة ص۵۹).

**د درییم سوال جواب**: پر ډبره یا د مړی پر تندي کلمه شریفه نوشته کول بغیر له رنګه جائز کار دی او که یی څوک نه نوشته کوي پروا نه لري او څوک چه ملامتیا باندي وایی هغه پخپله ملامت دی.

کتب على جبهة الميت او عمامته او كفنه عهد نامه يرجى ان يغفر الله للميت الدرالمختار مفاده الاباحة أوالندب ..... نقل بعضهم عن نوادرالاصول للترمذى مايقتضى ان هذا الدعاء له اصل وان الفقيه ابن عجيل كان يأمر به ثم افتى بجواز كتابته ..... وفيه نظر و قدافتى ابن الصلاح بانه لايجوزان يكتب على الكفن يس والكهف ونحوهما خو فامن صديد الميت ..... نعم نقل بعض المحشيين عن فوائد الشرجى ان مما يكتب على جبهة الميت بغير مداد بالاصبع المسبحة بسم الله الرحمن الرحيم وعلى الصدر لااله الا الله محمّدرسول الله وذلك بعد الفسل قبل التكفين اه (ردالمحتار صـ۶۶۹ج۱).

میت کی پیشانی پر صرف انگی کی اشارے سے بسم اللہ الرحمن الرحیم لکھ دینا جائز ہے کسی ایسے چیز سے نہ لکھی جائے جس سے پیشانی پر نقش بنی (کفایت المفتی ص۴۸ج۴) بغیر سیاھی وغیرہ کی اگر صرف انگلی سے اشارہ کردی

اس طرح کہ نشان دلواروں پر حروف کا نہ ہوتو کچھ حرج نہیں ہے اور شامی میں ہیں قلا عن فواید الشروحی الخ (فتاوی دیوبند ص۲۹۹ ج۵)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## حکومت کولای سي چې بې اسناده عراده جاتو ته اسناد ورکړي او محصول ئې کړي؟

**سوال** : د دارلافتاء محترم رياست ته : السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته.

**(اول)** محترما : په افغانستان کی ډیر عراده جات چه اسناد نلری موجود دي ، أمارت اسلامی دغه عراده جاتو ته سند نه ورکوي په دي خاطر چه دغه عراده جات به دغلاوي ځکه ډیر موټران او موټر سیکلان په پاکستان کی ورکیږي او په سرحدي سیمو کی خرڅیږي.

**(دوهم)** بعضی هغه عراده جات چه تجارت ئی بیله اصلي بنوره د عوام محصول په خاطر د رباط یا نرو سرحدي سیمو څخه د ایران یا پاکستان و افغانستان ته را آړوي او دلته هم جواز سیر نه ورکول کیږي ، ځکه دوی د گمرک سند محصول نه لري ، د پورته دوه قسمه غیر قانونی عراده جاتو د کثرت په خاطر په افغانستان کی راز راز مشکلات منځ ته راځی لکه د خلگو وهل گریزی چلول ، قاچاقی اموال انتقالول او د ترانسپورتي اصولو سرغړونه پیښیږي المطلب: ایا که أمارت اسلامی د پورتنیو مشکلاتو د مخنیوي په خاطر داسی طریقه جوړه کړي چه موجوده وسائط محصول کړي ، او د دې وروسته د نورو غیر قانوني وسائطو مخ نیوی وکړی د شریعت مقدس په رڼا کی څه حکم لري ستاسو د شرعی حکم په امیـــد ، والسلام.

(ملا محمد حسن (رحمانی ) والی قندهار ورئیس تنظیمه سمه جنوب)

**جواب**: په دې مسئله کی چه حکومت څنگه مناسبه بولي او د رعیتو لپاره پکښی سهولت وي هغسی کړنه دي وکړی خولاندي څو مهمی نکتی باید په نظر کی ونیول سی.

**(اول)** هغه مالونه چه شرعاً ئی استعمال جائز وي او عام خلق کولای سی چه دلته یی راوړي او دلي ئی خرڅ کړي حکومت ئی مخ نسی نیولای که چیري شدید او عام ضرر پر دغه واردولو نه وو مرتب.

**( دوهم )** هغه څوک چه د مال منقول یا غیر منقول ذوالید وي حکومت ته دا نه ده جائز چه شاهدان یا اسناد د ملکیت ځنی طلب کړي تر څو چه مدّعی ئی پیدا نسی او خپله دعوی په شرعی طریقه ثابته نه کړي که عراده جات وي که نور مالونه.

**( دریم )** حکومت کولای سی چه چلوونکو ته خپل اسناد ورجوړ کړی او دا تضمین ځنی واخلي که چیری مدّعی پیدا سی او دعوه ثابته کړي نو تاسی به هغو ته دغه خپل مال ورکوی یا به یی ضمان ورکوي او بائع ته به یی نه حواله کوي ځکه چه اصلي مالک اختیار لري د غاصب څخه ضمان اخلي او که د مشتری څخه.

**( څلورم )** حکومت چلوونکو ته اسناد ورجوړوي باید زائدي پیسی یعنی مقدار د قیمت متعارف د اسنادو ځني وانخلي.

**( پنځم )** ذوالیدی او تصرف حجة قاطعة دي د ملکیت تر څو چه مدعی او معارض وجود ونلري او د اسنادو نه درلودل قرینه قاطعه د دي نه ده چه دغه ذوالید دی غل وي یا دی غاصب.

**( شپږم )** هغه واردوونکی د عراده جاتو چه عراده جات راولي او اسناد ونه لري د هغو خلقو بندي کول یا تعزیر ورکول یا متهم کول په غلا او غصب باندي جواز نه لري تر هغه وخته چه د هغه د مال مدعی پیدا کیږي او خپله دعوی ثابته وي بلکه هغو ته دی هم حکومت اسناد ورکړي او تصمین دی ځنی واخلی یا یو بله شرعی مناسبه طریقه دي جوړه کړل سی.

**( اووم )** هغه واردوونکی چه د اصلي بندرو څخه استفاده نه کوي بلکه د دښتو او غرونو څخه استفاده کوي هغوئ ته دي تعزیر ورکول سی په سبب د مخالفت د امر څخه د حکومت خو عراده جاتو ته باید هیڅ تعرض ونکړل سی او نه یی باید عراده جات محبوس سی ځکه چه تعزیر مالی زمونږ په مذهب کی هیڅ جواز نه لري.

التصرف علی الرعیة منوط بالمصلحة (المجلة صـ۵۸) ویشمل ایضاً الاوصیاء ومتولی الاوقاف فان جمیعهم تناط تصرفاتهم لافائدة لمن هم تحت ولایتهم بالمصلحة ای بما فیه نصح یعود الیهم والافتصر فهم غیر صحیح ولانافذ شرعاً (شرح المجلة للاتاسی صـ۱۴۲ ج۱) وفی ردالمحتار قد قالوا ان وضع الید والتصرف من اقوی مایستدل به علی الملک ولذا تصح الشهادة بانه ملکة وفیه ـ ولیس للامام ان

يخرج شيئا من يد احد الابحق ثابت معروف۔ وفيه۔ فان من بيد مشئ لم يعرف من انتقل اليه سه يبقى في يده ولا يكلف ببينة ثم قال و من وجدنا الخ۔ وفيه۔ قال البيكى ولو جوزنا الحكم برفع الموجود المحقق اى وهو اليد بغير بينة بل بمجرد اصل مستصحب لزم تسليط الظلمة على مافى ايدى الناس ۔ وفيه۔ قال وسبقه الى ذلک الملک الظاهر بيبرس فانه ارادمطالبة ذوى العقارات بمستندات تشهد لهم بالملک والا انتزعها من ايديهم متعللا بما تعلل به ذلک الظالم فقام عليه شيخ الاسلام الامام النووى رحمة الله تعالى واعلمه بان ذلک غاية الجهل والعناد وانه لايحل عند احد من علماء المسلمين بل من فى يده شئ فهو ملكه لايحل لاحد الاعتراض عليه ولا يكلف اثباته ببينة ولازال النووى رحمة الله تعالى يشنع الخ نقل اجماع العلماء على عدم المطالبة بمستند عملا باليد الظاهر فيها انها وضعت بحق آه (ردالمحتار صـ۲۸۱ج ۳) سئل فى رجل غصب قمح زيد وباعه من أخر وسلمه و تصرف به المشترى و يريد زيد تضمينه مثل قمحه حيث لم ينقطع المثل بعد ثبوت ذلک مرعًا فهل له ذلک الجواب نعم ولو باعه الغاصب وسلمه فالمالک بالخيار ان شاء ضمن الغاصب وجازبيعه والثمن له وان صمن المشترى رجع على الغاصب بالثمن وبطل البيع ولايرجع بما ضمن عليه وان باع ولم سيلم لايضمن بزازية تنقيح (الفتاوى الحامدية صـ۱۵۴ج ۲) وهكذا (صـ۱۱ج ۲) احد اسباب الحكم القرنية القاطعة ايضًا (۱۷۴۰) القرنية القاطعة هي الامارة البالغة حد اليقين مثلاً اذاخرج رجل من دار خالية خائفامد هو شافى يده سكين ملوثة بالدم فدخلت الدار فى الحال و شوهد فيها رجل مذبوح فى ذلک الوقت فلا يشتبه فى ان قاتله هو ذلک الرجل ولا يلتفت الى الاحتمالات الخ (المجلة صـ۱۷۴۱) اعلم ان فى جنش هده المسائل اختلافا حاصله انه لايمنع على أصل الاما وهو ان كل من تصرف فى خالص ملكه لايمنع منه فى الحكم وان لحق بالغير الضرر (عمز عيون البصائر صـ۲۸۲) و تجب طاعة الأمام عادلا كان او جائرا اذالم يخالف الشرع (ردالمحتار صـ۳۴۰ج ۳) لايجوز التعزير بأخذ المال فى الراجح عند الائمة لما فيه من تسليط الظلمة على اخذ مال الناس فيأكلونه (الفقه الاسلامى صـ۲۰۱ج ۶) والحاصل ان المذهب عدم التعزير باخذ المال (ردالمحتار صـ۱۹۵ج ۳).

**نوټ** باید بیاهم یادونه وکړو چه دغه موجوده وارد سوي مو ہر سیکلانو څخه باید اصلي کاغذان و نه غوښتل سی او نوي چه وارديږي دهغو ممانعت هم باید و نسی البته که د

ضرورت په واردوونکو ته خبر ورکړي چه بی کاغذاتو عراده جات واردنکی او بی له اصلي بند بله لار یی واردنکی نو د ضرورت په اساس حکومت ته د داسی حکم کولو اجازه سته کَه په بله طریقه ئی مخنیوی نسوای کیدلای لکه چه د مخکنی عباراتو څخه څرگندیږي.

بسم الله الرحمن الرحيم

**محصول جوار لري کنه؟ داسنادو اونمبرپلیټ پیسي څنگه دي؟**

**سوال:** ډیرو قدرمنو د دارالافتاء علماء کرامو السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته.

**(اول)** زمونږ د پورتنی استفتاء خلاصه داچه د ذکر سوو عراده جاتو محصول جواز لري که یا ؟

**(دوهم)** څنگه چه اسناد خپله طریقه لري ، لکه د کاغذ چاپ او په دفتر کی ثبت او نمبر پلیټ ورجوړول مصارف لري حکومت چه دغه پورتنی شیان د عراده جاتو ذوالیدینو ته ورکوي ایا د دغه ورقو قیمت چه د اسنادو په ډول ورکول کیږي جواز لري کنه ؟

(ستاسو خادم ملا محمد حسن (رحمانی) والی قندهار ورئیس تنظیمه سمه جنوب)

**جواب:** محترمه د محصول په حق باید و وایو چه د غیر محصول شده عراده جات حکم د عامو مالونو لري. لکه نور عام مالونه چه تاسو محصولوی موټرسیکلان هم د هغو حکم لري داچه موټرسیکلان وختی وارد سویدي نو مانع د محصول نگرځی که چیری د امیرالمؤمنین امر او اجازه وي. او د اسنادو په باره کی باید و وایو چه د أسنادو هغه پیسی چه په هغو اسناد ومصرف سویوی د هغو اخیستل جواز لري ځکه چه حکم د بیع لري او نورې زائدې پیسې جواز نه لري او که یو لږ مقدار نورې دربح او گټې په خاطر پر واچول سی هم باک نه لري په دي شرط چه خلگو ته تکلیف نسی او غبن فاحش نه و نه رسیږي نور تفصیل په مخکنی فتوی کی ذکر دی.

بسم الله الرحمن الرحيم

**په زکوة إمامت، صاحب نصاب ملاته زکوة دحاجت اصلی تعریف څنگه دي؟**

**سوال:** محترم رئیس صاحب او ټولو علماء کرامو حضور ته السلام علیکم ورحمة الله و برکا ته.

وبعد : عرض دادی چه نن ورځ اکثر علماء کرام کار کسب او کوم تجارت نه لري بلکه عامي وظيفي يي امامتونه دي او په امامتونو کی مقتديان زکوة او صدقة الفطر و خپلو امامانو ته ورکوي او مونږ اوريدلي دي چه د زکوة او صدقة الفطر مصرف فقير دی کوم شخص چه مالک د نصاب وي هغه ته يي اخذ حرام دی ، د بلې خوا اورو چه ملا تر هره وخته مستحق د زکوة او صدقة الفطر دی ولو که د ۴۰ کاله نفقه و لري يا د سروزرو په څين کی سپور وي او اکثر ملايان وايي چه نصاب چه د حاجات اصليه وو څخه زيات شی نو بيا مالک د نصاب زکوة نسی قبض کولای او که يو ملا فرضًا سرای يا موټرسايکل نلري و هغه ته ئی ضرورت وي نو بيا تر هغه وخته چه دی مذکور شيان رانسی دی مالک د نصاب نه بلل کيږی خلاصه دا ده چه حاجات اصليه په اعتبار د وجود معتبر دی که په اعتبار د مال او کوم ملا چه بيله زکوته امامت نه کوي او يا مقتديان بيله امامته زکوة نه ورکوي ايا په دغه صورت کی د زکوة فرضيت اداکيږی کيا ؟

**د اول سوال جواب** : دا خبره چه ملا د ۴۰ کالو نفقه ولري هم زکوة ورته جائز دي يا امثال د داسی خبرو په مذهب کی د امام صاحب غير معتمد عليه اقوال دی نه علماء کرامو پر داسی اقوالو فتوی ورکړيده بلکه ملا ته زکوة ورکول يا عامو مسلمانانو ته هيڅ تفاوت نه لري.

اعلم ان الفقير شرط فی جميع الاصناف الا العامل کما سيجئ (الدرالمنتقی فی شرح الملتقی بهامش مجمع الانهر صـ۲۲۰ج۱) (الطحطاوی علی الدرالمختار صـ۴۷۳ج۱) وهذالفرع (ای قول صاحب الدرالمختار ان طالب العلم يجوز له اخذالزکوة ولو کان غنيا) مخالف لاطلاقهم الحرمة فی الغنی ولم يعتمده احد(ط) قلت وهو کذلک والاوجه تقييده بالفقير ويکون طلب العلم مرخصا لجواز سؤاله من الزکوة وغيرها وانکان قادرا علی الکسب اذبدونه لايحل له السؤال کما سياتی (ردالمحتار صـ۶۵ج۲). عالم غنی مالک نصاب کو زکوة و صدقات واجبہ دینا اور اس کو لینا صحیح مذہب کی موافق جائز نہیں ہے اور فی سبیل اللہ میں اگر چہ طالب علم داخل

ہو سکتی ہیں لیکن محتاج ہونا اس کا شرط ہے (فتاوی دار العلوم دیوبند ص۲۵۲ ج۶ و ص۲۴۴ ج۶ و ص۲۶۳ ج۶ و ص۲۸۰ ج۶) (احسن الفتاوی ص۲۶۲ ج۴).

**د دوهم سوال جواب**: بعضی علماء او مصنفین لکه صاحب د هدایة او داسی نور نفس حوائج اراده کوي او نور علماء لکه صاحب د ردالمحتار و ابن الملک او داسی نورو ترجیح و دې قول ته ورکړی ده که یو سړی نصاب ولري او غواړی چه حوائج اصلیة ته ئی صرف کړی او هغه حوائج واقعًا حوائج اصلیة وي نو دغه نصاب لکه عدم نصاب داسی دي یعنی حرمة د اخذ د زکوٰة نه باندي مرتبیږی لکن که کال تیر سو او هغه نصاب ورسره موجود وو حوائج اصلیه ته ئی نه وو صرف کړی نو پر دغه نصاب باندي زکوٰة لازمیږي او صاحب یی غنی گرځی او زکوٰة اخستل ورته حرام گرځی.

فاذا کان له دراهم مستحقة بصرفها الی تلک الحوایج صارت کالمعدومة کما ان الماء المستحق بصرفه الی العطش کان کالمعدوم و جاز عنده التمیم آه و ظاهر قوله فاذا کان له دراهم الخ ان المراد من قوله و فارغ عن حاجته الاصلیة ما کان نصابا من النقدین او احدهما فارغًا عن الصرف الی تلک الحوائج لکن کلام الهدایة مشعر بان المراد به نفس الحوائج ..... فاذا کان معه دراهم امسکها بنیة صرفها الی حاجته الاصلیة لاتجب الزکوة فیها اذا حال الحول و هی عنده لکن اعترضه فی البحر بقوله و یخالفه ما فی المعراج فی فصل زکوة العروض ان الزکوة تجب فی النقد کیفما امسکه للنماء او للنفقة و کذافی البدائع فی بحث النماء التقدیری ..... لکن حیث کان ما قاله ابن ملک موافقًا لظاهر عبارات المتون کما علمت و قال ح انه الحق فالاولی التوفیق بحمل ما فی البدائع و غیره علی ما اذا أمسکه لینفق منه کل ما یحتاجه فحال الحول و قدبقی معه منه نصاب فانه یزکی ذلک الباقی و انکان قصده الانفاق منه ایضًا فی المستقبل لعدم استحقاق صرفه الی حوائجه الاصلیة وقت حولان الحول (ردالمحتار ص۶ ج۲) أما المال المحتاج الیه لنحو نفقة فعلی مافی ابن ملک لازکاة فیه و تجب علی ما فی المعراج قال الحلبی و الحق مافی ابن ملک لانه مستحق الصرف الی حوائجه

(حـاشية الطحطاوى على الدرالمختار صـ۳۹۲ج۱) وهـو (اى الفقير من له ادنى شئ) ى دون نـصاب او قـدر نـصاب غير نـام مـستغرق فى الحاجة (الدرالمختار) قوله مستغرق فى الحاجة اما اذا لم يكن محتاجا اليه فتحرم عليه الزكوة و لا تجب عليه بل تجب عليه صدقة الفطر (طحطاوى على الدرالمختار صـ۴۲۳ج۱) ولا (اى لاتحل الزكـوة) الى (غنـى) يملك قدر نـصاب فـارغ عـن حاجته الاصلية من اى مال كان (الدرالمختار) قوله فارغ الخ اما لو كان مستغرقا بها حلت . . . . . قوله من اى مال كان . نـقداً او عـروضٌ تجارة او سائمة (طحطاوى على الدرالمختار صـ۴۲۷ج۱) قوله من اى مال كان يعنى سواء كان دراهم او دنانير او سوائم او عروضًا للتجارة او لغير التجارة لكنه فاضل عن حاجته فى جميع السنة آه زاهدى (هامش تبيين الحقائق صـ۳۰۲ج۱) (هكذا فى الجوهرة النيرة صـ۱۶۹ج۱) (احسن الفتاوىٰ صـ۳۰۱ج۴).

**د دریم سوال جواب**: ورکول د زکوة په عوض کی د امامت یا تبلیغ یا درس **هیڅکله** جواز نه لري نو که په وخت کي د ورکولو د زکوة منظور او مقصود فقر د امامو او احتیاج د هغه وو نو زکوة یی صحیح دي او که منظور یي امامت او خدمت د هغه وو نو زکوة یی نه اداکیږي او جواز نه لري پر تهولو امامانو لازمه ده چه په دې مسئله خلق پوه کړي چه د خلقو زکوة صحت پیدا کړي.

زکوة وفطره وغیره صدقات واجبه بلا معاوضه فقراء کو دینا ضروری ہے پس امام کو بمعوضه امامت اس میں سے دینا اور اس کو لینا درست نہیں ہے فقط البتہ اگر یہ رقم مشاہرں کی علاوہ الگ سے محتاج سمجھ کر دی جائے اور وہ مستحق زکوة هے تو درست ہے (فتاوی دارالعلوم دیوبند ص۲۱۳ج۶ ص۲۷۵ج۶) امام کیلئے بعوض امامت زکوة دینا جائز نہیں ہے ولاحيلة لجواز ذلک اصلا (امدادالاحکام ص۹۶ج۲)

والله تعالیٰ ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## په عشر اوزکوة امامت صحت لري کنه؟
## که نه ئې لري ورکول سوی عشر عشر بلل کیږي کنه؟

**سوال**: محترم ځرنگه چه تاسو ته معلومه ده چه زمونږ د قندهار د صحراء په علاقو کښې له وقته ځخه داسی رواج او عادت راغلی دی چه خلگ ملا امام په مسجد کښې مقرر کړي بلا قید او شرط بیانو ددغه مسجد خلگ د خپلي مځکي او باغونو عشر و دغه امام ته ورکوي. او دغه امام بیا د دغه کلي خلگو ته جماعت ورکوي کو چنیانو ته سبقان وایي او که په یو قریه کي مقبره یا فاتحه پیښه سی نو دغه ملا امام او مقتدیان عادتًا و دغه ځای ته په جمع واری سره ورځی او دغه ملا امام بیاتر دا بله کاله پوری دلته او سیږي که پر نیم کال ورځنی ولاړسی نو بیا مقتدیان یو څه عشر ځنی راگرځوي خو دغه مذکور شیان اوله ورځ د ملائی ورکولو په عقد کښې منعدم وي لکن صرف یو عادت او رواج د قدیم ځخه پر دغه طریقه راغلی دي او ځینی وخت داسی هم کیږي که یو مقتدی د دغه ملا ځخه څه عشر منع کړي نو بیا ملا په حکومت کښې عریضه کوي او هغه باقی عشر ځینی غواړي.
اوس عرض دادی چه آیا دغه عشر پر دغه طریقه مذکوره عشر کیږي او که اجرت کیږي او هغه منع سوی عشر ددغه ملا امام حق کیږي که یا؟ چه ډیر زیات علماء مدرسین او غیر مدسین د قدیم القدیم ځخه پخ دغه عمل مبتلاء دي؟

﴿ المستفتی محمد یونس مظلوم یار ﴾

**جواب**: دلته درې خبرې ډیرې ضروري دي.

(**اوله خبره داده**) هر چاته چه عشر یا زکوة ورکول کیږي شرط یې دادی چه هغه به فقیر یا مسکین وي او د نصاب قدر مال به زائد تر خپلو ضروریاتو نه لري (پرته له عاشرانو ځخه) هر څوک چه وي که ملام امام وي یا قریب وي یا همسایه وي فقر یې شرط دی او که فقیر نه وي او څوک زکوة یا عشر ورکړی هغه زکوة یا عشر ئی نه صحیح کیږي او غاړی یې نه خلاصیږي.

( **دوهمه خبره داده** ) زکوة یا عشر ورکول به خاص د خدای تعالی د رضاء لپاره وي نه به د امامت په مقابل کی وي نه به د کوچنیانو د سبقانو نه بل داسی کار او که څوک زکوة یا عشر د امامت په عوض کی ورکړی غاړی ئی نه خلاصیږي او هغه ترتیب چه مستفتی لیکلي دي نو عام طور په وطنو کی عشر او زکوة د امام حق بلل کیږي او امام چه امامت کوي هم یی داغه مطلب وي او هر شی چه په اصطلاح کی موجود وي هغه لکه شرط کړل سوي داسی وي نو په دې صورت کی د خلقو زکوة یا عشر د امامت په عوض کی سو ، او که یو امام ته مقتدیان علیحده أجرة مقرر کړی پرته له زکوة او عشر څخه او دا هم ورته ووایی چه زکوة یا عشر چه مونږ هر چاته ورکاوه زمونږ خوښه ده یا امام پخپله مقتدیانو ته اختیار ورکړی او بیا مقتدیان خاص او خاص د امام د مسکنت په وجه ده ته زکوة یا عشر ورکړی نو دا صحیح کیږي. حاصل دا چه زکوة یا عشر په مقابل کی د امامت و غیره قطعًا صحت نه لري.

( **دریمه خبره داده** ) امام چه پر زکوة یا عشر باندي د مقتدیانو سره دعوه کوي دا عمل حرام دی او دا دعوی او عارضه اوریدل د ټولو ریاستو او محاکمو لپاره حرامه ده او که په دې طریقه سره څوک زکوة یا عشر تر لاسه کړی نو د هغه غاړی نه خلاصیږي او دا په دې سبب چه دعوی خو طلب د خپل حق دی او زکوة یا عشر چه فقیر قبض کړی نه وی دده شخصی ملک او حق نه بلل کیږی نو دعوی به ئی څنګه مسموع شی دا ډیره مهمه مسئله ده امامان مکلف دي چه پر ځای ددې چه دعوی وکړی خلق په دې مسائلو پوه کړی چه هم د ورکوونکی غاړی خلاصی سی هم د اخیستونکی.

اعلم ان الفقیر شرط فی جمیع الاصناف الا العامل کما سیجیء ( الدرالمنتقی بهامش مجمع الانهر صـ۲۲۰ج۱ ) ( حاشیة الطحطاوی علی الدرالمختار صـ۴۲۳ج۱ ) وهذا الفرع ( ای قول صاحب الدرالمختار ان طالب العلم یجوزله اخذالزکوة و لو کان ) مخالف لا طلاقهم الحرمة فی الغنی ولم یعتمده احد قلت وهو کذلک و الاوجه تقییده بالفقیر و یکون طلب العلم مرخصالجواز سؤاله من الزکوة و غیرها و انکان قادرا علی الکسب اذ بدونه لایحل له السؤال کما سیأتی ( ردالمحتار صـ۶۵ج۲ ) ولا ( ای لاتحل ) الی غنی یملک قدرنصاب

فـارغ عـن حـاجـتـه الاصـلـيـة مـن اى مـال كـان ( الـدرالمختار بهـامش الطحطاوی صـج۱ ) ( لله تعالى ) بيان لاشتراط النـيـة الـدرالمختار قوله بيان لاشتراط النـيـة ) فانها شرط بالاجماع فى مقاصـد العبادات كلهـا بحـر ( ردالمحتار صـ۴ج۲ ) هـكذافي ( الفتاوى الهندية صـ۱۷۰ج۱ ) و قوله لله تعالى ﷻ لان الزكـاة عبادة ولا بدفيها من الاخلاص لله تعالى ﷻ لقوله تعالى و ما أمروا الاليعبدوا الله مخلصين له الدين ( تبيين الحقائق صـ۲۵۲ج۱ ) ولو نوي الزكـاة بما يـدفع المعلم الى الخليفة ولـم يستأجره انكان الخليفة بحال لو لـم يدفعه يعلم الصبيان ايضًا اجزءه والّا فلا وكذا ما يدفعه الى الخدم من الرجال و النساء فى الاعياد و غيرها بنـية الزكـاة ( الفتاوى الهندية صـ۱۹۰ج۱ ) .

امام کیلئے بعوض امامت زکوۃ دینا جائز نہیں ہے ـــ ولاحيلـــة لجـــواز ذلـــک اصـــلا ( امدادالاحکام صـ۹۶ج۲ ) امام کو بعوض امامت اس میں سے دینا اور اس کو لینا درست نہیں ھی فقط البتہ اگر یہ رقم مشاہرہ کی علاوہ الگ سے محتاج سمجھ کردی جائے اور وہ مستحق زکوۃ ہے تو درست ہیں ( فتاوی دارالعلوم دیوبند صـ۲۱۳ج۶ـصـ۲۱۲ج۶ـصـ۲۷۵ج۶ ) هکذا فی ( خیرالفتاوی صـ۴۱۲ج۳ ) ( امدادالمفتیـن صـ۴۲۱ ) ( فتـاوی محمودیـة صـ۴۳ج۳ ) ( احسن الفتـاوی صـ۲۲۲ج۴ ) المعروف عرفا كالمشروط شرطا ( المجلة صـ۴۳ ) اى المعروف المعتاد بين الناس و ان لم يذكر صريحا فهو بمنزلة الصريح لدلالة العرف عليه ( اتاسى صـ۱۰۰ج۱ ) الدعوى هى طلب واحد حقه من آخر فى حضور الحاكم ( المجلة المـ۱۶۱۳ ) والله تعالى ﷻ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## دحوالې کميشن او تومن ارزانه اخيستل وروسته ګران پلورل څه حکم لري؟

**سوال** : د دارالافتاء علماء کرامو ته السلام عليکم ورحمة الله وبرکاتهُ.

( **اول** ) زه حاجی عبدالله د تاراسنګ د سرای صراف داسی سوال لرم ۱ يو سړی دلته و ماته مثلاً ۵ لکه کلداری راکوی زه په کوئټه کښې و ده ته ۵ لکه کلداری ورکوم يا بالعکس د دغه سړی څخه پر يو لک کالدارو باندي مثلاً يو لک افغانی مزدوری اخلم دغه جائز دی او کنه ؟

( **دوهم** ) زه پر يو سړی تومن خرڅوم که پيسی نقدی وي او ارزانه ئی ورکوم او که ئی پيسی مثلاً شل ورځی وروسته وي بيا يی څه ګران ورکوم دغسی بيعه روا ده او کنه ؟

**د اول سوال جواب** : دغه صورت چه په استفتاء کی ليکل سوي دي د قسمه د مزدوری او أجاری نه دی د دوو وجهو څخه:

( **اوله وجه دا ده** ) أجير په دي مکلف دی چه بعينه هغه شئ به مؤجرته ورتسليموي چه مؤجر ده ته د انتقال لپاره ورکړی دي او په صورت کی د استفتاء هغه کالداری چه په کوئټه کی ورکول کيږی غير دی له هغه کالدارو چه په قندهار کی يی تسليم کړی دي او هغه شئ چه اجير ته د انتقال لپاره ورکول کيږي هغه امانت وي د أجير سره په نزد د إمام صاحب او په امانة کی نقود متعين کيږي په تعين سره.

( **دوهمه وجه دا ده** ) عرف او اصطلاح دا ده چه دغه پيسی چه دلته ئی صرّاف تسليم کړی حتمًا به ئی په کوئټه کی هغه سړی ته ورکوي که څه هم تاوان سوی وي يا هلاک سوی وي او حال دا چه اجير أمين وي ضامن نه وي په نزد د إمام صاحب او هغه شی چه معروف او مصطلح وي هغه لکه مشروط داسی وي.

عرفنا فيما سبق رأى الجمهور فی صفة يدالاجير المشترک وهو انها يد أمانة فلا يضمن هلاک العين الا بالتعدی او بالتقصير ( الفقه الاسلامی صـ۷۷۵ج ۴ ) ولا يضمن ما هلک فی يده و ان شرط عليه الضمان لان شرط الضمان

فی الامانة باطل کالمودع و به یفتی کما فی عامة المعتبرات وبه جزم اصحاب المتون فکان هو المذهب (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۴۵ج۵) اما الاجیر المشترک..... فعلی رأی الامام الاعظم و زفر و حسن بن زیاد وحماد رحمهم الله تعالی و هو القیاس ان ید الاجیر المشترک ید أمانة کیدالاجیر الخاص..... اما عند الامامین فید الاجیر المشترک ید ضمان (دررالحکام شرح مجلة الاحکام صـ۷۰۴ج۱) و قد رجحت المتون الفقهیة و الخانیة مذهب الامام الاعظم کما ان المجلة قد قبلته (دررالحکام صـ۷۰۵ج۱) اذا کانت العقود لیست للمعاوضة کالامانة والوکالة و الشرکة و المضاربة والغصب فالنقود تتعین فیها بالتعین مثال ذلک الامانة ـ اذا اودع انسان آخر مائة دینار فاذا کانت تلک الدنانیر موجودة عینا وجب علی المودع ان یردها عینا الی صاحبها و لیس له ان یبقی تلک النقود و یدفع الی المودع غیرها بغیر رضاء (دررالحکام شرح مجلة الاحکام صـ۲۲۴ج۱) (او که رضاء د اصل مالک حاصله سی نو بیا دا معامله پخپله په قرض بدلیږي چه په دي سره تصریح سوي ده په (امداد الفتاوی صـ۱۴۴ج۴) کی المعروف عرفا کالمشروط شرطا (المجلة المـ۴۳) المعروف بین التجار کالمشروط بینهم (المجلة المـ۴۴).

(**نوټ**) که چیری د صاحبینو پر مذهب فتوی ورکول سی چه هغه اجیر مشترک امین نه بولی نو بیا دوهمه وجه نسی جوړیدلای لکن اوله وجه د منعی پر ځای پاته ده ولی پر دغه اجیر خو لازمه ده چه عینی دغه ۵ لکه کالداری چه ده اخیستی دي اصلی مالک ته بیرته تسلیمو ي ځکه چه دا پیسی خو د معاوضی د عقودو په وجه د أجیر لاس ته نه دي ورغلی نو متعینی کیږي په تعین سره.

احـكـام النـــقـود هـى اولا فـى البيع وفـى سـائر عقـود المعـاوضـة ثـانيـا فـى فـسوخ العقود المذكورة لا تـتعين بالتعين (دررالحكـام صـ۲۲۴ج۱) لا تـتعيـن دراهـم و دنانير فى المعـاوضات و لو عينـت (جامع الفصولين صـ۲۲۷ج۱).

**د دوهم سوال جواب**: دغسى بيعه جائزه ده په دي شرط چه په دا غه مجلس كى به دا تعيـن كيږي چه پيسى نقدي دى كه شل ورځى وروسته دي يو طرف به حتمًا متعين كيږي.
ويجوز البيع بثمن حـال و مؤجل اذا كان الاجل معلوما (هداية صـ۲۶ج۳) وفـى الهنـدية عن الفتح و اما البطلان فيما اذا قال بعتك بـألف حـالا وبألفيـن الى سـنة فلجهاله الثمن عالمگيرية ج۳ (احسن الفتاوى صـ۳۰ج۷)

والله تعالى اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## دمدرسي داعاشي روپي دطالبانو له اجازي پرته ناظم په قرض یابله معامله چاته ورکولای سي کنه؟

**سوال**: د قندهار ولایت د دارالافتاء محترم رئیس صاحب السلام علیکم ورحمة الله.
وبعد محترما: دغه د مدرسی ناظم وایي چه دغه د إعاشي پیسي چه زیاتیږي اوس زما ورور ماته وایي چه دغه زیاتی پیسی ما ته راکه چه زه خپل کار باندي کوم بیا به ئی بیرته د ضرورت په وخت کی درکړم دا پیسی بدون اجازه د طالبانو روادي که یا ؟ (قول اردو نمبر۲)

**جواب**: دغه د إعاشي پیسي بې له اجازې د مسئولینو او مشرانو یعنی هغه کسان چه تولی او تصرف د بیت المال کوي او د ریاستونو اعاشي ورتقسیموي د هغوی بی إجازی دغه پیسی په قرض ورکول جواز نلري او دهغوی په اجازه بیا جواز لري ولی دا پیسی ناظم سره امانة دي او امانة بی له اجازې د خپل مالک ناجائز او سبب د ضمان گرځی.

المال الذی قبضه الوکیل والرسول من جهة الوکالة و من جهة الرسالة امانة فی یدهما راجع المادة (۱۴۶۳) (دررالحکام شرح مجلة الاحکام صـ۲۳۶ج۲) اذا اقرضَ المستودع نقود الودیعة لآخر بلا اذن و لم یجز صاحبها ضمنها المستودع و کذالوادّی المستودع دین المودع الذی بذمته لاخر من النقود المودعة عنده فلم یرضَ المودع ضمنها ایضًا (المجلة المـ۷۹۳) اذا اقرضَ المستودع مبلغ الامانة او مال امانة اخر من المثلیات بلا اذن لاخر وسلمه فان اجاز صاحبها ..... فتکون الاجازه صحیحة والافیضمن المستودع ذلک المبلغ او ذلک المال (دررالحکام شرح مجلة الاحکام صـ۳۰۸ج۲) الجواز الشرعی ینافی الضمان (المجلة المـ۹۱) یعنی کل ماجاز للانسان ان یفعله شرعا فاذا ترتب علی فعله ضرر او خسار لایضمن للمنافاة بین الجواز الشرعی والضمان .... و ما لایجوزله شرعا اذا فعل یضمن (شرح المجلة للاتاسی صـ۲۵۱) والله تعالیٰ اعلم

بسم الله الرحمن الرحيم

## په عسلوکې عشر سته اوکنه؟ دعسلودمزدور اومصارفو څه حکم دي؟

**سوال**: مقام محترم ریاست دارالافتاء السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته.

وبعد: مونږ د یو استفتا په خاطر سنا سو څخه لطفًا درخواست موو مني.
(**اول**) هغه دا چه ایا په شهدو یا عسلو کی عشر سته که څنګه څوک چه د النحل په واسطه باندي عسل تولیدوي؟
(**دوهم**) او بله پوښتنه دا ده چه د مؤنة په باره کی څه حکم لري یعني که چا مزدور مقرر کړي دديٖ لپاره یا ئی په نفس النحل یا مچمچی باندي څه مصرف راځی که په شهدو کی عشر واجب سی هغه څه حکم لري؟ (مولوی عبدالباقی صاحب)
**جواب**: هغه عسل چه مچمچی ئې په عشری مځکو کی وي یا په غرونو او دښتو کی وي په هغو کی عشر سته او که په خراجی مځکو کی وه نو یوازي د مځکی خراج دی او بس.
ويجب في الثمار و العسل الذى اخذ من الجبال (الفتاوى الانقروية صـ۱۰ج۱) قال الحنفية و الحنابلة فيه اى العسل العشر الا ان ابا حنيفة قال يجب فيه العشر اذا اخذ من ارضٓ العشر قل المأخوذ او كثر (الفقه الاسلامى صـ۸۰۹ج۲) يجب العشر فى عسل و ان قل ارضٓ غير الخراج و لو غير عشرية كجبل و مفازة بخلاف الخراجية لئلا يجتمع العشر و الخراج (الدرالمختار بهامش ردالمحتار صـ۵۳ج۲)
او د غه عشر به تر مخه ورکوي وروسته به د مزدور مزدوری یا نورو مصارفو ته حساب کوي یعنی عشر به تر مؤنة د مخه کوي.
يجب العشر فى الاول و نصفه فى الثانى بلا رفع اجرة العمال و نفقة البقر و كرى الانهار و اجرة الحافظ و نحو ذلك درر قال فى الفتح يعنى لايقال بعدم وجوب العشر فى قدر الخارج الذى بمقابلة المؤنة بل يجب العشر فى الكل (ردالمحتار صـ۵۶ج۲) (قبل رفع مؤن الزرع) و قبل اخراج البذر لتصريحهم بالعشر فى كل الخارج بل ذكر التمر تاشى انه لايسعه اكل شئ حتى يؤ دى عشرها (الدرالمنتقى بهامش مجمع الانهر صـ۲۱۶ج۱) والله تعالیٰ اعلم.

بسم الله الرحمن الرحيم

## له مؤظف سړي سره به حساب خپل ماتحت کوي که امیر؟

**سوال** السلام علیکم ورحمه الله و بعد: که چیری امیرالمؤمنین یو نفر ته د یو څو نفرو لپاره ماهانه یا هفتګی څه مقدار پیسی ورکوي او د غه نفر غیر معین چه قمندانان هم دي پر خپلو

نفرو ټی صرفوي ایا وروسته تر ځلورو یا پنځو کلو افراد کولای سی چه له قمندانه څخه حساب و غواړی کیا ؟که د فقهی حنفی له رویه جواب راکړی ډیره مهربانی به مو وي.

**جواب** : افراد د خپل مشر سره حساب نسی کولای بلکه حساب کول د هغه چا حق دی چه و داغه کار ته موظف سوی وي یا امیر المؤمنین دغه صلاحیت ورکړی وي لکه خاص هیئت یا داسی نوری شعبی البته که یو چاته دا معلومه سی په یقینی ډول چه دغه مشر خیانت کوي او زمونږ حق و مونږ ته نه راکوي نو فوق الذکر ادارو او شعبو ته دې خبر ورکړي یا دې امیرالمؤمنین ته ووایی هغه دې خبر کړي بیا به هغه حساب ورسره وکړي.

و اما الرابع و هو محاسبة العمال فیختلف حکمها باختلاف ما تقلدونه وقد قدمنا القول فیه فانکانوا من عمال الخراج لزمهم رفع الحساب ووجب علی کاتب الدیوان محاسبتهم علی صحة مارفعوه..... فاذا حوسب من وجبت محاسبته من العمال نظر فان لم یقع بین العامل و کاتب الدیوان خلاف کان کاتب الدیوان مصدقافی بقایا الحساب فان استراب به ولی الامر کلفه احضار شواهده فان زالت الریبة عنه سقطت الیمین (الاحکام السلطانیة لابی یعلی الحنبلی ص۲۵۶) اما کاتب الدیوان..... فاذا صح تقلیده فالذی ندب له ستّ اشیاء حفظ القوانین و استیفاء الحقوق و اثبات الرفوع و محاسبات العمال و اخراج الاحوال و تصفح الظلامات (الاحکام السلطانیة للماوردی ص۲۱۵)

بسم الله الرحمن الرحیم

**د یوارګان مسئول دعزل، نصب واک لري کنه؟**

**اوافراد له ده سره محاسبه کولای سی کنه؟شوری ته ضرورت لري کنه؟**

**اویوې اداري په نوم بودیجه که په بله اداره کي استعمال سي شرعي حکم څنګه ده؟**

**سوال** : محترم مفتی صاحب ته السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهُ .محترم او قدرمنه (**اول**) هغه کس چه د عالیقدر امیرالمؤمنین لخوا د یو ارګان اداري او یو بل مشر او مسئول ټاکل شوی هغه په خپله اداره کی د عزل او نصب صلاحیت لري او کنه ؟

( **دوهم** ) چه پرته له موجوديت د شوری افراد دا حق لري چه له خپله امير سره محاسبه وكړي او كنه؟

( **دريم** ) يو مشر و شوری ته ضرورت لري او كنه؟ كه ضرورت وي په څونه اندازه كه شوری وسی موافقی ته نه ورسيده بيا امير په خپله رايه څه كولای سی كنه ؟

( **څلورم** ) طالبان په يو او بل نامه استفاده كوي او هغه پيسی هم پر طالبانو مصرفه وي دا كار څنگه دی بالخصوص ملكی تخصيص په نظامی امورو كی مصرفيږي دا كار څنگه دی يعنی عذر بلل كيږي كه نه يعنی د تعليم او تربيه امربالمعروف وغيره په نامه راځی خو بيا په نظامی ارگان كی مصرفيږي حكم ئی څرنگه دی ؟

فوق الذكر سوالونه كه لطفًا د شريعت د لاری ئی حل كړی دا به ستاسو لويه مهربانی او شفقت وي په درنښت.

﴿ ملامحمد گل نيازی د حيرتان بندر د گارنيزون عمومی قوماندانی ﴾

**د اول سوال جواب** : د يو اداری او يو ارگان مسئول هغه وقت د عزل او نصب صلاحيت لري كه امير المؤمنين دا صلاحيت وركړی وو او إجازه د عزل و نصب يی ورته كړي وه او كه يی داسی إجازه نه وه كړی نو بيا عزل او نصب نسی كولای لكه د قاضی په هكله چه فقهاؤ ليكلي دي. ولا يستخلف قاضٍ نائبا الا اذا فوضٌ اليه صريحا كولّ من شئت او دلالة كجعلتك قاضی القضاة ﴿ الدرالمختار بهامش ردالمحتار ص۳۵۹ ج ۴ ﴾ هكذا فی ﴿ الفتاوی الهندية ص۳۱۵ ج ۳ ﴾ ويجوز لوزير التفويض ان ينفرد بتقليد و تعيين الولاة و ليس ذلك لو زير التنفيذ ﴿ الفقه الاسلامی ص۷۳۳ ج ۶ ﴾

**د دوهم سوال جواب** : پر افراد و باندی اطاعت د خپل امير لازم دی او كه بعضی افرادو ته په يقينی دول معلومه سی چه زمونږ په امير كی دغه خيانت موجود دی نو دا لازمه ده چه نورو مشرانو ته خبر وركړی چه هغوئ محاسبه ورسره و كړی يوازی په ظن او گمان باندي به دا كار نه كوي.

واماالرابع و هو محاسبة العمال فيختلف حكمها باختلاف ماتقلدوه و قد قدمنا القول فيه فانكانوا من عمال الخراج لزمهم رفع الحساب ووجب على كاتب الديوان محاسبتهم على صحة مارفعوه.... فاذا حوسب من وجبت محاسبته من العمال نظر فان لم يقع بين العامل و كاتب الديوان خلاف كان كاتب الديوان مصدقافي بقايا الحساب فان استراب به ولي الامر كلفه احضارشواهده فان زالت الريبة عنه سقطت اليمين الخ (الاحكام السلطانية لابی يعلی الحنفی ص۲۵۶)
اما كاتب الديوان..... فاذا صح تقليده فالذی ندب له ستة اشياء حفظ القوانين و استيفاء الحقوق و اثبات الرفوع و محاسبات العمال و اخراج الاحوال و تصفح الظلامات (الاحكام السلطانية للماوردی ص۲۱۵).

**د دریم سوال جواب**: په مشرانو کی تفاوت سته بعضی هغه مشران دي لکه اميرالمؤمنين يا نور هغه مشران چه د هغوئ سره ډير اختيارات موجود دي هغوئ شوری ته ضرورت لري ځکه چه دا طريقه د خلفاء راشدينو ده رضی الله تعالی عنهم او قرآنی ايات او احاديث هم په دي هکله راغلی دي او د مشوری کسان به هم خليفه او اميرالمؤمنين تاکی هر څو اندازه چه د مصلحت وباله او د مشوری د نتيجی څخه امير مخالفت نسی کولای او هم دارأيه د امام ابويوسف صاحب وه او د بعضی علماؤ پر مذهب يی کولای سی او که نور رئيسان يا مشران وي چه ډير اختيارات ورسره موجود نه وي هغه د خپلو اميرانو قوانين عملی کوي چه أطاعت راسی او که بيا هم يو مشکل پيښ سی د خپلو اميرانو سره به مصلحت کوي د هغوئ و شوری ته ضرورت نسته.

ان نظام الحكم الاسلامی نظام شوری لقوله تعالی ﷻ (وشاورهم فی الامر) (وأمرهم شوری بينهم) و وردفی السنة النبوية القولية و العملية مايوجب المشاورة (الفقه الاسلامی ص۷۱۳ج ۶) هيئة الشوری كان السائد لدی الخلفاء الراشدين ان الخليفة هو الذی يعين اهل المشورة حسبما يری المصلحة ويعرف الكفاءات العلمية المطلوبة للامر

..... حکم الشوری اختلف الفقهاء فی حکم الشوری هل هی ملزمة للحاکم أم إختیاریة و هل نتیجتها ملزمة ام اختیاریة ایضًا فقال جماعة ان الشوری فیما لم ینزل فیه وحی فی مکاید الحروب و عند لقاء العدوا ختیاریة تطییبا للنفوس ورفعًا للاقدار و تألفا علی الدین لقوله تعالی ﷺ (فاذا عزمت فتوکل علی الله) و العزم من الحاکم قد یکون علی رأیه اورأی المستشارین الخ و قال آخرون ان الحاکم ملزم برءی اغلبیة المستشارین من اهل الحل و العقد عملا بالاوامر القرأنیة ..... ورأینا هو القول بو جوب الشوری علی کل حاکم و ضرورتهاله و الزامه بنتیجتها کما قرر المفسرون لتسیر الامور وفق الحکمة و المصلحة و منعًا من الاستبدادبالرءی لان حکم الاسلام یقوم علی أصل الشوری و به تمیز و علی نهجه سار السلف الصالح و ذلک مالم یستطع الحاکم اقناع اهل الشوری بافضلیة رأیه کما فعل أبوبکر ..... . فکان الرأی مجمعا علیه کما ذکر ابو یوسف فی کتاب الخراج و غیره من الفقهاء اما رسول الله ﷺ فهو بحق لم یکن بحاجة للشوری لاعتماده علی الوحی (الفقه الاسلامی صـ۷۱۶ ج ۶).

یجب علی الامام ان یشاوراهل الحل و العقد فی مهمات الامور التی لانص فیها و ان هذه المشاورة واجبة علیه بحکم قوله تعالی (وشاورهم فی الامر) حتی ذکر الفقهاء نه لو ترک المشاورة استحق العزل (تکملة فتح الملهم صـ۲۷۶ ج ۳).

**د څلورم سوال جواب**: هر څه پیسی چه د یو ریاست لپاره تخصیص شی هغه باید و هغه ریاست ته ورسیږي او هلته مصرف سی ولی دغه تخصیص چه هر مشرته ورکول کیږي لپاره د یو ریاست نو هغه مشر امین بلل کیږي او امین مکلف دی چه امانت به خپل اهل ته رسوی لکه څنګه چه په ایات کریمه کی راغلی دي (ان تؤدوا الامانات الی اهلها) او بل دا چه هغه پیسی که په بل ځای کی مصرف سی نو دا مخالفت سو د أمیر او مخالفت د امیر غیر له معصیته حرام دی او بل دا چه د بیت المال هره شعبه او بیته خپل مصارف لري چه د یوې شعبی پیسی د بلې شعبې په مصارفو کی استعمالول جائز نه دي بغیر له خاصو صورتو.

فعلى الامام أن يجعل بيت المال أربعة لكل نوع بيتا لان لكل نوع حكما يختص به لا يشاركه مال آخر فيه (الفتاوى الهندية صـ١٩١ج١) هكذا في (الدرالمختار وردالمحتار صـ٦٣ج٢) صرح الفقهاء بأن طاعة الامام فيما ليس بمعصية واجبة (تكملة فتح الملهم صـ٣٢٣ج٣). والله تعالى اعلم

## ددوهم توک پای